# تفسیر ایوبی حنفی

تالیف

علامۂ عصر وحید الدہر ابو الفضل مولانا محمد عبد اللہ الایوبی

القندھاری العلیاخیلی الحنفی النقشبندی عفی عنہ

الناشر

مکتبۃ القراءۃ والتجوید

کانسی روڈ شالدین کوئٹہ

بسم الله الرحمن الرحيم

په پښتو ژبه کښې اولنۍ او په افغاني تاریخ کښې بې ساری
په زر گونو جدیدو مسئلو باندي مشتمل

# تفسیر ایوبي حنفي

وَإِذَا سَمِعُوا ... وَلَوْ أَنَّنَا

اووم ټوک ۷

تالیف اوتصنیف

د علامة العصر ابو الفضل شیخ التفسیر والحدیث فقیه دوران مفسر الزمان

## حضرت مولانا محمد عبید الله الایوبي

الکندهاري السلیمانخیلي الحنفي النقشبندي حفظه الله تعالی

مکتبة القراءة و التجوید
کانسي روډ شالدره کوټه

# د کتاب پېژندنه

د کتاب نوم ........... تفسير ايوبي پښتو اووم ټوک
مؤلف.................... الحاج مولنا محمد عبيد الله الايوبي الکندهاري
السليمانخېلي الحنفي حفظه الله تعالی بفضله الوهبي
کمپوزر.................. حبيب الحق حقاني (مينګل)
ټايپ .................. حقاني کمپيوټر اداره
نشر کوونکې اداره ......... مکتبة القراءت والتجويد کانسي روډ کوټه
د چاپ ځای ............. لاهور پاکستان

# يو نظر دې خوا

هيڅ يو مسلمان هم په قرآن مجيد، احاديثو يا د فقهي په کتابو کې په قصده سره غلطي نه کوي، زموږ اداره تر خپله وسه پورې د کتابو تر ليکلو وروسته تصحيح نه زياته پاملرنه کوي، چې ددې په وجه زموږ کتابونه معياري دي، خو بيا هم بنده بنده دی، يو نه يو ځای څه ناڅه غلطي په املاء کې يا په يوه جمله کې ښنې صادره سي، نو زموږ د ټولو ناظرينو ښخه دا خواست دی چې که ستاسي تر نظر داسي غلطي تېره سي لطفاً زموږ سره تماس ونيسئ، تر څو د کتاب د دوهم وار په چاپ کې د هغې تېروتنې اصلاح وسي.

په درناوي ستاسي ورور شمس الحق شمس

بسم الله الرحمن الرحيم




الطبعة الاولى

١٤٢٨ هجري - ٢٠٠٧ ميلادي

**مكتبة القراءة و التجويد**

شارع كانسي كوئته-پاكستان

رقم الهاتف ٠٣-٢٨٨٥٥٢٥

MAKTABTUL-QIRRAT WALTAJWEED
KANSI ROAD QUETTA
BALOCHISTAN

ISBN 2-7451-3140-0






الحمد لله وكفى والصلوٰة والسلام على خير الورٰى

**وبعد**: دا چي تفسير ايوبي اووم توک چي پکښي اوومه او اتمه (واذا سمعوا. ولو اننا) سپاره او د هغه تفسير موجود دی، هيله لرو چي د کتاب الله د فهم او د تشريح مسائلو تنده به مو په ماته سي.

دا د خوشحالی ځای دی چي د پښتو په تاريخ کښي پر ترجمه، مسائلو او نحوي تراکيبو باندي مشتمل تفسير د تصور له اسمانه د جود په جامه کښي را ووت.

**دا حقيقت دی!**

که څوک دا ووايي چي څه رنګه دا د پښتو اولنی تفسير دی. سره د دې چي له دې څخه مخکي هم تفسيرونه په زياته پيمانه کښي موجود دي؟ نو ځواب دادی چي هغه ټول تفسيرونه کوم چي له تفسير ايوبي څخه مخکي په پښتو کښي موجود دي هغه يا خو له عربي يا له اردو څخه يا له فارسي څخه او يا هم له نورو ژبو څخه ژباړل سوی دی، تر کومه حده چي زموږ معلومات دي، دا ټول تفسيرونه له نورو ژبو څخه

ژباړل سوي دي، خو يوائي او يوائي تفسير ايوبي ته دا
وياړ وررپه برخه دی چي د پښتو په تاريخ کښي اولنی
کتاب دی چي د تصنيف او تاليف او همدارنګه اصل متن
يې په پښتو دی، که چېري تاريخ د عادلانو مؤرخينو په لاس وليکل
سو، نو د حضرت علامه ايوبي او همدارنګه ددهٔ د تصنيفاتو او تاليفاتو او نورو
خدمتونو به هرو مرو ذکر پکښي وي.

**او داهم تر لمر روښانه ده!**

چي د عمر په اخيرنی شپېو کښي دا وياړ و حضرت علامه فقيه الوقت ومفسر الزمان مولانا محمد عبيدالله الايوبي القندهاري ته ورپه برخه کړی چي ددهٔ د علمي شجر او پوهي څخه هيڅ يو معاند او معاصر هم انکار نه سي کولای.

الله تعالی دي ورته ښې شپې ور په برخه کړي، خداوند پاک دي نور هم د مسلمانانو د خدمت کولو توفيق ورپه برخه کړي امين.

عمر دې زيات، قلم دي ګړندی او برياوي دې مل وي، ددهٔ يو ادنی شاګرد

**فضل الحق حقاني**

باني مکتبة القرائت والتجويد

خو دا هم د الله ﷻ يو لوی فضل او احسان دی چي هر کله چي د کمپيوټر دنيا نه وه، نو د حضرت ايوبي کتابونه موږ خپل د لاس په خط وچاپ ته وسپارل چي ژوندي مثالونه يې قدوري، نور الايضاح، نور الظلم، ابو المنتهٰی، شروط الصلوة، شهادة الحسنين او داسي او داسي نور دي، او کله چي کمپيوټر چاپېريال ته راغلی، نو بيا مو د حضرت کتابونه په کمپيوټري ليکنه باندي وچاپ ته وسپارل، خو کېدای سي چي دا هم د حضرت ايوبي اخلاص او للهيت وي ورنه ........ د افغانستان يو عالم هم په دومره تصنيفاتو او کتابونو، حواشيو وتفاسيرو باندي بريالی سوی نه دی لکه څرنګه چي دا څرګند او واضح حقيقت دی، نو له دې کبله د ټولو مسلمانانو څخه د مکتبة القرأت والتجويد د ښه خدمتونو لپاره د دعاً محتاجه او کار کوونکو ته يې د اسلام د خدمت او چوپړ لپاره د توفيق غوښتونکي يو والسلام

**اداره مکتبة القراءت والتجويد**

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لمن وفقني لاتمام تفسير الجزء السادس من القرآن الكريم. فاقول لابتداً تفسير الجزء السابع.

الحمد لوليه والصلوٰة على نبيه وعلى آله وصحبه اجمعين، اللهم يسر ولاتعسر.

**درویش وايي:** چي پيل د تفسير د اووم جزء د قرآن كريم په ورځ د پنجشنبې ساعة ۳ بعد الظهر ۱۸ من شهر ذي القعدة سنه ۱۴۲۷هـ ق اللهم وفقني لاتمام تفسير هذا الجزء السابع بالخير والعافية والصحة والسلامة.

د فقير التجاً د تفسير له مطالعه كونكو څخه داده چي تفسير دي د حسد په زړه د عناد په سترګو نه ګوري، بلكې د انصاف او وروروليٰ په سترګه دې مطالعه كوي. ګرانو مطالعه كونكو درويش خو خپل جدوجهد تولِه پر كار اچولى دى، لكن سهوه او نسيان او خطاً د درويش سره لاينفك ملګرې ده، لكن قال الله ﷻ ﴿لايكلف الله نفساً الا وسعها﴾

**وَإِذَا سَمِعُوا مَا أُنزِلَ إِلَى الرَّسُولِ تَرَىٰ أَعْيُنَهُمْ تَفِيضُ مِنَ الدَّمْعِ**

هر وخت چي واورېدل دوى يعني النصارى المذكورين فيما سبق لامطلق النصارى هغه قرآن چي نازل كړل سوى دى ورسول ته يعني محمد ﷺ، ته وينې سترګيددوى ډكې له اوښكو څخه.

**پوه سه:** چي "واذا سمعوا" عطف دى پر "لايستكبرون" باندي، والمقصود نرموالى د زړنو ددوى، او ډېره ډېره له خداى ﷻ څخه او مسارعت ددوى دى وقبول ته د حق.

**فائده:** رؤية دلته بصري دى، نو يو مفعول غواړي چي هغه "اعينهم" دى او "تفيض" حال دى له مفعول څخه د "ترىٰ" چي "اعينهم" دى.

**فائده:** فيض تويدلو ته د اوبو له ژې (ګوډي) يا له لوښي څخه له جهته څخه د ډكوالي، نو ظاهره معنا خو داده چي سترګي ددوى راتويږي لكن فيض د سترګو مبالغةً عبارت دى له ډكېدو څخه. فالمعنى دوى چي قرآن واورېدى سترګي ددوى ډكي سوې له اوښكو څخه، او دا هم عين ممكنه ده چي د ډېري مبالغې لپاره يې ددوى سترګي داسې وګرځولې چي تويږي.

**درویش وايي:** چي داسي مبالغې په هره ژبه کي سته لکه سړي چي ډېر وشرمېږي او له شرمه مځکي ته گوري، نو داسي وايي چي سترگي يې پر مځکه ولوېدې.

**درویش وايي:** چي امام مظهري رحمه الله پخپله يو روايت د نسائي راوړی د عبد الله بن زبیر رضي الله عنه چي په هغه کي راغلي دي چي دا آيت په نجاشي او اصحابو کي دده نازل سوی دی، او بل روايت يې د ابن جرير او ابن ابي حاتم له سعيد بن جبير څخه راوړی دی چي نجاشي گڼ شمېر له خپل دولت و عليه الصلوٰة والسلام ته راواستول او عليه الصلوٰة والسلام و هغو ته سورت "يٰس" قرائت کړی هغو وژړل او ايمان يې راوړی، او بل روايت يې د سعيد بن المسيب او د ابوبکر بن عبد الرحمٰن او د عروة بن الزبير راوړی دی چي عليه الصلوٰة والسلام عمرو بن اميه الضميري سره د يوه مکتوبه ونجاشي ته واستاوه او هغه قاصد چي نجاشي ته ورغلی، او د عليه الصلوٰة والسلام مکتوب يې ورته قرائت کړی، نو نجاشي جعفر بن ابي طالب او دده نور ملگري مهاجرين يې راوغوښتل او خپل رهبان او قسيسين يې هم راوغوښتل، بيا نجاشي جعفر بن ابي طالب او دده نور ملگري مهاجرين يې راوغوښتل او خپل رهبان او قسيسين يې هم راوغوښتل، بيا نجاشي جعفر بن ابي طالب رضي الله عنه امر کړی چي ته يو سورت ستاسي د کتاب تلاوت کړه، جعفر بن ابي طالب رضي الله عنه سورت مريم ورته تلاوت کړی، نو هغو ټولو ايمان راوړی وفاضت اعينهم من الدمع، نو دا آيت "لتجدن اقربهم مودةً بيا تر فاكتبنا مع الشاهدين" پوري د هغو په باره کي نازل سو، لکن سره ددغو رواياتو چي مظهري رحمه الله راوړي دي په اخير کي وايي قلت چي عبرت عموم لره د لفظ دی يعني لفظ د نصارى چي په قرآن مبارک کي راغلی دی خصوص لره د مورد نه دی.

**درویش وايي:** چي زما مقصد دادی چي مظهري رحمه الله په نورو نصارى وو کي څه ښه اخلاق او اسلام ته احترام او يا په ويلو سره د د سورت قرآني ايمان راوړل ليدلي وچي دی و شمول ته د نورو نصارى وو په تېنگه ولاړ دی والله تعالى اعلم بمراد عباده، البته دا مکانات سته چي په وخت کي د حکومت د لنډن د نصارى وو پر لوی بر اعظم د هند او پاکستان مظهري قاضي و د مسلمانانو لپاره په پاني پت کي، نو په هغه وخت کي د خواخوږی د لنډن د نصارى د مسلمانانو سره او د

مدرسو د جوړولو اجازه او د مسلمانانو د مساجدو ساتل له هندو قوم څخه او مسلمانانو ته خپل اسلامي قاضيان مقررول چي د مسلمانانو په منځ کي تنازعات دي خپل اسلامي قاضيان ور فيصله کوي، نو صحيح ده چي مظهري د نصارى په عموم سره قائله سي.

**يوه سه:** چي مظهري کلمه د "من" په من الدمع کي لپاره د تعليل بولي اى من اجل الدمع، او روح البيان يې لپاره د ابتدأ الغاية بولي فتفكر وخذ ما صنع ودع ماكدر.

## مِمَّا عَرَفُوا مِنَ الْحَقِّ

اصل د "مما" من ما" و بيا نون په ميم کي مدغم سو حسب القانون الصرفي، نو کلمه من يا ابتدائيه ده يعني ابتدأ د ابتدأ د تفيض له مما عرفوا څخه وه، او يا لپاره د تعليل دى او کلمه د ما موصوله ده والعائد محذوف اى من الذي عرفوه او من الحق حال دى اى كائنا من الحق او کلمه د من بيانيه ده، حاصل د معنى دادى چي ددوى سترګي چي د اوښکو ډکي سوې له دې سببه چي دوى حق حق وپېژندى حق يعني دين د اسلام او قرآن کريم، قال ابن عباس ﷺ چي مراد له سامعينو څخه نجاشي واصحابه دي چي جعفر بن ابي طالب ودوى ته په حبشه کي دا سورت تلاوت کړى "كٓهٰيٰعٓصٓ" نو تر هغو پوري دوى ژړل چي سورت ختم کېدى.

## يَقُولُونَ رَبَّنَا آمَنَّا

دوى به ويل دا جمله حال ده له ضمير څخه د فاعل په "عرفوا" کي "ربنا آمنا" منادى ده په حذف د حرف ندأ يعني يا ربنا موږ ايمان راوړى دى پر محمد ﷺ او پر هغه قرآن چي تا نازل کړى دى وده ته.

**يوه سه:** چي مقصود له آمنا څخه اخبار نه دى يعني چي موږ د مخه تر دې ايمان راوړى و بلکي دغه ددوى انشأ د ايمان وه، او د ربنا د لفظ فائده داده چي موږ مؤمنان عند ربنا يو لا مؤمنين عند الناس كالمنافقين.

## فَاكْتُبْنَا مَعَ الشّٰهِدِيْنَ ﴿۸۳﴾

نو موږ وليکه سره د شاهدانو چي امت د عليه الصلوٰة والسلام چي په ورځ د قيامت به شاهدي ادأ کوي لپاره د انبيأ عليهم السلام چي امتيان د دوى له تبليغ څخه منکر

سي، نو گواکي دا شهادت د امت محمدي په ورځ د قيامت دوی په انجيل کي ليدلي وه، او صحيح په زړه پوري معنا داده چي موږ وليکه سره د شاهدانو په نبوت سره د عليه الصلوٰة والسلام او شاهدان پر حقيقت د قرآن چي من عندالله دي.

**پوه سه:** چي شاهدي هغه ته وايي چي د زړه له بېخ څخه وي. لاکشهادة المنافقين چي ژبي پر سر وي لکه په سورت منافقين کي چي خدای پاک وايي

﴿إِذَا جَآءَكَ ٱلْمُنَٰفِقُونَ قَالُواْ نَشْهَدُ إِنَّكَ لَرَسُولُ ٱللَّهِ ۗ وَٱللَّهُ يَعْلَمُ إِنَّكَ لَرَسُولُهُۥ وَٱللَّهُ يَشْهَدُ إِنَّ ٱلْمُنَٰفِقِينَ لَكَٰذِبُونَ ﴿١﴾﴾ نو په دې خبره کي ددوی "فاكتبنا مع الشاهدين" تبريه د ځانو له نفاق څخه ده.

وَمَا لَنَا لَا نُؤْمِنُ بِٱللَّهِ وَمَا جَآءَنَا مِنَ ٱلْحَقِّ وَنَطْمَعُ أَن يُدْخِلَنَا رَبُّنَا مَعَ ٱلْقَوْمِ ٱلصَّٰلِحِينَ ﴿٨٤﴾

**پوه سه:** چي "مالنا" مبتدأ او خبر دی والمعنى اى شئ حصل لنا، کلمه د "ما" استفهام انکاري دی له سبب او مسبب دواړو څخه. او مسبب لانؤمن دی او لا نؤمن حال دی له ضمير څخه د "لنا" اى غير مؤمنين بمحمد ﷺ وبما انزل عليه من القرآن. او "ماجائنا" عطف دی پر لفظ د "الله" اى نؤمن بالله "وما جائنا على لسان محمد ﷺ من الحق وهو القرآن الكريم.

**پوه سه:** چي "من الحق حال دی له ضمير څخه د فاعل د "جائنا" اى حال كونه كائنا من جنس الحق. او "نطمع" عطف دی پر "نؤمن" باندي اى مالنا لانؤمن ونطعم، او "ان يدخلنا" مفعول د "نطمع" دی "ربنا" فاعل د "يدخل" دی او ضمير د "نا" مفعول د "يدخل" دی او مراد له قوم صالحين مؤمنين د امت د عليه الصلوٰة والسلام دی الی اخيرها چي خدای پاک ددوی په شان کي داسي ويلي دي ﴿ولقد كتبنا في الزبور من بعد الذكر أن الارض يرثها عبادي الصالحون﴾ ترجمه: څه سبب موږ ته پيدا دی چي موږ به ايمان نه راوړو پر خدای ﷻ يعني په توحيد سره او پر هغه کتاب چي موږ ته راغلی دی يعني القرآن الكريم، او موږ به ولي طمع او اميد نه کوو چي موږ به داخل کړي خدای ﷻ زموږ سره د قوم صالحان يعني امته عليه الصلوٰة والسلام يعني في الدنيا والآخرة.

**فائده:** دغو نصاری وو چي ایمان راوړی یهودانو ودوی ته پېغور ورکړی او ورته وه یې ویل "لم آمنتم" نو دوی په ځواب کي ورته وویل وما لنا آه. چي خدای پاک یې په قرآن جلیل کي ددوی د ځواب حکایت ورکړی تعظیماً لجوابهم. او بعض مفسران وایي چي دغه ایمان راوړونکي نصاری چي قوم ته راغله هغو ملامتیا پر ویله، نو دوی دا ځواب ورکړی "وما لنا آه"

فَأَثَابَهُمُ اللَّهُ بِمَا قَالُوا

نو خدای پاک دوی ته جزا او عوض د خیر ورکړی په سبب د قول د دوی که ما مصدریه سي او که ما موصوله سي نو عائد یې محذوف دی ای ما قالوه.

**سوال:** نفس قول خو سبب د ثواب نه دی. ولي چي نفس قول خو په منافقانو کي هم موجود دی؟

**ځواب:** ددوی قول له صحیح قلب څخه و او له نفس اعتقاد څخه و ویدل علیه ترى اعینهم تفیض من الدمع آه.

جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا ۚ وَذَٰلِكَ جَزَاءُ الْمُحْسِنِينَ ۝

جنتونه چي بهېږي به لاندي تر درختو د هغو جنتو ځلور ولې اوبه، عسل، شیدې او شراب او دوی به همېشه وي په هغو جنتو کي، او دا جنتونه جزا ده د هغو کسانو چي مخلصین په ایمان او عبادت کي وي.

**پوښتنه:** دا ثواب او جنتونه چي ودوی ته ورکړه کېږي هغه به په ورځ د قیامت وي، نو تعبیر په ماضي سره په "اثابهم" کي څرنګه وسو؟

**ځواب:** چونکه دا ثواب موعود د خدای ﷻ دی او خلف وعد پر خدای پاک محال دی "ان الله لا یخلف المیعاد" نو دا ثواب لکه متحقق الوقوع في الماضي دی.

**درویش وایي:** چي چونکه عادت الهي دادی چي په قرآن عزیز کي د مؤمنانو د ثواب سره جزا النار د کافرانو ذکر کوي وبالعکس لپاره د ترغیب او ترهیب، نو یې څکه د کفارو حال داسي بیان کړی.

وَالَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَحِيمِ ۝

او هغه کسان چي کفر او انکار د دین حق کوي په زړو سره، او تکذیب کوي د

اياتو زموږ په ژبه سره، فالمعطوف والمعطوف علي متغايران، دغه کسان ملګري دي د اور يعني ملازمين د دوږخ دي ابد الآبدين.

**درويش وايي:** چي په صحيح حديث کي راغلي دي چي ټول مفسرينو هم راوړي دی باختلاف يسير چي عليه الصلوٰة والسلام په يوه موعظت کي مفصل بيان د قيامت د ورځي وکړی او د هغې ورځي سختي او احوال يې بيان کړه، او د اور بيان يې وکړی او ډېري سختي خواری يې بيان کړې او خلګو ته يې تينګ انداز وکړی چي د خلګو زړونه يې ډېر نرم کړه او خلګو يعني صحابه وو ډېر وژړل او ډېري اوښکي يې هم توی کړې يوولس کسه له صحابه کرامو څخه د عثمان بن مظعون په کور کي سره جمع سوه چي په هغو کي عثمان بن مظعون او علي بن ابي طالب، عکرمه، ابن مسعود، مقداد بن الاسود، سالم مولی حذيفه، عبد الله بن عمر ﷺ او په يوه روايت کي يې ابوبکر او عمر رضي الله عنهما هم پکښې راوړي دي په هر صورت هر څوک چي وه خو لس کسه وه او دوی دا مشوره سره وکړه چي موږ به ځيره کالي اغوندو چي په عربو يې مسوح بولي، او د جماع الآت به له خانه څخه پرې کوو يعني ځانونه به خصيان کوو او تمام عمر به روژې نيسو او ګرده شپه به تهجد کوو بيده به نه يعني پر فرش باندي او غوښې به نه خورو او نه به وازګي وغيره خورو او خوشبويي به په ځان يا په جامه پوري نه موږو، او د خدای ﷻ په ځمکه کي به سياحت کوو يعني بې کوره ژوند به کوو، نو دا مشوره يو چا و عليه الصلوٰة والسلام ته ورسول، نو عليه الصلوٰة والسلام د عثمان بن مظعون ﷺ و سرای ته ورغلی. عثمان کورته نه و، نو د عثمان ماينې ته چي ام حکيم بنت اميه وه چي اصلي نوم يې خوله وه ورته وه يې ويل چي دا رشتيا ده چي ستاسي په کور کي عثمان او نورو کسانو داسي مشوره کړې ده، هغه ډېره پوه ښځه وه دا يې مکروه بلل چي عليه الصلوٰة والسلام ته درواغ ووايي او دا يې هم مکروه بلل چي خپل د مېړه سِر بيان کړي، نو دې ښځي داسي يو مجمل عبارت و عليه الصلوٰة والسلام ته ووايه که عثمان درته ويلي وي نو به رشتيا وي، عليه الصلوٰة والسلام ځندي ولاړی عثمان چي کورته راغلی ماينې يې د عليه الصلوٰة والسلام د راتګ بيان ورته وکړی، نو عثمان د عليه الصلوٰة

والسلام و حضور ته ورغلی، نو علیه الصلوٰة والسلام چي ددې مشورې پوښتنه
خني وکړه هغه ورته وویل نعم، نو علیه الصلوٰة والسلام و عثمان ته وویل چي زه په
داسي کارو سره لکه تاسي چي يې قصد کړی دی نه يم امر سوی "ان لانفسکم
عليكم حقاً يعني في الاكل والشرب وقضاً الشهوة مع زوجته" نو روژې نيسئ يعني
نفلي او خورئ يې هم يعني بعض ورځي نفلي روژې مه نيسئ "وقوموا" يعني د
تهجد لمونځ کوئ او بيدېږئ هم يعني في بعض الليل، عليه الصلوٰة والسلام ورته
زياته کړه چي زه هم قيام الليل کوم او هم بيدېږم "واكل اللحم" او غوښي خورم او دسم
يعني وازګه هم خورم "وآتی النسآ" زه خپلو ازواجو ته ورځم كنايةٌ عن الجماع "فمن
رغب عن سنتي فليس مني" که څوک زما له بيان سوي طريقې څخه رغبت وکړي
يعني د افراط پر خوا هغه زما له طريقې سرې نه دی دا معنا نه ده چي کافر دی؛
وروسته بيا عليه الصلوٰة والسلام خلګ يعني اصحاب کرام ﷺ سره جمع کړه او
داسي خطبه يې ورته ايراد کړه "مابال قوم حرموا النسآ والطعام والطيب والنوم
وشهوات الدنيا اما اني لاآمركم ان تكونوا قسيسين ولارهباناً فانه ليس من ديني
ترک اللحم والنسآ ولا اتخاذ الصوامع وان سياحة امتي الصوم ورهبانيهم والاجتهاد
فاعبد الله ولاتشركوا به شيئاً وحجوا واعتمروا واقيموا الصلوة وآتو الزكوة وصوموا
رمضان واستقيموا يستقم لكم فانما هلك من هلك قبلكم بتشديد شددوا على
انفسهم فشدد الله عليهم الى اخير الحديث.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تُحَرِّمُوا۟ طَيِّبَٰتِ مَآ أَحَلَّ ٱللَّهُ لَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوٓا۟ۚ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ ٱلْمُعْتَدِينَ ۝

اې هغه کسانو چي يې ايمان يې راوړی دی تاسي حرام مه ګرځوئ يعني پر خپلو
ځانو باندي "طيبٰت" د هغو شيانو چي تاسي ته خدای حلال کړي دي يعني چي په
طبعيت کي تاسي ته خوند درکوي او لذيذ او ستاسي د نفسو اشتهاً ورته کېږي
يعني من الحلال شرعاً. كاللحم والودک وجماع الزوجات الى غير ذالک ممامر في
شان هذه الآية، او تاسي تجاوز مه کوئ تر حدود ما احل الله لكم و ما حرم عليكم ته
او يا تجاوز مه کوئ و تحريم ته د احل الله لكم کمامر في قصة عثمان بن مظعون

ورفقائه. نو آیت مبارک نهي کونکی دی د تحریم ما احل او له تحلیل څخه د ما حرم بلکې میانه روي کوئ لکه په حدیث کي د علیه الصلوٰة والسلام چي ذکر سوه آنفاً چي د هغه حدیث اکثره ترجمه درویش تاسي ته وکړه چي په اخیر کي د حدیث علیه الصلوٰة والسلام خطبه ورته ایراد کړه او داسي یې ورته وویل "ما بال اقوام" څه حال دی د هغو قومو یعني خلګو لکه عثمان ورفقائه "حرموا النسآ والطیب والطعام" چي پر ځان یې حرامي کړي دي مایني یعني جماع د ماینو او خوشبویي او طعام لکه غوښي وغیره ممامر في القصة. والنوم وشهوات الدنیا لکه عثمان او نورو چي وویل چي موږ به د شپې نه بد ېږو او نه مشتهیات د دنیا یعني چي تول عمر به روژې نیسو "اما اني لا آمرکم ان تکونوا قسیسین ولا رهباناً" اما زه تاسي نه امر کوم چي تاسي قسیسین وګرځئ او نه په دې رهبان وګرځي وقد مر معنی القسیسین والرهبان فانه لیس من دیني ترک اللحم والنسآ. ولي چي زما له دین څخه نه دی نه خورک د غوښو او نه ورتګ و ماینو ته چي کنایه له جماع څخه ده ولا اتخاذ الصوامع او نه جوړول د خلوت ځانو لکه د نصاری وو د رهبانو "ان سیاحة امتي الصوم" زما د امت سیاحت یعني په بیابانو کي ګرځېدل روژه ده یعني نفلي روژې دي نیسي دا دومره ثواب لري لکه یو سړی چي کور ته نه کښېني په بیابانو کي ګرځي لکه رفقاؤ د عثمان چي اراده کړې وه ورهبانیتهم الاجتهاد. او زما د امت رهبانیت کوشش دی په دین کي یعني فرائض او واجبات وغیره پر ځای کول او له محرماتو وغیره څخه پرهېز کول. درویش وایي چي باقي ترجمه د حدیث ظاهره ده.

**وَكُلُوا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللَّهُ حَلَالًا طَيِّبًا**

او تاسي خوراک د هغه شیانو چي وتاسي ته په رزق در کړه سوي دي.

**یوه سه:** چي "حلالاً" مفعول د "کلوا" دی او "مما رزقکم" حال دی له مفعول څخه. او حال چي مقدم سوی دی په سبب ددې چي ذوالحال یې نکره دی کما هو القانون النحوي.

**فائده:** عبدالله بن المبارک رحمه الله تلمیذ الامام الاعظم ابو حنیفه رحمه الله وایي چي حلال هغه شی دی چي په وجه شرعي دده په ملک کي راغلی وي. او طیب هغه ته وایي چي غذا او نما د بدن په کښې. نو ختې، خاوري او شیګي یا بل داسي شی

چي غذا د بدن نه گرځي هغه له طيب څخه خارج دی او خوراک يې مکروه دی الا علی وجه التداوي.

**پوه سه**: چي ددې چي من د تبعيض پکښي راغلی دی دا معلومه سوه چي بعض رزق حلال دی او بعض رزق حرام دی يعني ان الحرام رزق ايضاً عند اهل السنة والجماعة خلافاً للمعتزلة هغه وايي چي حرام رزق نه دی، وتفصيل الدلائل في شرح العقائد وشرح المقاصد للعلامة التفتازاني رحمه الله.

وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِيٓ أَنتُم بِهِۦ مُؤۡمِنُونَ ۝

او تاسي وبېرېږئ له الله جل جلاله څخه چي تاسي پر هغه ايمان راوړی دی.

**پوه سه**: چي دا آيت تاکيد دی د قوله تعالی "کلوا آه" لپاره او د مزيد تاکيد لپاره "الذي انتم آه" زيات کړی، ولي چي مقتضی د ايمان تقوی او عمل دی په امر به ونهي عنه د خدای جل جلاله، روی البخاري بسنده عن عائشة رضي الله عنها کان النبي ﷺ يحب الحلوا" يعني خوږ او عسل عطف د خاص دی پر عام باندي، وفي الحديث قال رسول الله ﷺ الطاعم الشاکر کالصائم الصابر رواه الترمذي"

شان نزول بغوي رحمه الله له ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت کوي چي هغه وخت چي دا آيت نازل سو "لاتحرموا آه" عثمان بن مظعون او دده ملګري رضي الله عنهم. و عليه الصلوة والسلام ته راغله دوی ووېل چي موږ ټولو خو قسمونه اخستي پر ما اتفقنا عليه باندي، نو زموږ د قسمونو به څه چاره وي فانزل الله تعالی هذه الاية.

لَا يُؤَاخِذُكُمُ ٱللَّهُ بِٱللَّغۡوِ فِيٓ أَيۡمَٰنِكُمۡ وَلَٰكِن يُؤَاخِذُكُم بِمَا عَقَّدتُّمُ ٱلۡأَيۡمَٰنَۖ

خدای جل جلاله تاسي نه نيسي چي لغوه قسم واخلی، لکن تاسي خدای جل جلاله نيسي په هغه قسم سره چي تاسي يې عقد کړی وي.

**پوه سه**: چي يمين تقويه د احد د طرفي د وجود او عدم د يو فعل په مقسم به سره او د لغوه د يمين معنا هغه بې فائدې قسم دی چي په ده پوري حکم شرعي تعلق نه لري، نو په نېز د امام اعظم رحمه الله چي سړی قسم واخلي پر يو شي چي دده غالبه گمان دا وي چي داسي به وي او هغه شی دده د گمان سره برابر نه وي لکه يو څوک چي له لېري څخه يو شی ووينې او دده خيال غالب دا وي چي دغه زيد دی، نو

ووايي والله انه زيد ، او هغه زيد نه وي، او يا ووايي چي والله ما ددې مياشتي په اوله ورځ روژه نيولې وه او دده غالبه گمان هم داغه وي لکن وروسته معلومه سي چي داغسي نه وه وعلی هذا فقس امثال ذالک، نو په داسي يمين کي نه مؤاخذه اخروي سته او نه کفاره، او يمين غموس زموږ په نېز دادی چي امر ماضي يا امر حالي قسم عمداً په دروا غو واخلي لکه يو سړی چي عمداً کاذبانه قسم واخلي والله اني فعلت كذا ولم يفعله او بالعكس، او يا ووايي چي بل سړي پر ده د پور دعوه کړې وي او دی وايي والله ما له عليه دين والحال ان للشخص المذكور عليه دين وامثال ذالک، ددې قسم حکم دادی چي گناه کبيره ده چي په دې دنيا دی په گناه کي دوبوي او په اخيرت کي بې په اور کي يعني ان عذبه الله ولهذا سمی بالغموس، په صحيح حديث کي راغلي دي "من حلف کاذباً ادخله النار ولا كفارة فيها الا التوبة"

**يوه سه:** چي "في ايمانكم" جارومجرور متعلق دی په "لاتؤاخذكم" پوري او باد باللغو سببيه ده، والمعنى "لا يؤاخذكم في حق ايمانكم بسبب ماكان لغوا منها" او د منعقده معنی داده چي قصد د زړه ورسره ملگری وي، او منعقده هغه قسم دی چي سړی وايي والله او بالله زه فلانی کار کوم په مستقبل کي او يا به فلانی کار نه کوم په مستقبل کي، نو ددې قسم حکم دادي چي که سړی په قسم سره وفا وکړي يعني هغه زمانه مستقبل چي ده ټاکلې ده يا هفته يا مياشت يا کال مثلاً په هغه زمانه کي هغه کار وکړي که پر فعل قسم و، او يا يې نه وکړي که پر ترک قسم و، نو دی په قسم کي بار سو يعني وفا يې په وکړه، نو پر ده هيڅ شی نسته او که يې خلاف د قسم وکړی، نو پر ده کفاره سته چي بيان به يې راسي په قرآن مجيد کي.

**يوه سه:** چي مؤاخذه په يمين منعقده کي دا شرط ورسره محذوف دی ای اذا حنثتم چي له وروسته کفاره څخه فهمېږي.

**فائده:** د دين محمدي ﷺ د جمهورو علماؤ او د ائمه اربعه رحمهم الله تعالی په نېز يمين حرف قسم غواړي يا ملفوظ يا مقدر، او يو نوم د خدای ﷻ به هم ورسره وي يا اجمالاً نحو والله، والرحمن، والقادر المطلق، والخالق وامثال ذالک، يا تفصيلاً نحو والذي نفسي بيده، والذي لا اله غيره، ومقلب القلوب، و رب السموٰات والارض، والذي بيده ملكوت كل شئ وامثال ذالک، او بعض د مشائخو د حنفيانو وايي چي هر

یو داسې اسم که غیر د خدای ﷻ وي نه مسمی کېږي لکه الله، الرحمن چې معرفه وي کما في رد المحتار بخلاف النكرة فانه يسمى به غيره تعالى فهو يمين قطعاً او هغه نومان د خدای ﷻ چې پر بل چا یې هم اطلاق روا وي لکه حلیم، کریم، قادر، وکیل، رحیم وغیرها هغه یمین نه دی مګر په نیت سره او یا په عرف کې یا په دلالت سره د حال د متکلم، او دغه په نېز د جمهورو علماؤ په هر صفت سره د خدای ﷻ یمین غوټه کېږي کعزة الله، وجلال الله وکبریائه، په دې کې خو امام اعظم رحمه الله هم ورسره متفق دی، لکن په داسې صفاتو کې چې په عرف کې په هغو سره یمین نه وي رواج لکه وعلم الله، ومشیة الله، وارادة الله جمهور وايي چې دا هم یمین دی، او ابو حنیفه رحمه الله وايي چې دا یمین نه دی لعدم جریان العرف بالیمین بها.

**مسئله**: که سړی وايي چې زما دې په قرآن قسم وي، دا یمین دی په نېز د ائمه ثلاثه وو، او امام اعظم رحمه الله وايي چې دا یمین نه دی لعدم العرف بالیمین بالقرآن.

**درويش وايي**: چې د امام اعظم رحمه الله عرف د خپل عصر مراد دی والا فالعرف اليوم جار بالحلف بالقرآن، ولهذا قال الامام ابن الهمام ان اليمين بالقرآن متعارف الآن فيكون يميناً عند ابي حنيفه رحمه الله ايضاً كما هو عند الائمة الثلثة، ولې چې امام اعظم رحمه الله چې په قرآن قسم اخسته یمین نه باله خو علت یې عدم عرف وګانه، نو چې في الزمان الحاضر عرف په جاري سو، نو مانع د یمین والي زائل سو فهو یمین عنده ایضاً وعلى هذا اليمين بالمصحف فان المراد به القرآن نه صرف کاغذان.

**مسئله**: که چا وویل چې زما دې قسم وي په کعبه شریفه او یا زما دې قسم وي په نبي ﷺ دا یمین نه دی او نه پر ده کفاره سته په نېز د امام اعظم رحمه الله، او امام شافعي، امام مالک او امام احمد په مشهور روایت کې دده وايي چې قسم بالنبي یمین دی، زموږ دلیل دا دی چې ابن عمر رضي الله عنه وايي "من حلف بغير الله فقد اشرك رواه ابو داؤد"

**درويش وايي**: چې مراد په حدیث مذکور کې تشدید دی په حلف بغير الله کې لا انه مشرك حقيقةً والله اعلم صاحب هدایه وايي چې عدم یمین والی په دې صورت کې دی چې والنبي وايي، او که یې داسې وویل که ما دا کار وکړی، نو زه بېزاره یم د نبي ﷺ څخه او یا زه بېزاره یم له کعبې مبارکې څخه او یا به زه یهودي یم یا

کافر یا نصاری یم یکون یمیناً انتهی بحذف بعض.

**مسئله**: که چا داسې وویل چې پر ما د غوښو مثلاً خوراک حرام دی که ما دا فلانی کار وکړی، زموږ په نېز یمین دی خلافاً للشافعي، زموږ دلیل دادی چې علیه الصلوٰة والسلام ماریهﷺ او شرب العسل پر ځان حرام کړي وه، فنزل قوله تعالی "یا ایها النبي لم تحرم ما احل الله لک قد فرض الله لکم تحلة ایمانکم کما في البخاري والمسلم" نو خدای پاک په دې آیت کې تحریم الحلال یمین وباله او علیه الصلوٰة والسلام قسم پر ځان مات کړی او کفاره یې ورکړه.

**پوښتنه**: که یو چا داسې وویل چې پر ما یې د دینا خواږه حرام که زه دا فلانی کار وکړم، آیا دا یمین دی او که څرنګه؟

**ځواب**: هو! دا یمین دی، ولې چې د مؤمن له حال څخه دا فهمیږي چې دده مراد د دنیا له خوږو څخه حلال شیان دي، نو ده یو حلال په تحریم سره چې یمین غوټه کېږي، نو د ټولو محللاتو په تحریم سره به ولې نه وي، او بعض خلګ چې وایي چې مراد د ماینه خطاوتلی دی، ولې چې دې سړي خو لفظ د جمع استعمال کړی دی ولې چې په پښتو کې خواږه جمع د خوږ ده، نو څرنګه به یوازې مراد ماینه وي فافهم فانه سانح عزیز.

**مسئله**: که یو سړي داسې وویل که ما دا فلانی کار کړی وي یعني في الماضي نو زه یې یهودي او یا زه له اسلام څخه بېزاره یم، او هغه کار یې کړی و، نو دا یمین غموس دی په نېز د ابي حنیفهؒ او کفاره نسته باندې البته ګناه کبیره ده. صاحب الهدایه وایي چې صحیح داده که دده په خیال یمین و نو کفاره نسته باندې، ولې دا خو الفاظ د یمین نه دي او دده ګمان غلط دی او که دده خیال دا و چې په داسې یمین سړی کافر کېږي، نو کافر دی لانه رضي بالکفر، ابو داؤد او نسائي او ابن ماجه له بریدهؓ څخه روایت کړی دی ده وویل چې رسول اللهﷺ وویل چې اني بریئ عن الاسلام یعني في الفعل الماضي بان قال ان فعلت فان کاذباً یعني هغه یې کړی و فهو کما قال یعني له اسلام څخه خارج سو، وان کان صادقاً یعني هغه کار یې نه وو کړی لن یرجع الی الاسلام سالماً، اسلام ته هرګز سالم نه سي راتلای، ولې داسې استعمالول ګناه، یعني البرائة عن الاسلام.

**فائده:** که سړي کړی فعل قسم په صیغه د ماضي او جوت یې کړی په نامه د خدای او یا یې یو صفت د خدای ﷻ داسي وویل اقسمت بالله او حلفت بالله او شهدت بالله او عزمت بالله لافعلن کذا زه به فلانی کار کوم فهو یمین منعقدة بلا خلاف وعلیه الکفارة ان حنث، او که یې په صیغه د مضارع وویل بان قال اقسم بالله او احلف بالله فهو یمین عند ابي حنیفه واحمد وعند الشافعي لایکون یمیناً الا بالنیة، ولي چي احتمال سته چي دده دي مراد له استقبال څخه وعده بالقسم غرض وي، او احناف وايي چي فعل مضارع خو حقیقت ده په زمان حال کي او مجاز په استقبال د وعد بالقسم احتمال نسته نو حلف دی بالفعل، البته که سین او سوف یې ورسره ووایه، نو وعد بالقسم ده فافهم.

## فَكَفَّارَتُهُ إِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسَاكِينَ

نو کفاره د ماعقدتم الایمان یا کفارة د معقود الایمان والشرط محذوف ای اذا حنثتم او نقضتم.

**پوه سه:** چي د کفاره معنی داده چي دا پټوي ګناه د قسم ویذهب اثمها یعني ګناه د حانث یې پورته کړه دودی، ورکول دي لسو مسکینانو ته.

**پوه سه:** چي په نیز د امام اعظم رحمه الله کفارة قبل الحنث نه ده روا یعني یو وار به سړی ځان حانثوي او بیا به کفاره د دجهت چي کفاره ګناه پټوي ګناه حنث دی چي حالف دی یو ورز ګناه وکړي چي حنث وروسته ته دي هغه په کفاره پټه کړي او په حدیث کي هم راغلي دي "من حلف علی یمین ورئ غیرها خیراً فلیات بالذي هو خیر ثم یکفر عن یمینه" ترجمه که چا قسم واخستی پر یمین باندي، پوه سه! چي مراد له یمین څخه محلوف علیه فعل دی او بیا د حالف په خیال کي غیر د محلوف علیه خیر ورغلی.

**پوه سه:** چي ضمیر مؤنث د غیرها راجع دی و یمین ته چي هغه مؤنث سماعي دی نو دی راتګ وکړی په هغه کار سره چي خیر دی یعني په قسم کي ځان حانث کړي او وروسته دي کفاره د یمین ورکړي مثلاً سړی د ورور سره جنګ وکړي، نو ده قسم واخستی چي زه به ستاسره په ژوند وصله رحمي نه وکړم او یا به پر یوه کاسه او سترخان دودی، درسره وخورم الی غیر ذالک نو دا سړی دي ځان حانث کړی او بیا دي کفاره د یمین ورکړي.

**مسئله**: لس مسکینانو ته اطعام عام که پر وجه د تملیک وي چي هر مسکین ته نصف صاع د غنمو ورکړي او پر ډول د اباحت وي چي لس مسکینان غرمه او ماښام مېلمانه کړي هرڅونده چي یې وخوړل او ځانونه یې ماړه کړه د کفارې غاړي یې خلاصي سوې هذا عند ابي حنیفهؒ، او امام شافعيؒ وایي چي تملیک شرط دی کفارة الیمین قیاسوي پر صدقة الفطر او زکوٰة باندي چي په هغو خواه مخواه تملیک غواړي او په اباحت یې غاړي نه خلاصېږي، موږ وایو دا قیاس مع الفارق دی. ولي په زکوٰة کي د ایتاً لفظ راغلی دی یعني آتو الزکوٰة او په صدقة الفطر کي د اداً لفظ راغلی دی یعني في قوله ﷺ ادوا عن آه او اتیان او اداً بېله تملیکه نه حاصلېږي یعني اباحت ته آداً او ایتاً نه ویل کېږي. او په کفاره کي خو لفظ د اطعام راغلی دی اطعام تملیک او اباحت دواړو ته شامل دی. بلکي ظاهره ترجمه د اطعام خو جعل الغیر طاعماً وهو في الاباحة لکن تملیک بالاجماع روا دی ولهذا قال الحنیفیة بالامرین.

**فائده**: د حضرت علي ؓ څخه روایت دی په تفسیر کي ددې آیت "اطعام عشرة مساکین" چي غرمه او ماښام به ډوډی ورکوي "ان شئت خبزاً او لحماً او خبزاً وزیتاً او خبزاً وسمناً او خبزاً و تمراً انتهی.

**درویش وایي**: چي دا قول د حضرت علي ؓ بیان د ماهو الاولی دی ورنه اصلي **مسئله** کفارة پر طریقه د اباحت داده چي په ماسوی د غنمو د ډوډی. خو حتماً یوادم شرط دی تاچي مسکین ځان ښه په موړ کړي لکه اوربشینه ټیکله او یا جوارینی پټیري په خوړو خو به یې ادام سرې ځان نه سي مړولای او د غنمو په ډوډی که ادام متعارف و، نو خو په ډوډی سره خوړل کېږي لکه غوښې، سرکه، دوښا وغیره لمن المواذمة وهو الموافقة. نو ورجي ادام نه لري.

**مسئله**: که په لسو مسکینانو کي یو داسي کوچنی پکښې و چي تازه د ډوډی پر خوراک راغلی و هغه نه دی حساب، ولي هغه پر یوه ځای خپته نه سي ډکولای بلکي لږ لږ خوري مګر ډېر وارونه.

**فائده**: که یې یوه مسکین ته لس ورځي ډوډی ورکړه په نېز د امام اعظمؒ روا ده، او که یې یوه مسکین ته په یوه ورځ پر طریقه د اباحت ډوډی ورکړه د یوي

ورځي په ځای کي دربږي. ولي چي يوه ورځ لس واره ډوډۍ خوک نه سي خوړلای او که يې پر طريقه د تمليک د لسو ورځو کفارة ورکړه، بعض علما وايي صحيح کيږي او که يې و يوه مسکين ته د لسو مسکينانو طعام ورکړی پر يوه ځای که څه هم تمليکاً وي د يوې ورځي غاړي په خلاصېږي وهذا کله عند الامام الاعظم رحمه الله ع. . . وللناس فيما يعشقون مذاهب. اشارة الى اختلاف المذاهب.

**يوه سه**: چي د هر مسکين لپاره په نيز د امام اعظم رحمه الله نصف صاع من بر او صاع من شعير او تمر وهو قول الشعبي والنخعي وهو قول علما العراق ايضاً وقول سعيد بن جبير ومجاهد ايضاً.

**فائده**: ورکړه د قيمت د غنمو من الدراهم والدنانير روا ده په نيز د ابو حنيفه رحمه الله خلافاً لغيرة من الائمة.

**مسئله**: که يې کفاره و اهل ذمه وو ته ورکړه د امام اعظم رحمه الله په نيز روا ده ولي چي آيت د اطعام مطلق دی و لقوله تعالى لاينهاکم الله عن الذين لم يقاتلوکم في الذين الآية. او په نيز د جمهورو نه روا قياساً على الزکوة لانه لايجوز صرف الزکوة الى ذمي اجماعاً ونحن نقول ليس هٰ قياس جامع.

## مِنۡ اَوۡسَطِ مَا تُطۡعِمُوۡنَ اَهۡلِيۡكُمۡ

له منځني څخه د هغه طعام چي تاسي خپل اهل ته ورکوئ يعني الاولاد والزوجات والخدم وغيرهم.

**يوه سه**: چي بغوي رحمه الله د تعجب ور تفسير کوي چي وايي اى من خير قوة عيالكم وهذا بعيد من لفظ الاوسط. والصحيح ما قيل المراد المتوسط في الكيفية لا اعلى ولا ادنى. مثلاً يو چاته، چي معزز گران ميلمه راسي ورجي غوښي پوډين د چرگانو د غوښو غورمه ورجوړه وي او چي يو ميانه ميلمه ورته راسي صرف غوښي او ورجي په ميلماني کي ورکوي او دده خپل د کور او عيال غالباً خوراک ښوروا وي. نو فقراً ته چي يې ورکوي دا دده عمومي خوراک دی په کفاره ورکړه کي.

**سوال**: دده عمومي خوراک خو ادنی دی؟

**ځواب**: دغه دده د کور خوراک خو په دې متوسط دی چي دده د درمياني حال سره برابر دی؟

**پوه سه:** چي دا آیت دلیل دی د مذهب د ابو حنیفهؒ چي اطعام پر وجه د اباحت هم روا دی یعني تملیک نه دی ضروري کما قال غیره.

**فائده:** روح البیان او مظهري وایي چي من اوسط په محل کي د نصب دی یعني صفت مفعول مطلق دی والتقدیر ان تطعموا عشرة مساکین طعاماً من اوسط آه.

## أَوْ كِسْوَتُهُمْ

او یا کالي د لسو مسکینانو عطف دی پر اطعام باندي.

**پوه سه:** چي مذهب د ابو حنیفه او د ابي یوسف دادی چي ادنی د کسوة دادی چي اکثر د بدن یې په پټ وي لکه قمیص او پرتوگ یا قمیص او لنگ نو یوازي پرتوگ په کفاره نه دی کافي که څه هم لمونځ پکښي روا دی، ولي په عرف کي چي سړي یوازي پرتوگ اغوستی وي خلگ یې لڅ بولي او لنگوټه او رخچینه صدری وغیره په کفاره کي نه دی شرط او په نیز د امام مالک او امام احمد او امام محمد رحمهم الله ادنی کسوة هغه دی چي لمونځ پکښي روا وي نو د نر لپاره یو پرتوگ فقط او یا یو لنگ فقط او یا اوږد قمیص کافي دی.

**پوه سه:** چي د اوږد قمیص قید درویش له څانه وروایه، ولي چي په عصر حاضر کي د نرانو قمیصان د کوناتو تر منځه پوري وي چي په هغو کي لمونځ نه دی روا، او امام شافعيؒ وایي چي په کفاره کي ادنی مایطلق علیه اسم الکسوة کافي دی نو دده په نیز یوازي لنگوټه یا یوازي لنگ یا یوازي قمیص هم کافي دی که څه هم په دغو ملبوساتو کي لمونځ نه وي روا او په یوازي خولۍ کي دده د اهل مذهب اختلاف دی چي کافي ده او که نه.

## أَوْ تَحْرِيرُ رَقَبَةٍ

یا اعتاق دی د مریي یا بنځي.

**پوه سه:** چي په نیز د امام اعظمؒ په کفارهٔ یمین او ظهار کي رقبه کافره هم روا ده لاطلاق النص فیهما بخلاف کفارة القتل خطأً، ولي چي هغه مقید ده په مؤمنه سره بالنص او د امام شافعيؒ په نیز په کفاره یمین او ظهار کي هم رقبهٔ کافره نه ده کافي، دی قیاسوي پر کفارة القتل باندي مورد وایو چي مطلق دی پر خپل اطلاق

جاري وي، او مقيد دی پر خپل تقيد كذا في الهداية وفي كتب اصول الفقه.

**فائده:** كلمه د "او" په خصال ثلثه وو كي د كفارة اليمين يعني اطعام او كسوة او تحرير رقبة كي لپاره د تخيير ده يعني حالف حانث اختيار لري هر يو ه چي وركوي كما ورد في الحديث الصحيح النبوي ﷺ چي ابن عباس ﷺ وايي چي څه وخت چي آيت د كفارة اليمين نازل سو، نو حذيفه ﷺ وويل يا رسول الله ﷺ نحن بالخيار قال انت بالخيار ان شئت كسوت وان شئت اطعمت وان شئت احررت او كما قال رسول الله ﷺ.

## فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ

او كه حالف حانث نه درلودي هيڅ شي د امور ثلثه وو څخه يعني عاجزه و دومره دده مال و چي د كور او عيال خرڅه يې كړي يا پوره نه پر باندي بالاسي چي اطعام فقراً ته يا كسوت وركړي او نه ده د ازادولو دمريي طاقت درلودی، او بعض فقهاً وايي چي كه حالف دومره مال درلودی چي دا ممكنه وه چي اطعام يا كسوت د فقراؤ يې كولای سوه او يا مريی په رانيسي او ازاد يې كړي كه څه هم د عيال خرڅه نه سي ورپاته هغه عاجزه نه دی، ولي چي د عيال د خرڅ لپاره به مزدوري وكړي و هو قول الحسن البصري وسعيد بن جبير.

**مسئله:** حلف كه مريی واخلي او حانث سي د هغه يو ازي روژې كفاره دي، ولي چي دی قادر پر اطعام يا اكسأ يا تحرير قادر لان جميع مافي يده للمولى ولاملك له على كل شئ او كه مالك دده څواني ورسره وكړي او دده يو د امور ثلثه وكړي د مريي غاړي نه په خلاصېږي كذا في المستسعى من كتب الفقه.

**فائده:** كه مريي حالف حانث په روژو پيل وكړی روژې يې نه وي پوره كړي چي بادار آزاد كړی او هم يې مال پيدا كړی چي قدرت پر امور ثلثه وو ورته موجود و، كفارة مالي ده.

## فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ

نو پر دې عاجز باندي درې روژې نيول لازم دی.

**پوښته:** چي "صيام ثلثة ايام" د مبتدأ محذوفي خبر دی ای فكفارته طعام الخ.

والجملة جزا لقوله "فان لم يجد آه"

**پوه سه**: چي په نيز د امام مالك رحمه الله پر له پسې روژې نيول واجب نه دي، ولې چي بعض مطلق دی بل كه تتابع مستحب ده او د امام شافعي رحمه الله هم داغه مذهب دی او په نيز د امام اعظم او امام احمد تتابع شرط ده، امام اعظم رحمه الله دليل په دې وايي چي په قرآئت كي د عبد الله بن مسعود رضي الله عنه داسې راغلي دي "فصيام ثلثة ايام متتابعاة" او دا قرائت مشهور دی نو قيد د مطلق نص په صحيح دی.

**مسئله**: فقهاً وايي چي بعض داسي قسمونه سته چي پر حالف باندي مراعات فرض وي لكه سړی چي قسم واخلي چي لمونځ به په قصده نه قضاً كوم مثلاً.

**سوال**: لمونځ خو فرض دی، نو د قسم څه فائده ده؟

**ځواب**: د قسم فائده يې تاكيد دی او بعض داسې قسمونه هم سته چي پر حالف يې حنث او كفاره لاذمه ده لكه يو سړی چي قسم واخلي چي زه زنى كوم يا به لمونځ نه كوم مثلاً پر هغه فرض ده چي ځان دې حانث كړي او كفاره دې وركړي. وفي الحديث "من حلف ان يطيع الله فليطعه" يعني ځان دې حانثوي "ومن ان يعصيه فلا يعصيه" يعني ځان دې حانث كړي. او په قسمو كي كه حنث افضل وي لكه قسم پر هجران د مسلم حنث افضل دی. او پر ته له دغو درو قسمو څخه چي حنث او بر پكښي برابر وي ځان نه حانثول افضل دی لتعظيم اسم الله الذي حلف به.

**مسئله**: په وجوب كي د كفارې كه له سړي څخه په هېره قسم مات سي او كه څوك په زوره قسم په مات كړي سره برابر دي.

ذٰلِكَ كَفَّارَةُ أَيْمَانِكُمْ إِذَا حَلَفْتُمْ ۚ

اى المذكور في ماقبل كفارة د قسمو ستاسي چي تاسي حلف او قسم واخلئ والمراد وحنثتم.

**پوه سه**: چي د كفارې وجوب خو په اجماع بعد الحنث دی لكن په دې كي اختلاف دی چي كفاره قبل الحنث روا ده او كه نه. امام شافعي او امام احمد په دغه آيت سره دليل وايي چي كفاره قبل الحنث روا ده. ولې چي په دې آيت كي يې د كفارې نسبت و ايمانو ته كړی دی و حنث ته يې نه دی كړی. او اضافت دليل دی د سببيت



Scanned by CamScanner

د مضاف الیه لره مثل صلوة الظهر ، نو دا معلومه سوه چي ایمان سبب د وجوب د کفارې دی البته وجوب الاداً بعد الحنث ده، وهذا قول احمد ومالک والشافعي في القدیم، وعند الامام الاعظم رحمه الله نه ده روا دمخه کول د کفارې پر حنث باندي مطلقاً که مالي وي لکه اطعام او کسوة او که روژې وي، دی وایي چي سبب د کفارې خو حنث دی چي ګناه ده چي تعظیم د اسم الله یې نه وکړی دون نفس الیمین لان لفظ الکفارة نبیٔ عن ستر الذنب وانما الذنب في الحنث دون الیمین.

## وَاحْفَظُوٓا اَیْمَانَكُمْ ؕ

**یوه سه:** چي بعض مفسران وایي چي مراد له حفظ الیمین څخه دادی چي تاسي پر هر شي قسمونه مه اخلئ چي دا د آدب سره د اسم الله خلاف دی، او بعض مفسرین وایي چي قسم چي دي واخستی نو بیې رعایت کوه یعني ځان مه حانثوه په شرط ددې چي دوام د یمین مفضي و ترک ته د خیر نه وي لکه ترک د صلة الرحم کما حلف ابوبکر رضي الله عنه في قصة اتهام بنته عائشة رضي الله عنها بالزنی کما سیجئ في القرآن علی مسطح ابن خالته الذي ینفق علیه لکونه مسکیناً مهاجراً بدریاً بسبب ان مسطح ایضاً کابن ابي والمنافقین کلهم اتخذ سهماً في اتهام عائشة رضي الله عنها بالزنی مع صفوان فلما اظهر الله تعالی برائة عائشة من الزنی في ثمانیة عشر آیة کما سوف یجئ تمام القصة في سورة النور من الجزء الثامن عشر. چي د صدیقة عائشة بن ابي بکر الصدیق رضي الله عنه برائت په قرآن سره ښکاره سو، نو ابوبکر الصدیق وویل والله لا انفق علی مسطح ابداً فنزل قوله في تلک السورة "ولا یاتل الو الفضل والسعة ان یؤتوا اولی القربی والمساکین والمهاجرین في سبیل الله ولیعفوا ولیصفحوا الا تحبون ان یغفر الله لکم والله غفور رحیم" د آیت تفسیر: قسم دي اخلي خاوندان د فضل یعني د ښو صفاتو چي مراد ځني ابوبکر رضي الله عنه او خاوندان د فراخی د رزق دي چي هم ابوبکر ځني مراد و له دې څخه چي ورکوي و اقرباؤ، مساکینو او مهاجرینو ته په لاره کي د خدای جل جلاله.

**درویش وایي:** چي په آیت مذکوره کي لفظ د جمع راغلی دی لکن مراد ځني مسطح ابن خالة ابوبکر رضي الله عنه دی. او تاسي عفوه ورته وکړئ او دده له ناوړه کار څخه چي اتهام د عائشې رضي الله عنها و په زنا سره مخ واړوئ او ستاسي نه ده خوښه چي خدای و تاسي ته بخښه

وکړي او خدای ﷻ غفور او رحیم دی، دا آیت چي ابوبکر ﷺ واورېدی وه یې ویل بلی احب ذالک یعني مغفرت د خدای ﷻ مي خوښ دی، او وه یې ویل چي قسم په خدای ﷻ دی که زه د مسطح انفاق منع کړم ابداً، نو ابوبکر په دغه قسم کي ځان حانث کړی او انفاق یې بیر ته جاري وساتی او کفاره د یمین یې ورکړه.

**درویش وایي:** چي زما غرض دغه جزاً خیر و چي ابوبکر ﷺ د خیر له کاره چي صله رحمي وه د مسطح سره قسم اخستی و لکن ځان یې حانث کړی او کفاره یې ورکړه.

كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۸۹﴾

دغه رنګه لکه خدای ﷻ چي بیان کړي دي وتاسي ته احکام د خپل دین مبین اسلام ددې لپاره چي تاسي شکر وواياست د نعمت د تعلیم د خدای ﷻ وتاسي ته چي په هغو نفع د دنیا او اخرت موجود ده.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْاَنْصَابُ وَالْاَزْلَامُ رِجْسٌ

اې هغه کسانو چي ایمان یې راوړی دی! دي شراب او قمار په هره نوع چي وي حتی د اختر په ورځو کي چي خلګ هګی سره جنګوي یا کتار کوي او روپۍ یې پر اېښي وي الی غیر ذالک من انواع القمار او بتان چي د عبادت لپاره تاسي درولي دي، کما في ماحول الكعبة في الجاهلية.

**یوه سه:** چي انصاب جمع د نصب ده په زور د نون او په سکون د صاد، او هغه غشي چي تاسي په خیر او شر په معلوماوه چي پر یوه غشي به نوشته وه امرني ربي او پر بل به نوشته وه نهاني ربي او پر بل به نوشته وه انت مخیر.

**یوه سه:** چي په اهل جاهلیت کي به چي چا د سفر یا د تجارت یا د جنګ یا د نکاح د چا د لور یا خور سره الی غیر ذالک، نو د خیر او شر په ازلامو به یې معلوماوه. دا ازلام د کعبې د خادمانو په تصرف کي وه لکه چي تېره سوه چي پر یوه غشي به یو څه نوشته وه او پر بل به بل څه نوشته وه، نو دوی به پر هغه عمل کاوه.

**فائده:** په شریعت کي د ورته کارو لپاره مسلمانانو ته خدای او رسول استخاره ښوولې ده، لکن په اوسني زمانه کي د جاهلیت و کاروته ورته کارو لپاره کوډګر ملایان سته چي څوک ورسي چي زه د فلاني کار اراده لرم ته زما فال راوګوره دده

په کتاب کې یوه دائره نوشته وي په حساب د ابجد یا په حروفو د ابجد، وروسته بیا تفصیل ددې دائرې نوشته وي، نو کوډګر ملا و هغه ته ووایي چې سترګې پټې کړه او ددې دائرې پر یو ځای ګوته کېښېږده هغه ګوته پر یوه علامه خوامخوا لګېږي، وروسته بیا ملا صاحب هغه تفصیل پسې ګوري او په هغه کې چې هرڅه نوشته وه هغه بیان سائل د فال کوي.

**یوه سه:** چې د رجس معنا داده چې عقول سلیمه بد ځني وړي او نفرت ځني کوي.

مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ فَاجْتَنِبُوْهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ۝

له عمل څخه د شیطان دي یعني شیطان دغه کارونه و خلګو ته ښائسته کوي نو پر هېز ځني وکړي ددې لپاره چې تاسي به خلاصون پیدا کړي ددغو عملو له جزا څخه په ورځ د قیامت.

**سوال:** ضمیر د "فاجتنبوه" خو مفرد دی او مرجع یې ډېر شیان دي کمامر؟

**ځواب:** مفرد ضمیر و رجس ته راجع دی چې هغه ټولو ته شامل دی.

**سوال:** رجس خو هم مفرد دی، نو حمل یې پر څلورو شیانو څرنګه صحیح کېږي؟

**ځواب:** رجس خبر دی د یوازي خمر او د معطوفاتو د هر یوه خبر محذوف دی. او یا د "انما الخمر آه" سره مضاف محذوف دی. والتقدیر "انما تعاطي الخمر الخ" نو رجس پر تعاطي محمول دی عطف المفرد علی المفرد.

**درویش وایي:** چې دا څلورم آیت چې د شرابو په باره کې نازل سوی دی او تفصیل یې ددې تفسیر په سورة بقره کې تېر سو، او حرمت قطعي د شرابو په سنه درې کې د هجرت وروسته تر غزا د احد نازل سوی دی.

**یوه سه:** چې خمر ام الخبائث دی حتی چې علما کرام په قسم سره وایي چې همېشه توب د شرابو پر ځښلو تر مرګه پوري او ایمان به نه سي سره یو ځای، نسائي د عبدالرحمن بن الحارث څخه روایت کړی دی چې هغه وایي چې ما واورېده د عثمان بن عفان ﷺ څخه چې یو سړی تر تاسي دمخه امتو کې چې ډېر ښه د خدای ﷻ عبادت یې کاوه، نو یوې ګمراه ښځي وده ته قصد وکړی چې دغه عابد به زه ګمراه کوم، نو یې عابد ته مینځه ور واستوله چې ته راسه زموږ یوه موضوع

ده ته به پکښې شاهد سې، نو عابد د ښځې سره راهي سو. مینځې چې عابد په یوې دروازې ددننه کړی هغه به یې قلف کړی حتی چې عابد یې و یوې ښائستې ښځې ته ورساوه چې د هغې سره یو غلام ناست و. او د هغې ښځې و بغل ته د شرابو بوتل پروت و. نو هغې ښځې ورته وویل چې موږ ته د شاهدی لپاره نه یې راغوښتی بلکې ددې لپاره مو راغوښتی یې چې یا به زما سره زنې کوې او یا به دغه شراب څښې او یا به دغه غلام قتل کوې، عابد ورته وویل چې شراب راکړه وه به یې څښم، هغې چې شراب ورکړه عابد ته یې ښه خوند ورکړی، عابد ورته وویل چې ته یو گړی ماته مهلت راکړه عابد چې د سکر درجې ته ورسېدی ښځې ته یې ور حمله کړه ښځه ورته پرېوتله عابد کلکه زنې ورسره وکړه، له زنې څخه چې فارغه سو هغې ورته وویل چې دغه غلام قتل کړه اخیر یې غلام هم په قتل کړی. نو هغې ښځې چې دی ښه گمراه کړی د مینځې په لاس یې ورکړی او دروازې یې تولې ورخلاصې کړې دباندې یې وشاړه انتهی مع زیادة.

**فائده:** ترمذي د عمر بن الخطابؓ څخه داسې روایت کړی دی چې ده وویل "اللهم بین لنا في الخمر بیاناً شافیاً" خدایه ته موږ ته بیان وکړی په باره کې د شرابو داسې بیان چې زموږ د زړه شفا په وسي.

**درویش وایي:** چې د عمرؓ غرض حرمت و، نو نازل سو هغه آیت چې په سورت بقره کې دی "یسئلونک عن الخمر والمیسر قل فیهما اثم کبیر ومنافع للناس واثمهما اکبر من نفعهما الآیة" علیه الصلوة والسلام عمرؓ راغوښتی دا آیت یې ورته تلاوت کړی چونکه په دې آیت کې یکلخته حرمت نه و، نو عمرؓ بیا وویل "اللهم بینا لنا في الخمر بیاناً شافیاً" نو بیا هغه آیت د سورة النسا نازل سو "یاایها الذین آمنوا لاتقربوا الصلوة وانتم سکاری الآیة" بیا عمرؓ را وبلل سو او علیه الصلوة والسلام دا آیت ورته تلاوت کړی چونکه دې آیت د عمرؓ د زړه مراد نه کې حاصل بیا عمرؓ وویل "اللهم بین لنا في الخمر بیاناً شافیاً" بیا دا آیت نازل سو چې په سورة مائده کې دی "انما یرید الشیطان الی قوله فهل انتم منتهون" فدعی عمرؓ فقرئت علیه فقال عمرؓ انتهینا انتهینا د عمرؓ د زړه مراد حاصل سو. او د شرابو حرمت ابدي نازل سو، او عمرؓ بیان شافي واورېدی فرضی الله تعالی عنه کیف طلب

مراراً للامة المحمدية خلاصاً من الخبائث لكن درويش وابي چي اوس هم په بعض اسلامي مملكو تو كي يا پټي يا ښكاره شراب خانې سته چي بعض فساق او فجار ورځي خپل كورو ته يې راوړي او په كورو كي يې په مزه مزه څښي اللهم صبراً.

**إِنَّمَا يُرِيدُ الشَّيْطَٰنُ أَن يُوقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَٰوَةَ وَالْبَغْضَآءَ فِى الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ**

اراده نه لري شيطان مگر دا چي ستاسي تر منځ عداوت او بغض پيدا كړي لكه يو انصاري چي د سعد بن ابي وقاص ﷺ سر د اوښ په كرغښي وواهه او سر يې ورمات كړى.

**درويش وابي:** چي دا قصه په تفسير كي د سورت ددې كتاب په تفصيل تېره سوې ده، او په قمار كي گاهي داسي اندازې ته يو سړى ورسېږي چي مال به يې تولـه بايللوى آخير به يې خور يا لور په خمار كي كښېښوله هغه به يې هم بايلول اخير چي به دېر سوځتي سو د جانب مقابل سره په عداوت او بغض بلكې په جنگ به اخته سو.

**پوه سه:** چي "في الخمر آه" متعلق دى په "يوقع" پوري او د عداوت او بغضاً په منځ كي فرق دادى چي هر عدو مبغض دى او عكس كلي يې نسته او كلمه د في په معنى د با سببيه ده لكه په دې حديث كي "ان امرئة دخلت النار في هرة اى بسبب ظلمها على هرة بان ربطها حتى ماتت جوعاً"

**پوښتنه:** په اول آيت كي انصاب او ازلام خو هم راغلي وه، نو تخصيص په دې آيت كي ولي د خمر او ميسر وكړى؟

**ځواب:** دا آيت خو خطاب دى په مؤمنينو پوري والمقصود نهيهم من الخمر والميسر. ولي چي انصاب او ازلام د مؤمن له شانه څخه دى؟

**سوال:** انصاب او ازلام يې ولي ورسره ضم كړه سره ددې چي هغه خو له افعالو څخه د اهل جاهليت وه؟

**ځواب:** لپاره د تاكيد د قبح د خمر او ميسر بمعنى ان هذه الاربعة متقاربة في القبح.

**وَيَصُدَّكُمْ عَن ذِكْرِ اللَّهِ وَعَنِ الصَّلَوٰةِ**

او هر يو له خمر او له ميسر تاسي منع كوي له ذكر څخه د خداى ﷻ او له لمانځه څخه. نو ضمير د يصدكم په تاويل د كل واحد راجع دى و خمر او ميسر دواړو ته فافهم.

**یوه سه:** چي "ویصدکم" اشاره ده و مفاسد دینیه وو ته د خمر او میسر، ولي سړی چي شراب وڅښي او سکر او لذت یې وزړه او دماغ ته ولاړ سي، نو دی په لذت کي غرق وي نو د خدای ﷻ له ذکر او لمانځه څخه غافله وي او نشه وي.

**درویش وایي:** چي د اوسنی زماني منشیات لکه چرس او هیروئین هم دغسي شان لري لکه د خمر، او دا کسان هم په نشه کي ډوب وي نه د خدای ﷻ ذکر کولای سي او نه لمونځ او دغه قمار والا که غالب سي د غلبې په لذت کي ډوب وي او هر ګړی هغه خپلي ګټلي روپۍ حسابي ذکر الله او لمانځه ته یې هیڅ فکر نه وي، او خمار والا مغلوب و نو دی په دې فکر کي ډوب وي چي څرنګه به یوه حیله جوړه کړي چي غالبه سي. ذکر الله او لمانځه ته په زړه او دماغ کي ځای نه لري ویدل علیه التجربة.

**پوښتنه:** لمونځ خو په ذکر الله کي داخل و، نو د لمانځه د تخصیص به څه فائده وي؟

**ځواب:** فائده د تخصیص یې تعظیم د لمانځ دی په دې معنا چي منع کونکي د لمانځه لکه منع کونکي د ایمان داسي دي لان الصلوة عماد الدین کما ورد في الحدیث الصحیح او لمونځ فرق دی په منځ کي د مؤمن او کافر قال رسول الله ﷺ بین العبد وبین الکفر ترک الصلوة رواه مسلم و ابو داؤد والترمذي وابن ماجه او احمد. له حدیث څخه د عبدالله بن عمرو رضي الله عنه چي له نبي علیه السلام څخه یې روایت کړی دی چي علیه الصلوٰة والسلام یوه ورځ د لمانځه بیان کاوه، نو یې وویل که چا دوام پر لمانځه وکړی کان له نوراً وبرهاناً ونجاةً یوم القیامة" او که چا دوام پر لمانځه نه کاوه "لم یکن له نوراً ولانجاةً" او په ورځ د قیامت به د قارون او فرعون او هامان او د ابي بن خلف یعني چي د علیه الصلوٰة والسلام سره یې سخته دښمني وه په کفارو کي د مکې.

**یوه سه:** چي یوه واقعه د خمر په اشتغال کي د لمانځه دا هم ده چي یوه ورځ عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه مهماني جوړه کړې وه وروسته د ماز دیګر تر لمانځه، نو د ډوډۍ خوړلو وروسته یې شراب هم وڅښله چي هغه وخت شراب حرام نه وه، نو د ماښام د لمانځه په وخت کي چي یې یو صحابي مخته کړی د لمانځه لپاره نو هغه وویل "قل یا ایها الکافرون اعبد ماتعبدون" په حذف د لا کلمه په ټوله سورت کي یې ووایه، ولي چي دده د شرابو نشه په سر کي وه، نو هغه آیت نازل سو یا ایها الذین آمنوا لاتقربوا الصلوة وانتم سکارٰی.

**درویش وايي**: چي دا ټوله قصه مفصله په تفسير کي د دې سورت تېره سوې ده او اعاده يې له فائدې څخه خالي نه ده.

فَهَلْ أَنتُم مُّنتَهُونَ ﴿٩١﴾

آيا تاسي وروسته تر ذکر د مفاسد دينيه وو د شرابو نه نهي کېږئ د شرابو له څښلو څخه.

**پوه سه**: چي لفظ د استفهام نهي دی د شرابو له څښلو څخه په ډېره بليغه وجه سره كما لا يخفٰى.

**فوائد شتّٰی**: پوه سه چي يو سړی ووايي چي زه فلانی کار کوم او متصل پسي ووايي ان شآ الله تعالى حنث او کفاره نه پر لازمېږي، او که يو سړی ووايي که ما دا فلانی کار وکړی پر ما يې مانيه طلاقه او متصل پسي ووايي ان شآ الله طلاق نه لازمېږي که څه هم هغه وکړي، او که سړی ماينې ته ووايي چي پر ما طلاقه يې ان شآ الله تعالى طلاق نه واقع کېږي، او که يو سړی و بل ته ووايي چي ما دا شی پر تا په زر روپۍ خرڅ کړی چي ايجاب يې بولي، او هغه بل ورته ووايي چي زما قبول دی ان شآ الله تعالى، نو عقد نه سو لازم، او که سړی بل سړی مکره او مجبور کړي چي ماينه به طلاقوې، دی ورته وايي چي پر ما طلاقه ده ان شآ الله تعالى طلاق نه واقع کېږي، که يو سړی بل سړي ته وايي چي ما به په دعا کي نه هېروې، نو دی وعده ورسره وکړي چي نه دي هېروم ان شآ الله تعالى، نو د وعدې وفا نه پر لازمېږي، او که يو سړی و بل ته ووايي چي مابنام زما مېلمه يې، دی ورته وايي چي بنه دی ان شآ الله تعالى، او دی مابنام مهمانۍ ته ور نه سي ګناه کار نه دی، او که يو سړی بل ته وايي چي ستا لور مثلاً په يوه لک روپۍ مهر ماته په نکاح راکړه دی ورته وايي چي درمي کړه ان شآ الله تعالى، نو عقد د نکاح نه غوټه کېږي.

**درویش وايي**: چي وعلى هذا فقس امثالي ماذكرنا، البته که چا و بل ته وويل چي ته مسلمان يې دی به ورته وايي هو مسلمان يم حقاً او ان شآ الله به نه ورسره وايي ولې چي په ايمان کي شک کفر دی، او بعض امامان صاحب المذاهب وايي چي ايمان خو په وخت کي د خاتمې معتبر دي، نو دا د ان شآ الله ويل وفعلي ايمان ته راجع نه بلکې و خاتمې ته د ايمان راجع دی، والخاتمة مستورة لا يعلمها الا الله عَزَّوَجَلَّ.

# وَأَطِيعُوا اللهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَاحْذَرُوا

او اطاعت وکړئ د خدای او د رسول د خدای ﷻ يعني په دې مورد کي د خمر او ميسر او بل په امتثال کي د ټولو واجباتو او په اجتناب کي د ټولو منهياتو، او تاسي بېر ېږئ له مخالفت څخه د خدای او د رسول.

# فَإِنْ تَوَلَّيْتُمْ فَاعْلَمُوا أَنَّمَا عَلَىٰ رَسُولِنَا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ

او که تاسي روی ګرداني او مخالفت وکړئ د خدای ﷻ له اوامرو څخه نو په دې پوه سئ چي نشته پر رسول باندي زمونږ مګر تبليغ د اوامر آلهيه يعني پر رسول ﷺ دانه ده لازمه چي تاسي په حتماً پر اوامر آلهيه مجبوره وي بلکې په ذمه کي د رسول بلاغ مبين دی وبس، او رسول کريم ﷺ خو خپله وظيفه پر وجه اتم و اکمل سره اجرا کړه او له عهده څخه د رسالت خلاص سو، او پر تاسي يې حجت قائم کړی او ستاسي عذرونه يې در قطع کړه، نو که ايمان نه راوړئ نو تاسي مستحق د اور ياست ابداً.

**پوه سه:** چي خدای پاک جوت کړه خمر او ميسر له بتانو سره ففيه تحريم بليغ في الخمر والميسر، او شايد دا قول د عليه الصلوٰة والسلام شارب الخمر کعابد الوثن مستفاد من هذه الآية. وفي الحديث الصحيح لعن الخمر وشاربها وساقيها وبائعها ومبتاعها وعاصرها ومعتصرها وحاملها والمحمولة اليه واکل ثمنها وفي حديث عن ابن عمر ﷺ قال عليه الصلوٰة والسلام من شرب الخمر في الدنيا ثم لم يتب منها حرمها في الآخرة رواه البغوي، رسول الله ﷺ وويل که چا وڅښل شراب په دې دنيا او توبه يې نه وکښل له دې ګناه څخه خدای ﷻ به حرام وګرځوي پرده په آخرت کي، وروی الترمذي وابن ماجه عن ابن عباس ﷺ قال قال رسول الله ﷺ من شرب الخمر لم يقبل الله له صلوٰة اربعين صباحا که چا شراب وڅښل خدای ﷻ يې نه قبلوي لمونځ څلويښت ورځي فان تاب تاب الله عليه" که يې وبه وکښل خدای ﷻ يې توبه قبولوي فان عاد لم يقبل الله له صلوٰة اربعين يوماً فان تاب تاب الله عليه فان عاد لم يقبل الله له صلوٰة اربعين فان تاب تاب الله عليه فان عاد في الرابعة لم يقبل الله له صلوٰة اربعين صباحاً فان تاب لم يتب الله عليه وسقاه من نهر الخبال. د طينة الخبال يا نهر الخبال په بل حديث کي د ابن عمر ﷺ څخه روايت دی عن

النبي ﷺ قال لا يدخل الجنة عاق ولا قمار ولا مدمن خمر، علیه الصلوٰة والسلام وویل چي نه سي داخلیدای و جنت ته ازاري یعني یا د مور او پلار او یا د استاذ، او نه قمار یعني د پر خمار باز او نه همیشه څښونکی د شرابو. رواه الدارمي وعن ابن عمر ﷺ قال رسول الله ﷺ ثلث قد حرم الله علیهم الجنة مدمن الخمر والعاق والدیوث رواه احمد والنسائي علیه الصلوة والسلام وویل چي پر درو کسانو په تحقیق خدای ﷻ حرام کړې دی جنت، د شراب څښلو عادي او ازاري او دیوث هغه سړی چي مایانه یې زنی کوي او دی په خبر وي.

**درویش وایي:** چي تحریم د خمر او میسر چي په هغه تشدید سره نازل سو لکه چي دړاندي تېره سوه، نو بعض صحابه کرامو ﷺ وویل چي بعض زموږ ورونه مسلمانان خو په داسي حال کي قتل سوه یا مړه سوه پر خپل فراش باندي او دوی څښل شراب او خوړلي یې د خمار روپۍ او خدای پاک رجس ورته وواپه، نو د هغو مړو یا قتل سوو ورونو حال به څه وي، چي شراب یې په نسو کي وه یا شهیدان یا مړه سوه فانزل الله تعالی هذه الآیة.

لَيْسَ عَلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ جُنَاحٌ فِيْمَا طَعِمُوْٓا

نسته پر هغو کسانو چي ایمان یې راوړی و او اعمال صالحه یې هم کړي وه ګناه په هغه شي چي څښلي یې وه شراب او یا یې خوړلي و مال د میسر یعني د مخه تر تحریم د خمر او میسر.

اِذَا مَا اتَّقَوْا وَّاٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ثُمَّ اتَّقَوْا وَّاٰمَنُوْا ثُمَّ اتَّقَوْا وَّاَحْسَنُوْا ؕ وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿٩٣﴾

هغه وخت چي دوی له شرک څخه ځان وساتي او ایمان راوړي پر خدای ﷻ په توحید سره، او عملونه د صالحات هم وکړي وروسته بیا د آینده شراب الخمر والمیسر څخه یعني بعد التحریم ځان وساتي او ایمان ولري پر تحریم ددغو دوو کارو، او احسان کوي د خلګو سره او یا ټول له عملونه پر طریقه د احسان کوي کما جا في الحدیث النبوي الطویل چي په یوه برخه کي د هغه داسي راغلي دي "الاحسان ان تعبد الله کانه تراه فان لم تکن تراه فانه یراک" او بعض مفسران وایي

چې اوله تقوی له شرک څخه ده او دوهم تقوی د ټولو محرماتو څخه ده او دریم تقوی له شبهاتو څخه ده، او د خدای پاک محسنین بندګان خوښ دي.

**درویش وایي:** چې جلال الدین الرومي رحمه الله په خپل کتاب مثنوي معنوي کې د احسان په باره کې داسې خوا‌ږه ابیات راوړي دي.

محسنان مردند و احسانها بماند ای خنک آن را که این مرکب براند
ظالمان مردند و ماند آن ظلمها وایی جانی کو کند مکر و دهان
گفت پیغمبر خنک آن را که او شد ز دنیا ماند ازو فعل نکو
مرد محسن مرد لیک احسانش نمرد نزد یزدان دین واحسان نیست خرد
وای آن کو مرد و عصیانش نمرد تانه پنداری بمرگ او جان ببرد

**درویش وایي:** چې دا بیتونه د هغه حدیث صحیح ترجمان دي "من سن في الاسلام سنةً حسنةً فله اجرها واجر من عمل بها الى يوم القيامة ومن سن في الاسلام سنةً سيئة فله وزرها ووزر من عمل بها الى يوم القيامة.

**حکایت غریبه:** یو کال په بني اسرائیلو کې وچ کالي راغلې وه، نو یو فقیر د بني اسرائیلو یو کوڅې ته ورغلی او د یوه بخیل غني د کور د دروازې ته ودرېدی او داسې یې وویل "تصدقوا علي لاجل الله" نو یوې نجلۍ د غني له کوره یوه بشپړه توده ډوډۍ ورته راوه ایستل او فقیر ته یې ورکړه، که ګوري د دباندې له خوا څخه د نجلۍ پلار غني بخیل راغلی او فقیر ته یې وویل چې دا توده ډوډۍ تاته چا درکړه؟ فقیر ورته وویل چې له دغه کوره یو نجلۍ راوه ایستل، بخیل ډېر متأثر او په کور ننوتی او خپل د لور راسته لاس یې وریږې کړی، نو دې غني ته خدای ﷻ په غضب سو، څه لږ زمانه وروسته ډېر مسکین سو او مړ سو، او هغه لاس پرې کړې لور یې پاته سوه چې پېغله سوه ډېره ښائسته وه یو ځوان په نکاح کړه ماښام چې سترخوان راوړه سو ښځه او مېړه پر سترخوان سره کښېنستل، ښځې چپه لاس و ډوډۍ خوړلو ته وه ایستی، ځوان ورته وویل چې رښتیا ده چې د فقیرانو اولاد بې ادبه وي ځوان ورته وویل چې راسته لاس راوه باسه او په راسته لاس ډوډۍ خوره، ښځې د مېړه د منت سره سره دوهم او دریم وار هم چپه لاس راوه ایستی، نو په خونه

کي هاتفي اواز وسو چي را وه باسه راسته لاس، ولي چي هغه خدای ﷻ چي تا د هغه پر نامه په کوچني والي دوډی فقیر ته ورکړې وه هغه خدای ﷻ تاته راسته لاس صحیح سالم درکړی، نو ښځي راسته لاس راوه ایستی او خپل میړه ته یې ټوله قصه وکړه کذا في روح البیان.

**يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَيَبْلُوَنَّكُمُ اللّٰهُ بِشَيْءٍ مِّنَ الصَّيْدِ تَنَالُهٗٓ اَيْدِيْكُمْ وَرِمَاحُكُمْ**

اې هغه کسانو چي ایمان یې راوړی دی هر آئینه امتحان به وکړي ستاسي خدای ﷻ په یو لږ شي سره چي د داسي لویو کارو څخه نه دی چي د دوی پښه به پکښي وښویېږي لکه ابتلاً په بذل الانفس والاموال سره له ښکار څخه چي خدای پاک به یې د ابتلاً لپاره تاسي ته درواستوي.

**پوه سه:** چي "من الصید" صفت دی د "شیئ ای کائن من الصید چي وبه رسېږي هغه ته ستاسي لاسونه او نېزې یعني بعضو ته به ستاسي لاس رسېږي او بعضو ته به نېزې.

**پوه سه:** چي ابن ابي حاتم له مقاتل بن حبان رحمه الله څخه روایت کړی دی چي دا آیت په عمره کي د حدیبیې نازل سوی دی چي علیه الصلوٰة والسلام د څورلس یا پنځلس یا شپاړس سوه اصحابو رضي الله عنهم سره په نیت د عمرې د ذي القعدې په میاشت کي له مدینې منورې څخه را روان وه لکن د مکې کفارو د مکې و دخول ته پرې نه ښول، نو دوی په حدیبیه کي چي د یو ځای نوم دی ورته واړول او ټوله محرمان وه، نو وحشي حیوانات لکه هوسی، مرغان او نور د ښکار شیان به ددوی په خېمو کي ګرځېدله چي صحابه کرامو رضي الله عنهم دومره وحوش او طیور ګاهي نه وه لیدلي، نو علیه الصلوٰة والسلام دوی منع کړه له نیولو څخه په سبب د احرام.

**درویش وایي:** چي قصه د عمر الحدیبیة ډېره اوږده ده چي پنځپل ځای کي به راسي.

**لِيَعْلَمَ اللّٰهُ مَنْ يَّخَافُهٗ بِالْغَيْبِ**

**پوه سه:** چي لام د "لیعلم" متعلق دی په "یبلوا" پوري ولي چي دغه ابتلاً ددې لپاره ده چي خدای ﷻ هغه کسان سره معلوم او جلا کړي چي د خدای ﷻ له عذابه بیرېږي، نو به ښکار نه کوي او هغه کسان چي له خدایه نه بیرېږي او ښکار وکړي.

**پوښتنه:** خدای ﷻ خو ازلاً خبر و، نو د "لیعلم الله" معنی به څه وي؟

**ځواب:** ذکر خو علم دی او مراد ځني وقوع د معلوم ده. فالمعنى ليعلم الله وقوع الخائف موجوداً كما يعلمه قبل وجوده چي دې ته د منطقو په کتابو کي علم تفصيلي وايي.

**درویش وایي:** چي پوره تحقیق د علم د باري تعالى په شرحه کي د سلم للقاضي محمد مبارک مطالعه کړئ وقل من ياتي بمثل التحقيق المذکور.

**پوه سه:** چي "بالغيب" له "من" ځخه حال دی ای متلبساً ذالک الخائف بالغيب ای من العذاب ای من العذاب المرتب او من الله سبحانه چي د نه دی ليدلی.

**پوه سه:** چي خدای ﷻ دا اعلام ددې لپاره ذکر کړه قبل الوقوع تاچي مسلمانان باخبره اوسي او د ښکار له معصيت ځخه صبر وکړي د احرام په حال کي دا اخبار عين رحمت او کومک دی د مؤمنانو سره.

**فَمَنِ اعْتَدٰى بَعْدَ ذٰلِكَ فَلَهٗ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿٩٤﴾**

نو که تجاوز وکړي يعني ښکار وکړي وروسته تر دې چي دوی ته خدای ﷻ خبر ورکړي چي دا ابتلاء ده من الله، نو هغه لره عذاب دی دردونکی. ولي چي تجاوز کونکي په دې لږ شي کي مراعات د حکم د خدای ﷻ ونه کړي، نو دی به ڇېري مراعات د حکم د خدای ﷻ وکړي له لويو کارو کي لکه جهاد في سبيل الله ببذل الاموال والانفس مثلاً.

**فائده:** مراد له "عذاب اليم" ځخه عذاب د اخرت دی که يې توبه نه وکښل، او تعزير به هم ورکول کېږي په دنيا کي او کفاره د ښکار به هم ورکوي.

**يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَاَنْتُمْ حُرُمٌ ؕ**

اې هغه کسانو چي ايمان يې راوړی دی تاسي مه وژنئ ښکار په داسي حال کي چي محرمان ياپه حج يا عمره کي ياست.

**پوه سه:** چي صيد هغه حيوان دی چي له خلګو ځخه ځان ساتي او په اصل خلقت کي وحشي وي که څه هم په اعتبار د ډېر اعتياد د انسانانو سره وحشيت پرې اېښی وي لکه هوسی. چي له کوچني والي ځخه په کور کي وساتل سي، نو هغه خپل خلقتي وحشت ترک کړي يعني که يې ايله کړي هم له کوره نه وځي، وامثال ذالک کثيرة لان

العارض قد علی من الطبع، نو که په خلقت کې ماکول اللحم وي لکه سوېان او د غره پسونه او که ماکول اللحم نه وي لکه پرانګان، زمریان او لوی فیلان، لکین امام اعظم رحمه الله وایي چې د صید له حکمه څخه وتلي دي هغه شیان چې په حدیث کې راغلي دي د هغو د قتل جواز لکه مار، لړم، موږک، حدات یعنې تپوس، کارګه والذئب العادي دون غیر العادي فیجوز قتل الکلب خصوصاً العقور والفهد هو حیوان صید دی او استئناس د خلګو سره عارضي لري، او بعض علماً وایي چې سپی صید نه دی وهو غیر متوحش بالطبع بلکې طبع یې استئناس د خلګو سره دی وبه قال ابو حنیفه رحمه الله، لکن امام اعظم رحمه الله هغه حیوانات څنې ایستلي دي یعنې صید یې نه بولي چې په حدیث شریف کې یې قتل روا سوی دی لکه مار، لړم، موږک، تپوس او کارګه لکن هغه کارګه چې مرادي غوښې خوري دون غراب الزرع، او لېوه او هغه درنده چې پر خلګو تجاوز او حمله کوي لکه پړانګ، زمری وغیرها، بخلاف غیر العادي لکه ګیدړه فیجوز قتل الکلب خصوصاً خوروری سپی، او بعض خلګ وایي چې سپی صید دی د خلګو سره یې الفت عارضي دی، او بعض علماً وایي چې سپی صید نه دی لانه غیر متوحش بالطبع. او ابن الجوزي رحمه الله وایي چې مراد له کلب څخه مطلق سبع دی، ولې چې علیه الصلوٰة والسلام و عتبه ابن ابي لهب ته ښیرا وکړه په دې الفاظو سره «اللهم سلط علیه کلباً من کلابک» او پر هغه زمری مسلط سو. دا قصه مخته تېره سوې ده.

**درویش وایي**: چې په عقرب کې تول اقسام داخل دي لکه غالبوزه، غونډک او اهلي پیشي ښکار نه ده عند ابي حنیفه رحمه الله لعدم وحشتها وغلط من قال هي متوحشة او الفت یې عارض دی.

**مسئله**: که یو محرم و بل ته د صید اشاره وکړه چې هغه محرم نه و، نو هغه هغه شی ښکار کړی د قتل جزاً سته پر محرم مشیر باندې، او یا یو سړی محرم و بل غیر محرم ته دلالت وکړي عنې داسې ولاړ سه: فلاني غره وشاته مثلاً هوسې ده ښکار یې کړه، نو د ښکار جزاً پر دلالت کوونکي باندې ده.

**مسئله**: که محرم نه و صید ته اشاره وکړه او نه یې دلالت بلکې غیر محرم پخپله ولیدی او قتل یې کړی محرمانو ته یې د غوښو خوراک روا دی کما في حدیث ابي

قتاده ﷺ چي دی محرم نه و او د غره پسه یې ښکار کړی، نو نور ملګري یې چي محرمان وه هغه غوښې ورسره وخوړلې څه وخت چي دا موضوع و علیه الصلوٰة والسلام ته پېش سوه، علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل چي ستاسي محرمانو څخه یو چا امر ور کړی و ابو قتاده ﷺ ته او یا یې د ښکار اشاره ورته وکړه؟ خلګو ورته وویل یا، نو علیه الصلوٰة والسلام، نو علیه الصلوٰة والسلام و محرمانو ته وویل "فکلوا ما بقى من لحمها.

**فائده**: د مرغه هګۍ ماتول هم په ښکار کي داخل دی خلافاً لداوٗد الظاهري.

**فائده**: علماؤ اجماع کړې ده که محرم ښکار وکړي او یا ښکار ذبح کړي حکم یې د میتة دی نه ې محرم ته خوراک روا دی او نه غیر محرم ته، او ثوري رحمه الله او نور علما وایي چي و غیر محرم ته یې خوراک روا دی وهو مذهب الشافعیة دوی یې پر ذبیحه د سارق قیاسوي لکن قیاس مع الفارق دی فتامل.

وَمَنْ قَتَلَهُ مِنْكُمْ مُتَعَمِّدًا فَجَزَاءٌ مِثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ

که چا ښکار قتل کړی له تاسي څخه چي مؤمن محرم ځني مراد دی په قصد سره.

**پوه سه**: چي د "متعمداً" د قید فائده داده چي که محرم په خطأ سره او یا یې احرام هېر و او یا چا مجبور کړی پر ښکار باندي، نو پر هغه جزا د صید نسته وهو مذهب سعید بن جبیر ﷺ او ثوري رحمه الله او ابو منذر له شافعیانو څخه او جمهور علما وایي چي جزا د صید پر محرم سته سوا قتله عامداً او ناسیاً.

**مسئله**: که محرم و ښکاري ته په خوله ښکار وروښوو او یا یې په لاس پر هغه محرم باندي جزا د صید لازمه ده.

**درویش وایي**: چي په دې مبحث کي نوري مسئلې هم سته او اختلافات د مذاهبو هم سته چي ځای د تفصیل یې کتابونه د فقهي شریفي دي دا یو څو مسئلې چي درویش راوړې عملاً بقولهم مالایدرک کله لایترک کله.

وګفته اند مشت نمونه خروار است

**فائده سنیه**: محرم ته خو هیڅ ځای ښکار نه دی روا که په حدود کي د حرم وي او که خارج تر هغه چي په عربي یې حِل بولي، او غیر محرم سړی په حل کي ښکار کولای سي اما په حدود کي د حرم ښکار نه دی ورته روا، حدود د حرم د مشرق پر

خوا شپږ میله دی او د مغرب پر خوا دوولس میله دی او د شمال پر خوا اتلس میله دی او پر مقابل یې څلیرویشت میله دي هکذا الفقیه الحنفي ابوجعفر الطحاوي.

**پوه سه:** چې د جزآ لفظ مرفوع دی یا خبر د مبتدآ محذوفي دی والتقدیر فالواجب علیه جزآ، او یا مبتدآ د خبر یې جارومجرور مقدم علیه محذوف والتقدیر فعلیه جزآ آه وتقدیم الخبر لصحة ابتدائیة النکرة، او جمله ټوله خبر د "من" ده وایراد الفآ لتضمن من معنی الشرط.

**پوه سه:** چې "جزآ" چې په تنوین وایي او وروسته مثل چې راځي هغه هم مرفوع وایي صفت یا بدل د جزآ یې بولي، او جمهور قاریان یې جزآ بې له تنوینه مضاف بولي ومثل ته اضافت څوک بیانیه او بعض وایي چې اضافت د مصدر و مفعول ته یعني فعلیه ان یجزی مثل ماقتل.

**پوه سه:** چې د امام اعظم او امام ابو یوسف په نیز مراد له "مثل" څخه قیمت دی دوی چې مثل مطلق چې شریک په نوع کې د ښکار سره وي خو اجماعاً صورة ومعنی مراد نه دی، ولې خو باید د هوسی په ښکار کې هوسی لازم سي او د هر ښکار د نوع شي لازم سي دا خو اجماعاً نه دی مراد او نه صحیح دی، نو ضروري چې مراد له مثل څخه مثل معنوي وهو القیمة، او بل دلیل دادی چې هغه ښکار چې مثل صوري نه لري لکه چوغکه او ملخ او ډیک وغیره خو مثل صوري په نعم کې نسته، نو خو قیمت به ور کوي.

**سوال:** مراد په آیت کې دادی چې که ښکار مثل صوري نه درلودی په هغه کې به قیمت ور کوي؟

**ځواب:** دا خو یا جمع بین الحقیقة والمجاز ده او یا عموم المشترک دی وقد منع العلمآ کلا منها.

**پوه سه:** چې "من النعم" د "مثل" بیان دی "من النعم ای الابل والبقر والغنم.

**سوال:** خدای پاک پخپله بیان د مثل په نعم سره وکړی او قیمت لکه امام ابو حنیفه رحمه الله چې یې لازم بولي هغه خو نعم نه دی، نو حنفیه به ددې ځواب څرنګه ور کوي؟

**ځواب:** هغه تقدیرات چې د علیه الصلوٰة والسلام له خوا او د صحابه وو رضی الله عنهم له

خوا ذكر سوي دي نو له په اعتبار د قيمت دي نه په اشتراك صوري ظاهري، مثلاً چي شترمرغ ښکار کړي، نو مثل صوري يې اوښ دی، نو به اوښ په فديه ورکوي بلکې واجب قيمت د شتر مرغ دی وهذا هو المنقول عن رسول الله ﷺ والصحابة الكرام ﷺ فالقيمة للصيد لازم في الفدية كما قال ابو حنيفة رحمه الله دون المثل الصوري كما قاله الائمة الآخرين رحمهم الله تعالى اجمعين.

**درويش وايي**: چي امام مظهري په دې ځای کي ډېري اوږدې خبري له يوې خوا او بلي خوا رانقل کړي دي لافائدة فيها الا التحير للمتعلم فيما هو المراد ان شئت مصداق ماقلت فطالع تفسيره.

**يَحْكُمُ بِهٖ ذَوَا عَدْلٍ مِّنْكُمْ هَدْيًا بٰلِغَ الْكَعْبَةِ**

چي حکم وکړي په دې جزا او قيمت په نېز د ابي حنيفه او ابي يوسف رح او يا په مثل صوري سره عند المعتبرين للمثل الصورين كسائر الائمة. نو ضمير د "به" يا راجع وجزا ته ده يا مثل ته او جمله د "يحكم" چي په حکم د نکرې كسائر الجمل صفت ده د جزا او يا د مثل. ولي نحويين وايي چي لفظ مثل نه معرفه کېږي په اضافت سره، نو روا دی توصيف د مثل او د ما اضيف اليه په جمله سره او حکم کونکي دوه کسه صاحبان د عدالت دي.

**تشريح**: نو په نېز د ابوحنيفه او ابو يوسف دوه کسه عادلان دي و صيد ته قيمت کښېږدي، په هغه ځای کي چي ښکار سوی دی او هغه ځای يو بيابان وچي نه ښکار خرڅېدی او نه رانيول کېدی، او و هغه نژدې ځای که قيمت ورته کښېږدي، نو که يې قيمت د صيد رسېدی چي پسه يا غويي وغيره په رانيول کېدی، نو ښکاري اختيار لري يا دي هغه نعم په رانيسي چي په قيمت د صيد رانيول کېږي، نو دې حرم ته واستوي چي هوري ذبح او خيرات سي او که په قيمت د صيد غنم يا خرما وغيره رانيسي او هر مسکين ته نصف صاع د غنمو ورکوي او يا پوره صاع د خورما يا د اوربشو ورکوي، او يا روژې نيسي په اندازه د طعام د هر مسکين هر څو روژې چي سوې او که له قيمت څخه د صيد لږڅه بالاسوه چي طعام مسکين ته نه رسېدی يعني نصف صاع ته هغه دي خيرات کړي او يا دي د هغه په ځای کي يوه كامله روژه ونيسي، ولي چي صوم شرعي تبعيض نه قبلوي.

**درویش وایي**: چي دا وه تشریح د مذهب د ابو حنیفه او ابو یوسف کما بین في الهدایة ورد المحتار وغیرهما من کتب المذهب الحنیفي.

**پوه سه**: چي هدیاً حال دی له ضمیر څخه د "به" چي راجع و جزا یا مثل ته. والمعنی هغه هدیاوي چي رسېږي به وکعبې مبارکي ته یعني هوري به ذبح کېږي او پر مساکینو د کعبې مبارکې به تقسیم کېږي.

**پوه سه**: چي امام شافعي رحمه الله وایي چي لفظ هدیا مذهب د ابوحنیفه رحمه الله ردوي چي دی وایي چي قیمت د صید لازم دی. ولي قیمت خو هدیه نه ده؟

**ځواب**: د امام اعظم رحمه الله خو دا مراد نه دی چي قیمت هدیه ده بلکې په قیمت د صید به یا پسه یا غویی یا اوښ رانیسي او هغه به هدیه وګرځوي. نو قیمت ته هدیه ویل مجاز باعتبار مایؤل الیه دی وهذا المجاز غیر عزیز في العربیة کما في قوله تعالی "اني اراني اعصر خمراً في سورة یوسف وکما في قوله علیه الصلوة والسلام "من قتل قتیلاً فله سلبه" او یا دي هدیاً حال مقدره وي ای مقدراً کون القیمة هدیاً کما في قوله تعالی "فادخلوها خالدین" لان الخلود لایکون وقت الدخول بل مقدرة في وقت الدخول. بالغ الکعبة صفت دی د "هدیاً".

**سوال**: هدیاً خو نکره دی او بالغ الکعبة په اضافت ومعرفي ته معرفت دی؟

**ځواب**: اضافت په بالغ الکعبة کي اضافت لفظي دی فلا یفید التعریف کما تقرر في النحو.

**فائده**: دا نه ده لازمه چي عین کعبې ته به هدیه رسوي بلکې بالغ الکعبة یې صرف ددې لپاره ووایه چي د هدیې د ذبح شرط حرم دی هر ځای چي وي په حرم کي داخل یعني خارج تر حدود د حرام به یې نه ذبح کوي.

**مسئله**: د هدیې غوښې به خامخوا د حرم پر مساکینو ویشي، جمهور علماً وایي چي دا تقسیم واجب دی. ولي چي د بلوغ و کعبې ته دا فهمېږي چي غوښې به یې مساکینو ته د حرم ورکول کېږي. او امام اعظم ابو حنیفه رحمه الله وایي چي تقسیم پر مساکینو د حرم نه دی واجب بل یتصدق علی المساکین في الحرم وغیره حسب مشیته، امام رحمه الله وایي چي چي ذبح عبادة غیر معقوله ده، نو رعایت د مکان چي حرم دی پکښي شرط دی حتی من ذبح الهدی خارج الحرم

لايجوز واما التصدق باللحم فعبادة معقولة ولا دليل على تخصيص مساكين الحرم كذا في كتب فقها مذهبنا رحمهم الله تعالى.

أَوْ كَفَّارَةٌ طَعَامُ مَسَٰكِينَ

او یا کفاره د طعام د مساکینو.

**یوه سه:** چي "او كفارة آه" عطف دی پر "جزآ" او د ابن عامر او د نافع قرائت په اضافت د کفاره دی و طعام ته یعني کفاره تنوین نه لري، او د طعام لفظ مجرور دی او نور قرآ "کفارة" په تنوین وايي او طعام په رفع سره يا عطف بيان دی کفاره او یا یې بدل دی.

**فائده:** کلمه د "او" لپاره د تخییر ده یعني ښکار کونکی اختیار لري که مثل ماقتل من النعم ورکوي په معنی مذکور من قبل سره چي په قیمت د ښکاو که نعم کیدی نو که نعم ورکوي بالغ الكعبة او یا په مقدار د قیمت د ښکار غنم رانیسي او نصف ساع و مساکینو ته ورکوي او يا په هغه اندازه روژې نیسي، او دا تخییر دده لپاره تخفيف پر جاني، او امام شعبي او نخعي وايي چي په جزا کي د صید ترتيب مذكور في القرآن شرط دی.

أَوْ عَدْلُ ذَٰلِكَ صِيَامًا لِّيَذُوقَ وَبَالَ أَمْرِهِۦ

او يا برابر د طعام سره د مساكينو دي روژې ونیسي، لکن په دې کي اختلاف دی چي مقدار د طعام د یوه مسکین څو دی، امام اعظم رحمه الله وايي چي مقدار يې نصف صاع ده من بر او يا يوه صاع د اوربشو او یا د خورما. لکه دده رحمه الله چي په صدقة الفطر کي دغه مذهب دی، او نوري كفارات یې تولي پر قياس کړي دي، او د امام شافعي رحمه الله په نيز يو مُد د هر مسکين طعام او په کفاره یمین او د ظهار او په كفارة الصوم کي هم د امام شافعي رحمه الله داغه مذهب دی.

**یوه سه:** چي لام د "لیذوق" متعلق دی په محذوف پوري يعني اوجبنا ذالك الجزآ او الكفارة ليذوق الجاني يعني ورسېږي جاني ښکاري ته درندوالی د خپل او بد عاقبت د ښکار کولو چي د تجاوز وکري له نهي څخه د ښکار چي خدای جل جلاله منعه کړي وو.

**فائده**: اصل وبال ثقل ته وایي كما في هذه المحاورة طعام وبيل اى ثقيل وكما في القرآن اخذناه اخذاً وبيلاً اى ثقيلاً.

**عَفَا اللّٰهُ عَمَّا سَلَفَ ۗ وَمَنْ عَادَ فَيَنْتَقِمُ اللّٰهُ مِنْهُ ۗ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ ذُو انْتِقَامٍ ﴿۹۵﴾**

خدای ﷻ عفوه وکړه چي دمخه د ښکار د صید کاوه یعني في الجاهلية او قبل التحريم او في هذه المرة، او كه څوک اعاده وکړي ودې محرم کار ته یعني قتل الصيد، نو به خدای ﷻ کسات واخلي له ده څخه په ورکولو سره د جزاً مذکور ثانیاً او که یې جزاً ورنه کړه نو خدای ﷻ به عذاب في الآخرة ورکړي او خدای غالب دی انتقام د هر هغه چا اخستای سي چي پر معصیت باندي دوام وکړي.

**قاعده نحویه**: نحات وایي چي فا پر مضارع چي جزاً واقع سي نه داخلي نو ددې مضيق څخه د ځان خلاصېدو لكه دلته داده چي فينتقم خبر د محذوفي مبتداً گرځوي یعني فهو ينتقم الله.

**پوه سه**: چي ابن عباس ؓ و ظاهر ته ددې تللی دی، ولي چي راوي له ده څخه روایت کوي چي که څه هم ښکار وکړي په قصد سره، نو له ده څخه دي پوښتنه وکړه سي چي تر دې ښکار په احرام کي دي دمخه بل ښکار په حال کي د احرام کړی دی که جاني وویل چي هو کړی مي دی، نو د کفارې حکم دي نه پر کوي او دا دي ورته ووایي فينتقم الله منک او که هغه جاني وویل چي یا تر اوسه مي نه دی کړی، نو هغه حکم مذکور دي پر جاري کړي یعني جزاً بالنعم او یا اطعام یا روژې، او که یې بیا بل وار ښکار وکړی پر شا او پر ځیګر دې ضرب وجیع ورکړي یعني تعذیراً كذا قال البغوي لكن جمهور مفسرين وایي چي بیا دې په جزاً سره محکوم کړي ثم وثم.

**اُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ وَطَعَامُهٗ**

روا کړه سوی دی وتاسي ته یعني له جانبه د خدای ﷻ ښکار کول له دریابه څخه یعني په حال کي د احرام او خوراكي شى له دریابه.

**پوه سه**: چي انس ؓ له ابوبكر صديق ؓ څخه روایت کړی دی چي مراد له صيد البحر څخه هغه شی دی لکه ماهي چي سړی یې ښکار کړي، او له طعام البحر څخه مراد هغه دی چي دریاب یې پخپله ژوندی راوغورځوي او اوبه ځني ولاړي سي نو

یا یې سرې بې تکلیف ونیسي او یا په خپله مړسو، او که په اوبو کې مړ وو چې طافي یې بولي او اوبو پر سر راختستی وو هغه مردار دی انتهی بزیادة بعض الفاظ تفسیر للحدیث. او بعض مفسرین وایي مراد له صید البحر څخه هر هغه حیوان دی چې ژوند نه سي کولای بې اوبو لکه ماهی مثلاً.

**فائده:** امام مالک رحمه الله په دغه آیت دلیل وایي چې روا دی خوراک د هر حیوان بحري. او قتاده، عکرمه، مجاهد، سعید بن جبیر، نخعي او سعید بن المسیب رحمهم الله تعالی وایي چې له صید البحر څخه تازه ماهی مراد دی او له طعام څخه یې چې مالگه یې پر اچولې وي مراد دی والله اعلم بالصواب.

**پوه سه:** چې ضمیر د "لکم" ومحرمانو ته راجع دی، روح البیان وایي چې د بحر متعارف یعني دریاب نه دی مراد بلکې عام تر هغه که واله وي، که لوګړی وي، او صید البحر چې ژوند نه سي کولای بې له اوبو که ماکول اللحم وي او که غیر ماکول اللحم وي، نو هغه چې په اوبو کي هم ژوند کولای سي او پر وچه هم لکه ایلبې، چونګوښه، چنګاښ او نور ټوله مرغان د اوبو هغه صید البحر نه دی بلکې صید البر ویجب الجزآ علی قاتله او امام همام فخر الدین رازي رحمه الله په تفسیر کبیر کي وایي چې ټوله هغه حیوانان چې په دریاب کي ښکار یږي دري قسمه دي یو ماهي دی او د ماهي ټوله انواعي حلالي دي، او بل چونګوښي دي د هغو ټوله اقسام حرام دي، او له دې قسمو څخه په ماسوئ کي اختلاف دی امام ابو حنیفه رحمه الله وایي چې هغه حرام دی او اکثره مذاهب پر دې دي چې هغه حلال دي لعموم هذه الآیة. ابو حنیفه رحمه الله وایي چې دا آیت خو عام مخصوص منه البعض دی نو استثناً د نورو هم ځني صحیح ده وهو ماوری القسمین المذکورین.

## مَتَاعًا لَّكُمْ وَلِلسَّيَّارَةِ ۚ

دا صید البحر فائده ده ستاسي مقیمینو چې تازه به یې خوري او مسافرانو لره چې وچوي یې او پر لاري به یې خوري.

**پوه سه:** چې "متاعاً" مفعوله د "احل" لپاره دی او "متاعاً" لفظ چې مصدر د مجرد دی په معنی د تمیعاً دی لکه سلاماً په معنی د تسلیماً.

وَحُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ مَا دُمْتُمْ حُرُمًا

او حرام کړه سوی دی پر تاسي یعني له جانبه څخه د خدای ﷻ ښکار د مځکي تر هغو پوري چي تاسي محرمان یاست بالحج او العمرة.

**درویش وایي:** چي ددې آیت ترجمه په روایت سره د ابن عباس رضي الله عنه داسي ترجمه کړل سوې ده چي صید البر ومحرم ته حرام دی که څه هم که یې څه هم حلال سړی ښکار کړي يې له امره او بې له اشارې او بېله دلالته د محرم او نه هم حلال سړي په نیت د محرم کړی وي، دا قول د طاوس او د سفیان ثوري رح دی. دوی دا دلیل وایي چي علیه الصلوٰة والسلام چي په ابوا کي یا په ودان کي و یو سړي علیه الصلوٰة والسلام ته حمار وحشي راوستی ژوندی، علیه الصلوٰة والسلام ور رد کړی چي علیه الصلوٰة والسلام د هغه سړي په مخ کي کراهت او خوابدتیا محسوسه کړه یعني پر دې چي زما هدیه یې ولي رد کړه، نو علیه الصلوٰة والسلام داسي ورته وویل چي موږ ستا هدیه نه ده رد کړې مگر نه ددې جهته چي موږ محرمان یو متفق علیه. نو اصله مسئله داده چي حلال سړی بې له امره او بې له اشارې او بېله دلالته د محرم ښکار وکړي نو امام اعظم رحمه الله یې و محرم ته اکل روا بولي، او دی د هغه حدیث ځواب چي حمار وحشي یې و علیه الصلوٰة والسلام ته په هدیه کي راوستی و رد کړی هغه حمار وحشي ژوندی و. نو د ژوندي قبلول خو عین ښکار دی، نو ځکه علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل چي موږ محرمان یو. والدلیل علی مذهب ابي حنیفه رحمه الله هغه حدیث د قتاده رضي الله عنه چي دی وایي چي موږ ملگري و د علیه الصلوٰة والسلام سره په سفر کي د حدیبیه. نو زما ملگرو احرامونه وتړل او ما احرام نه و تړلی فرئت حماراً وحشیاً فاصدته نو بعض چا له محرمانو څخه د هغه ښکار غوښي خوړل پیل کړه. وروسته موږ وویل چي موږ خو محرمان یو موږ یې ولي خورو. او علیه الصلوٰة والسلام تر موږ ډېر دمخه و. نو موږ وویل چي راځئ چي د علیه الصلوٰة والسلام څخه پوښتنه وکړو خیر کله چي و علیه الصلوٰة والسلام ته راورسېدلو او موضوع د حمار وحشي د ښکار د ابي قتاده چي محرم نه و ورته وړاندي کړه او د محرمانو د خوراک ذکر مو هم وره وکړی. نو علیه الصلوٰة

والسلام راته وویل چي کوم یوه خو به د محرمانو څخه امر یا اشاره یا دلالت نه و ورته کړی. هغو وویل یانو علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل که ستاسي سره نوري غوښي پاته وي ماته يې راوړئ. نو هغو څه غوښي ورته راوړې او هغه علیه الصلوٰة والسلام وخوړلې هکذا روی في الروایات المتفقة.

**درویش وايي:** چي مظهري رحمه الله حسب عادت مختلف روایات او مذهبونه او د هغو دلائل او جوابات يې هم راوړي دي او تقریباً درې صفحې يې په نیولي دي چي سړی صفا خبره نه سي ځني فهمولای وان شئت مصداق ماقلت فارجع الی تفسیره، او درویش د مذهبي حنیفي دلائل وايي او اختلافات د مذاهبو او روایتونه بیانوي تاچي مطالعه کونکو ته ددي تفسیر اضطراب او تحیر پېښ نه سي، شعر

ومن مذهبي حب الدیار لاهلیها　　　　وللناس فیما یعشقون مذاهب

مطلب مي دادی چي زما مذهب تصحیح د مذهب حنیفي ده له بیان سره د اختلافاتو سره د روایاتو او د مذاهبو زما کار نسته او د مظهري بیا دغه خوښه ده.

**درویش وايي:** چي زما سره همراي چي فقط د مذهب تشریح کوي روح البیان دی هغه هم د حنیفي مذهب تشریح او بیان او د قرآن آیت یا یو حدیث هم راوړي او د نورو امامانو مذهب که رانقل کړي دا قدر وایي خلافاً للشافعي، نور يې نه دلائل را نقل کوي او بیا وروسته و هغو ته جوابات ورکول نه کوي، او بل همرایه زما تفسیر مدارک دی بلکي تفسیر بیضاوي دی که څه هم شافعي المذهب دی، لکن د خپل مذهب تائید په آیت سره وکړي نور اختلافات نه ذکر کوي، او امام مظهري رحمه الله خو هر مذهب د ائمه اربعه وو بیانوي او پر هغه مذهب دلائل هم رانقل کوي بیا نو که تائید د مذهب وکړي او که نه، داسي متضاد حدیثونه هم راوړي چي جمع د هغو هیڅ امکان نه لري، تاسي د دا اوسني آیت تفسیر دده په تفسیر کي وګورئ نو به زما د خبري صدق او کذب درمعلوم سي.

**پوښتنه:** اختلافات د مذاهبو او دلائل د هر مذهب او بیا ځواب ورکول خو د فقهي شریفي په کتابو کي چناچه ته وګوره هدایه او مطالعه کړه شرحه د هدايې فتح القدیر، او ته تر نظر تېر کړه رد المحتار علی رد المختار او نور د فقهي کتابونه مفصل علاوه تر دې هم مطالعه کړه شرح معاني الاثار للامام الفقیه ابو جعفر الطحاوي چي هم د

حديثو كتاب دى او اختلافات د مذاهبو بيانوي بيا ځوابات د مذهب حنيفي له خوا وركوي، نو پر مظهري رحمه الله څه منت سته چي ورته كارونه كوي؟

**ځواب**: موضوع د تفسير جلا ده چي بيان دى د معاني د قرآن كريم لغةً وصيغةً، اعراباً وبناً وذكر بعض فضائل السورة والآيات، البته كه يو آيت ديوې مسئلې وي هغه ذكر كول او شان نزول د آيت پر صحيح وجه ذكر كول نه مختلف شان نزولونه چي جمع يې نه سي كېداى، او د فقهي موضوع خو افعال د مكلف ده چي په هغو كي حتماً به په بعض مسائلو كي اختلاف د ائمه وي او هر امام پر خپل مذهب دليل يا له قرآن څخه يا له احاديثو څخه وي او بل مذهب والا به ځواب وركوي په نقض او ابرام سره نو بايد دا دوه علم تفسير او فقه من كل الوجوه څوک سره ګډ نه كړي په تفسير كي د قرآن مجيد، دا و د عاصي درويش محمد عبيد الله وينا والعلم عندالله العزيز العلام.

وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ ﴿٩٦﴾

او تاسي وېرېږئ له خداى ﷻ څخه هغه خداى ﷻ چي تاسي و هغه ته حشر كېږئ يعني په ورځ د قيامت او جزا د خير او شر به ويني او هغه منهيات لازماً ونه كړئ چي تاسي يې ځني منع كړي ياست التي منها الصيد في وقت الاحرام.

**پوه سه**: چي "اليه" متعلق دى د "تحشرون" سره او تقديم يې لپاره د حصر دى يعني لا الى غيره، په صحيح حديث كي راغلي دي من اشتاق الى الجنة سارع الى الخيرات يعني كه د چا شوق كېږي و جنت ته نو دي تلوار وكړي د خير په كارو كي "ومن اشفق من عذاب جهنم كف نفسه عن المحرمات" او كه څوک بېرېږي له عذاب څخه د دوږخ خپل ځان دي منع كړي له محرماتو څخه، مولنا رومي وايي

كافر من گر زيان كردست كس — در ره ايمان وطاعت يک نفس

جَعَلَ اللَّهُ الْكَعْبَةَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ قِيَامًا لِّلنَّاسِ وَالشَّهْرَ الْحَرَامَ

گرځولي ده خداى پاک كعبه مباركه.

**پوه سه**: چي بيت الله شريفه چي كعبه بولي يا له جهته د چار كونجو الي او عرب هري خوني ته چي مربع وي كعبه وايي، او مقاتل رحمه الله وايي چي كعبه چي يې بولي په سبب د جلا والي له نورو بناؤ څخه، نو ګويا دده په نېز تكعب جلا والي ته

وايي. او بعض مفسران وايي چي كعبه يې په دې بولي چي ډېره جګه ده، څكه و بجلكي ته د سرې كعب وايي چي لارتفاعه في جانبي القدم او له هم دې سببه چي د نجلۍ تي راووزي خلګ وايي تكعبت فلانة.

**يوه سه:** چي "بيت الحرام" يا عطف بيان دى لپاره د مدح او يا بدل دى.

**فائده:** بيت الحرام يې په دې سبب بولي چي خداى پاک حرمت او عزت وركړى دى. قال النبي ﷺ "ان الله حرم مكة يوم خلق السموات والارض"

**فائده:** درويش وويل چي عطف بيان دى لپاره د مدح غرض يې داوو چي لپاره د توضيح نه دى كما هو الاغلب في عطف البيان لان الكعبة لايحتاج الى التوضيح كما لا يخفى.

**پوښتنه:** دمخه احاديث خو تاسي واورېدله، او په بل صحيح حديث كي راغلي دي چي عليه الصلوٰة والسلام ويلي دي "ان ابراهيم حرم مكة شرفها الله تعالى واني حرمت المدينة" نو ددې دوو حديثو تر منځ به تعارض نه وي؟

**ځواب:** ابن الملک ددې پوښتنې په ځواب كي داسي وايي چي په اول حديث كي مراد دادى چي خداى پاک په لوح محفوظ كي دا ليكلي وه چي ابراهيم عليه السلام به يې ژر دى چي حرم وګرځوي انتهى.

**درويش وايي:** چي اولى په ځواب كي د پوښتنې داده چي په حديث اول كي مراد حرمت ذاتي د مكې مكرمې دى او په حديث ثاني كي مراد حرمت عرضي دى، والثاني حادثة من زمن ابراهيم عليه السلام او حرمت ذاتي يې قديم دى لكن ممكنه ده چي د ابن الملک رحمه الله به هم داغه مراد وي والله اعلم بالصواب.

**يوه سه:** چي "قيماً" يا مفعول ثاني او يا حال دى.

**يوه سه:** چي ابن عامر رحمه الله له قرأ سبعه څخه "قيماً" بې له الفه وايي او نور قرأ يې په الف سره وايي "قياماً" د قياماً معنا د مكې په ښار كي چي كعبه مباركه پكښې ده د عربو كارونه د دين او دنيا تر سره كېږي، كارونه د دين په حج او عمره او مناسک د حج دي، او كارونه د دنيا يې دادي چي په دې ښار كي د مكې په بركت د كعبې مباركي بې خوفه ژوند كولاى سي، نه څوک له كفارو څخه پر دوى غارت كولاى سي او نه جنګ كما حكى الله تعالى في سورة قريش "وآمنهم من خوف"

**بوه سه**: چي الف ولام په "الشهر الحرام" کي لپاره د جنس دی یعني جنس الاشهر الحرم چي رجب ده او د میانی میاشت ده او د لوی اختر میاشت ده او محرم چي پښتانه یې د حس حسین میاشت بولي.

**فائده**: والشهر الحرام" عطف دی پر "قیاماً للناس" باندي یعني دا میاشتي هم د امن او امان دي چي څوک و چاته تعرض بالقتال نه کوي.

**بوه سه**: چي روح البیان وایي چي مراد له شهر الحرام څخه ذو الحجة ده چي افعال د حج پکښي کېږي. او مفعول ثاني یې محذوف دی ای جعل الشهر الحرام قیاماً للناس، او هم په دغه میاشت کي خلګ بې غمه او په امن سفرونه د حج کوي او تجارات هم کوي آمنین انفسهم وامو الهم فکان هذا الشهر لاکتساب منافع الدین والدنیا.

**تنبیه**: لکه څرنګه چي خدای پاک په انبیا کرامو علیهم السلام کي تفاضل پیدا کړی دی او داغه رنګه په امتو کي د پېغمبرانو یې تفاضل ایښی دی. نو په اوقاتو او ایامو کي یې هم تفاضل پیدا کړی دی لکه عشر ذی الحجة، امام نیشاپوري رحمه الله وایي چي لس ورځي د ذو الحجة افضلي د ایامو دي وروسته د روژې تر میاشت، فضائل ددې لسو ورځو یې قرار ذیل بیان کړي دي.

(۱) په دغو لسو ورځو کي موسٰی علیه السلام اول مناجات د خدا په سره کړي دي.

(۲) په دې ورځو کي ټوله حاجیان احرام بنده وي.

(۳) د آدم علیه السلام توبه هم په دغو ورځو کي قبوله سوې ده.

(۴) د اسماعیل علیه السلام د ذبح فدیه هم په دغو لسو ورځو کي انجام سوې ده.

(۵) د هود علیه السلام نجات له عذابه د قوم دده په دغو لسو ورځو کي انجام سوی دی.

(٦) د نوح علیه السلام نجات په کښتی کي او د قوم غرقېدل په طوفان سره هم ددغو ورځو فضیلت دی.

(۸) د خیبر د فتح زیری هم په دغو ورځو کي سوی دی.

(۹) یوه روژه ددغو ورځو لکه زر روژې د نورو ورځو په ثواب کي.

(۱۰) او عبادت د یوې شپې د ذو الحجة دومره ثواب لري لکه یو سړی چي حج او عمره هر کال کوي.

**درویش وایي:** چي په استحباب کي د روژو د عشر ذی الحجة او په ثواب کي د احیاء اللیالي هم شک نسته، لکن امام نیشاپوري رحمه الله ډېره مبالغه کړې ده والله اعلم بالصواب.

## وَالْهَدْيَ

او هدي یې هم قیاماً للناس ګرځولې ده لپاره د استوګني د فقراؤ د بیت الله شریفي پر شاوخوا.

**یوه سه:** چي هدیه نوم دی د هغه حیوان چي ادنی یې پسه دی، او اعلی یې اوښ دی چي څوک یې ورولي بیت الله شریفي ته او هورې یې ذبح کړي او غوښي یې پر فقراوو وه وېشي، نو به دغه هدیه قِوام سي د بیت الله الشریف د همسایه ګانو فقراؤ

**یوه سه:** چي له دې بیان څخه دا معلومه سوه چي د عید القربان په اختري کي هم دفع د حاجت د فقراؤ ده، نو اضحیه کونکي لره دا مستحب ده چي ټولي غوښي د اضحیه دي پر فقراؤ وېشي او یا اکثره حصه دې ووېشي.

**فائده:** د لوی اختر په ورځ حاجیان له منٰی څخه ومسجد حرام ته ځي لپاره د طواف زیارت، نور مسلمانان په اطرافو کي د عالم اسلام به وعید ګاه ته ځي.

## وَالْقَلَآئِدَ

په حذف د مضاف ای ای جعل الله ذوات القلائد ایضاً قیاماً للناس.

**یوه سه:** چي قلائد جمع د قلاده ده چي په پښتو یې غاړګی بولي او دلته په آیت مبارک کي مراد هغه شی دی چي د هدي په غاړه یې وځړوي یا څوتي او یا د درختي یو شین ښاخ وي، نو چي دا علامه پر وي نو څوک تعرض نه ورته کوي، او نه یې له وښو څخه ګرځوي وایي چي دا هدیه د حرم ده، لکن د غوایي یا د اوښ په غاړه قلاده عادت قدیمه او عادت شرعیه دی د پسه په غاړه یې نه دی عادت.

**درویش وایي:** چي دا هدیې او قلائد د جاهلیت په وخت کي هم وې چي ما تعبیر په عادت قدیمه څني وکړی لکن چونکه شرک او بت پرستي ورسره وه په جناب کي د رب جل جلاله یې هېڅ اعتبار نه درلودی هغه وخت چي اسلام منځ ته راغلی شرک او بت پرستي ولاړه دې هدیې او قلائد په دربار کي د خدای جل جلاله لوړ مقام پیدا کړی او د

قرآن کریم په آیتو کي خدای پاک وستایلي او د "قیاماً للناس" په مبارک عبارت يې تعبير څني وکړی، په حدیث شریف کي راغلي دي چي صحیح کتابو د احادیثو يې روایت کړی دی چي عليه الصلوة والسلام په کال د حدیبيې چي عليه الصلوة والسلام سره د څورلس یا پنځلس سوو اصحابو ﷺ په نیت د عمرې راغلي وه هدایا ورسره وې لکن له بده مرغه مشرکان د مکې يې مانع وګرځېدله. نو يې هدایا هم په حدیبیه کي ذبح کړې.

ذَٰلِكَ لِتَعْلَمُوٓا۟ أَنَّ ٱللَّهَ يَعْلَمُ مَا فِى ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَمَا فِى ٱلْأَرْضِ وَأَنَّ ٱللَّهَ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيمٌ ﴿٩٧﴾

دغه یعني "جعل الله آه" او یا هغه چي خدای پاک ذکر کړه چي حفظ د حرمت د احرام دی، او زجاج ﷺ وایي چي "ذالک" اشاره وتوله ماسبق في هذه السورة من الاخبار بالغیب وکشف الاسرار من قوله تعالی "سماعون للکذب سماعون لقوم اخرین" ومثل اخباره بتحریفهم الکتاب چي تاسي په دې پوه سئ چي خدای ﷻ خبر دی په مافي السموات ومافي الارض، ولي چي مشروعیت د احکامو لپاره د دفع د ضرر ده او فساد د دمخه تر وقوع او جلب د منافع دی چي مرتب کېږي پر دفع المذکور باندي او پر جلب مذبور باندي او دغه اخبار الغيب دلیل دی د علم کامل شامل د خدای ﷻ، او په دې پوه سئ چي خدای ﷻ په هر شي خبر دی، دا تعمیم بعد التخصیص دی مبالغة.

ٱعْلَمُوٓا۟ أَنَّ ٱللَّهَ شَدِيدُ ٱلْعِقَابِ وَأَنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٩٨﴾

او په دې پوه سئ چي خدای پاک سخت دی عذاب دده، او په تحقیق خدای ﷻ بخښونکی د ګنهو دی او مهربان دی.

**پوه سه:** چي په دې آیت کي وعید دی د هغه چا لپاره چي هتک د محارمو د خدای پاک کوي یعني منهیات کوي، او وعد دی د هغه لپاره چي محافظت کوي د اوامرو د خدای ﷻ.

**پوه سه:** چي څه وخت چي د حضرت ابوبکر صدیق ﷺ د وفات وخت نږدې سو خلګو ته يې داسي وویل چي خدای ﷻ په قرآن کریم کي آیت د آسانی د آیت

سره د شدت جوت راوړی دی او آیة الشدة یې د آیة الرخا سره جوت راوړی دی تاچې مؤمن همېشه راغب او راهب وي يعني د خدای پاک و مغفرت ته راغب وي او د خدای پاک له عذابه راهب وي یعنې بېرېږي.

مَا عَلَى الرَّسُولِ إِلَّا الْبَلَاغُ وَاللَّهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُونَ وَمَا تَكْتُمُونَ ﴿۹۹﴾

نسته پر رسول باندي مگر نه رسول د اوامرو او منهیاتو د خدای ﷻ، يعني عليه الصلوٰة والسلام خو هغه وظیفه اجرا کړه په اتمه او اکمله وجه سره او پر تاسي باندي حجت قائم سو او خدای ﷻ خبر دی په کارو چي تاسي يې په ښکاره کوئ او په هغه کارو چي تاسي یې په پټه کوئ.

**پوه سه**: چي کلمه د "ما" موصوله او عائد و موصول ته محذوف دی، والتقدير "ماتبدونه وماتكتمونه" والمراد به التصديق والتكذيب علانيةً او سراً. يعني خدای ﷻ به هرچاته جزاً د خپل عمل ورکړي اما الجنة واما النار.

**پوه سه**: چي په دې آيت کي هم وعد دی بالجنة او هم وعيد دی بالنار.

قال السعدي الشيرازي رحمه الله.

برو علم یک ذره پوشیده نیست که پنهان وپیدا بنزدش یکی ست

قُلْ لَا يَسْتَوِي الْخَبِيثُ وَالطَّيِّبُ وَلَوْ أَعْجَبَكَ كَثْرَةُ الْخَبِيثِ

ته اې محمده ﷺ ووایه خلگو ته چي نه دی سره برابر خبیث حرام مال او طيب مال که څه هم تاپه تعجب کي اچوي ډېروالی د مال خبيث.

**پوه سه**: چي مفسرین ددې آیت شان نزول دوه قسمه بیانوي، مظهري رحمه الله په روایت د جابر بن عبدالله رضي الله عنه داسي وايي چي يو سړی هغه وخت چي عليه الصلوٰة والسلام تحريم د خمر خلگو ته بیان کړی، نو هغه سړی چي اعرابي و عليه الصلوٰة والسلام ته یې داسي وويل چي زه يو سړی وم چي ما تجارت د خمر کاوه، نو ما په دې تجارت کي ډېري روپۍ سره جمع کړې، نو د غه مال به ماته فائده وکړي که زه عمل د خير پکښي وکړم؟ نو رسول الله ﷺ ورته وویل ان الله لا يقبل الا الطيب فانزل الله تصديقاً لرسوله ﷺ "قل لا يستوي الآية" نو د آيت د معنا حاصل دادی چي عمل که څه هم لږ وي او په اخلاص د نیت وي او صالح وي بهتر دی تر ډېر مال چي بې اخلاصه وي

او داغه رنګه انفاق د مال له حلال مال څخه بې دی تر انفاق د کثیر مال د حرامه.

**درویش وایي:** چې په اوسني زمانه کې بعض لوی سرمایه داران سته چې مالونه یې قطعاً حرام وي یا په بیوع فاسده وو سره او یا په رشوت ستاني سره یا په غصب وغیره سره، نو دی ګاهي ګاهي په روژه کې یو غویی ذبح کړي او خوشهاله وي چې ما خو خیرات وکړی، او یا نفلي حجونه په هغه مال حرام سره وکړي او دده نو دا عقیده وي چې په داغسي به ماته خدای پاک تول ګنهونه رابخښلي وي هیهات. له ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دي چې قال رسول الله ﷺ "من تصدق بعدل تمرة ولا یقبل الله الا الطیب" که چا خیرات وکړی په اندازه سره د یوې خورما هر مال چې وي او نه قبلوي خدای جل جلاله مګر نه حلال مال "فان الله یقبلها بیمینه ویربیها لصاحبه کما یربی احدکم فلوه حتی یکون مثل الجبل" بخاري مسلم. نو په تحقیق خدای جل جلاله ځني قبلوي په راسته لاس یعني په حسن قبول سره، ولي خدای جل جلاله لره خو جسم نسته، نو قبلول په راسته لاس کنایه ده په عربي ژبه کې د حسن قبول څخه نو تربیه کوي هغه صدقه یعني ثواب یې ورمضاعف کوي لکه یو سړی له تاسي څخه چې ساتي او تربیه کوي د اسپي بیهان ګي حتی چې هغه عدل التمرة صدقه لکه غر په وزن وګرځي.

**پوه سه:** چې صالح او مخلص بندګان د خلګو خیر دی په نېز د خدای جل جلاله تر خبیثانو بندګانو که څه هم مځکه په ډکه وي، د سهل بن سعد رضي الله عنه روایت دی چې علیه الصلوٰة والسلام ناست و چې یو سړی تېر سو، بل سړی چې د علیه الصلوٰة والسلام سره ناست و، و هغه ته علیه الصلوٰة والسلام وویل چې ستا څه نظریه ده په باب کې ددغه سړي. هغه ورته وویل چې داخو یو سړی دی له اشرافو څخه د خلګو. دا سړی خو لائق دی ددې چې که چا ته مرکه وکړي یعني د لور مثلاً نو هغه یې خامخوا په نکاح ورکوي. او که چا ته د بل چا شفاعت وکړي شفاعت یې قبلوي، نو علیه الصلوٰة والسلام ساکت سو. وروسته بل سړی تېرېدی، علیه الصلوٰة والسلام ناست سړي ته وویل چې په دې سړي کې ستا څه نظریه ده هغه سړي ورته وویل یا رسول الله دا خو یو سړی دی له فقیرانو څخه د مسلمانانو. دا خو ور ددې دی چې که چاته مرکه وکړي د لور د نکاح مثلاً په نکاح یې نه ورکوي، او که چاته د چا شفاعت وکړي شفاعت یې نه اوري او که وچاته خبره وکړي هغه یې و

خبري ته خوږ نه نيسي، نو عليه الصلوٰة والسلام وويل چي دا دوهم سړی غوره دی تر ملئ الارض له اول سړي څخه بخاري مسلم.

**درویش وايي**: چي صاحب د روح البيان داسي شان نزول بيان کړی دی چي دا آيت په حاجيانو کي د يمامه نازل سوی دی چي هغه حج ته راغلي وه، او اصحابو کرامو قصد وکړی چي ددوی سره په جګړه ځان اخته کړي، ولي چي په دې حاجيانو کي يو سړی و په نامه د حطيم چي هغه يو کال دمخه مديني منورې راغلی و او د مسلمانانو مال مواشي يې بېولي وه، نو دا بل کال چي د عليه الصلوٰة والسلام د عمرة القضا کال و چي په کال د حديبيې پر دغه عمرې باندي صلح سوې وه، نو صحابه کرام ﷺ چي تعداد يې پنځلس يا شپاړس سوه ته رسېدی و عليه الصلوٰة والسلام ته يې وويل چي دادی حطيم سره د حجاجو د يمامه راغلی دی، نو موږ او دی سره پرېږده يعني چي موږ بريد پر وکړو، عليه الصلوٰة والسلام ورته وويل چي تاسي نه وينئ چي حطيم قلد الهدی، او عليه الصلوٰة والسلام اصحابو ﷺ ته وويل "لم ياذن لي في ذالک بسبب استحقاقهم الامن بتقليد الهدايا" ماته خدای اجازه نه ده راکړې ددغو خلګو په جنګ کي په سبب ددې چي دوی مستحق د امن ګرځېدلي دي په سبب د تقليد د هدايا وو. دا قصه روح البيان کړې ده وروسته يې داسي ويلي دي فنزلت هذه الآية يعني "لا يستوي الخبيث والطيب الآية"

**درویش وايي**: چي ددې قصې او د آيت متلوه تر منځ څه تعلق سته، البته دا قصه د هغه آيت سره چي د الهدي ړ القلائد پکښي ذکر دی ښه تعلق لري والله اعلم بالصواب في هذا الباب. د درویش په عقيده د مظهري رحمه الله شان نزول ډېر زيبا او په زړه پوري دی.

فَاتَّقُوا اللّٰهَ يٰٓاُولِي الْاَلْبَابِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ۝

نو تاسي له خدايه وبېرېږئ او له طيبينو څخه ځانونه جوړ کړئ او د طيب پاک مال څخه انفاق کوئ که څه هم لږ وي اې خاوندانو د عقول يعني عقول سليمه. په اميد ددې چي تاسي به فلاح يعني خلاصون له دوږخه ومومئ په سبب د تقوی "لان التقوى مدار النجاة في يوم القيامة"

**درویش وایي:** چي ټوله مفسرين او علماً د دين پر دې عقيده دي چي تقوٰی لره درې مرتبې دي.

(۱) اول دا چي لـه ابدي دوږخه سړی خلاص کړي وهو الاقرار بتوحيد الله عن الشريک والاقرار برسوله کما اشير اليه بقوله تعالى "والزمهم كلمة التقوٰى اى لا اله الا الله محمد رسول الله مع التصديق القلبي. والتحقيق ان الايمان هو التصديق القلبي والاقرار شرط لاجرا الاحكام والتحقيق في كتب العقائد.

(۲) دوهمه مرتبه د تقوٰی داده چي متقي د عذاب سره د دوږخ مخامخ نه سي والى هذه المرتبة اشير بقوله تعالى "ولو ان اهل القرىٰ آمنوا واتقوا الآية" او ددې مرتبې تعلق په دې پوري دی چي متقي فرائض او واجبات او سنن نبويه پر ځای کړي او له ټولو محرماتو قطعيه وو څخه او له شبهاتو څخه پرهېز وکړي.

(۳) درېمه مرتبه د تقوٰی د اخص بندګانو د خدای ﷻ او د کمل اوليا الله الكرام چي هغه مرتبې د يو طويل حديث په يوه برخه کي داسي راغلي دي "الاخلاص يعني الاخلاص الكامل ان تعبد الله كانه تراه فانه ان لم تكن تراه فانه يراک"

**تنبيـه:** درويش وويل چي ټوله مفسرين آه (مفسرين او علماً د اهل السنة والجماعة مراد دي) ولي چي معتزله وايي چي کـه مرتکب د کبيرې ګناه کـه بې توبې مړ سي ځای يې ابدي دوږخ دی. او روافض وايي چي مرتکب د کبيرې ګناه کافر دی. والدلائل والجوابات في كتب عقائد اهل السنة والجماعة كشرح العقائد النسفية وشرح المقاصد للعلامة التفتازاني رحمه الله وشرح المواقف للعلامة عضد الدين رحمه الله وشرح السيد الجرجاني رحمه الله.

## يَآيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَسْئَلُوا عَنْ أَشْيَاءَ

اې هغه کسانو چي ايمان يې راوړی دی تاسي سوال مه کوئ يعني له عليه الصلوٰة والسلام څخه د داسي شيانو.

ددې آيت شان نزول په روايت د ترمذي او حاکم د علي رضي الله عنه داسي بيان کړی دی چي دا آيت چي نازل سو "ولله على الناس حج البيت آه" صحابه کرامو رضي الله عنهم ورته وويل يا رسول الله ﷺ في كل عام فسكت، قالوا في كل عام قال لا ولو قلت نعم

لوجبت ولو وجبت" او كه چېري په هر كال واجب سوی وای بیا به له طاقته هم نه وای پوره "فاتركوني ماتركتكم" ما پرېږدئ چي ما پرېږ ایښي یاست تاسي، یعنې پوښتنه مه کوئ چي ما تاسي پرېږ ایښي یاست حاصل دا چي كه د هر كال لپاره وايي ما خپله درته ویل الی اخیر الحدیث فنزلت الآیة المذكورة.

**فائده:** سائل د في كل عام عكاشه ﷺ و، نو حاصل د حدیث دادی چي د داسي شیانو پوښتنه مه کوئ چي پر تاسي باندي مشقت وي كالحج في كل عام، او د ابن عباس ﷺ روایت دی چي علیه الصلوٰة والسلام یوه ورځ خطبه ویل او ډېر په غضب كي و له ډېرو پوښتنو څخه د خلگو د داسي شیانو چي فائده به هم نه وه پکښې.

**درویش وايي:** چي اکثره دغه بې ځایه او بې فائدې پوښتنې به منافقانو کولې، نو بې وویل چي تاسي د هر شي پوښتنه کوئ وه بې کړئ زه به بالفور ځواب درکوم تر هغو چي زه پر دغه ځای ولاړ یم، نو یو سړي ورته وویل چي د هغه پلار مړ چي زما پلار چېري دی؟ علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل چي په دوږخ كي دی، یو بل سړي ورته وویل چي زما پلار څوک دی؟ علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل چي حذافة دی، سړي ددې لپاره پوښتنه څنې وکړه چي خلگو به ویل چي دا سړی د حذافه زوی نه دی ارموني دی، نو ده چي پوښتنه وکړه ددې لپاره چي كه علیه الصلوٰة والسلام شاهدي ورکړه پر دې باندي چي ستا پلار حذافه دی نو بیا مي خلگ ارموني نه بولي، بیا علیه الصلوٰة والسلام په حال كي د غضب بار بار وویل سلوني سلوني صحابه كرام ﷺ چي حاضر وه سرونه یې پټ کړي وه ژړل یې په سبب د غضب د رسول الله ﷺ، نو عمر ﷺ ورغلی د التحیات پر ډول ورته کښېنستی او داسي یې وویل "رضینا بالله رباً وبالاسلام دیناً وبمحمد رسولاً" نو علیه الصلوٰة والسلام ساکت سو.

إِن تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ

كه تاسي ته ښکاره سي هغه ستاسي مسئول تاسي په غم كي واچوي او پر تاسي به سخت واقع سي.

**درویش وايي:** چي لكه پوښتنه د هر كال د حج، نو كه علیه الصلوٰة والسلام نعم ویلي وای، نو په هر كال به حج فرض وای، نو د هر كال حج خو د هغو خلگو لپاره

چي په زمانه کي د علیه الصلوٰة والسلام موجود وه هم لوی تکلیف و، او د آئینده لبري ملکو د مسلمانانو لپاره خو تر طاقت خارج غم و، نو علیه الصلوٰة والسلام چي سکوت وکړی په قرار د هغه آیت کریمه "وما ینطق عن الهوىٰ ان هو الا وحي یوحىٰ" وروسته یې لا وواېه او دلیل د لا ویلو یې دا وواېه "لو وجبت ما استطعتم" او یا هغه بل سړی چي سوال یې وکړی چي زما پلار چېري دی علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل په دوږخ کي دی، نو دا سړی به نه وای غمجن سوی، نو چي دا پوښتنه یې نه وای کړي ښه به نه وای؟ یا لکه هغه بل سړي چي پوښتنه وکړه چي زما پلار څوک دی علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل چي حذیفه دی، نو دې سوال ته ضرورت و، ولې چي دې سوال خو بل اړخ هم درلودی که چېري سائل فرضاً ارموني وای، نو خو علیه الصلوٰة والسلام هغه زاني پلار وریاداوه کما یدل علیه ماسیاتي من الآیة، نو به دا سړی نه وای غمجن سوی.

وَإِن تَسْأَلُوا عَنْهَا حِينَ يُنَزَّلُ الْقُرْآنُ تُبْدَ لَكُمْ

او تاسي سوالونه کوئ د دغو امور شاقه و لکه هر کال فرضیت د حج او یا نور ورته سوالونه په هغه وخت کي چي قرآن نازلېږي تاسي ته به هغه مسئول عنه ښکاره کي دای نو بې اخیر کارځه وای.

**پوه سه:** چي دغه دوې شرطیې چي یو پر بل عطف دي یعني "ان تبدلکم وان تسئلوا عنها آه" داورې صفت د اشیاً دي چي نتیجه د دغو دوو مقدمینو منع د سوال ده فافهم.

**درویش وایي:** چي امام ابو منصور الماتریدي السمرقندي الحنفي رحمه الله په خپل تفسیر کي چي نوم یې تاویلات اهل السنة والجماعة دی په تفسیر کي ددې آیت "یا ایها الذین آمنوا لاتسئالون عن اشیاً الآیة" داسي وایي، یحتمل انیکون النهي عن مسئلة لم تکن لهم حاجة الیها فنهوا عن ذالک الی ان تقع لهم الحاجة فنعد ذالک یسائلون کانهم سئالوه عن التبیان قبل ان یحتاجوا الیه ثم یحتمل بعد هذا ان کان علی ابتداً السوال کان من اهل النفاق یسئالون سوال تعنت لا سوال استرشاً انتهی، جلد ثاني سورة المائدة ص۸۴.

**پوښتنه:** په نېز د امام ابو حنیفه رحمه الله امر مطلق له قرینو څخه نه تکرار د ماموربه

غواړي او نه یې احتمال لري کما تقرر في اصول الفقه، نو ددې قول د علیه الصلوٰة والسلام "لو قلت نعم لوجبت" لکه څنګه چي تېره سوه معنا به یې څه وي؟

**ځواب**: ددې قول معنا داده چي که علیه الصلوٰة والسلام نعم ویلی وای، نو دا به ناسخ وای د امر مطلق د حج لابیاناً له. ولي چي د اصول الفقه په کتابو کي وايي چي تاخیر د بیان تر وخت د حاجت نه دی روا نو ددوی سوال یعني "افي کل عام" ته به حاجت نه وای.

**فائده**: له دې بیانه دا ظاهره سوه چي پوښتنه او سوال د مجمل لکه اقیموا الصلوٰة آه او یا د بشکل لکه په دې آیت کي "فعدتها ثلثة قروء" وغیر ذالک روا دی کما جاء في الحدیث النبوي "انما الشفاء العي السوال" یعني جوړ والی او دوا د جهل د مرض پوښتنه ده، بلکې ممنوع هغه پوښتنه ده چي شرع نه وي په راغلې لکه حج هر کال. یا پوښتنې د بني اسرائیلو چي قصې یې په سورت بقره کي تېري سوې عن لون البقرة المامورة بذبحها وغیر اللون مماذکر هنالک.

عَفَا اللّٰهُ عَنْهَا ۗ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ ﴿١٠١﴾ قَدْ سَاَلَهَا قَوْمٌ مِّنْ قَبْلِكُمْ

خدای ﷻ عفوه وکړه د هغو سوالو د امور شاقه چي تاسي کوله کالحج في کل عام، یعني بیا داسي سوالونه مه کوئ، او خدای ﷻ بخښونکی دی د ګناه او حلم لري چي سړی د ګناه په سبب ژر نه نیسي.

**پوهه**: چي په "قد سئالها قوم" کي ضمیر مؤنث راجع دی و "اشیاء" ته چي دمخه په آیت کي ذکر سو او یا راجع دی و "مسئلة" ته چي "لاتسئالوا" دلالت پر وکړی لکن مطلق مسئله نه هغه مسئله بعینها چي په الي کل عام کي ذکر سوه بل امثالها

**پوښتنه**: "سئال" خو متعدي په "عن" سره وي نحو سئلت عنه، مظهري ﷫ ددې پوښتنې په ځواب کي وايي چي عن ورسره محذو فدی ای سئل عنها د مثال په توګه بني اسرائیل چي امر سوه په ذبح د بقرې نو دوی سوالونه شروع کړه ماهي وما لونها شق ذالک علیهم یعني ددوی د سوالو له سببه خدای پاک پر دوی سختي وکړه چي د یوتیهم پر بقره د یو یتیم یې چي پلار یې صالح سړی ؤ و رتپه کړه او که دوی په سوالو خبري نه وای اوږدې کړي هره بقره چي ذبح کړې وای ددوی مقصد پکښې حاصلېدی لکن شددوا علی انفسهم فشدد الله علیهم.

**درویش وايي:** چې تير له قصه د بقرې په تفسير کې تېره سوې ده فراجع، او ثمود يانو له صالح عليه السلام څخه د اوښې په باره کې سوال وکړی چې اخير هغه اوښه سبب د عذاب استيصال ددوی وګرځېدله. او عيسی عليه السلام قوم له ده څخه د اسماني سترخوان په باره کې سوال وکړی چې اخير ددوی لپاره سبب د عذاب وګرځېدی. او يا بني اسرائيلو وروسته تر موسی عليه السلام خپل نبي شمويل عليه السلام ته وويل چې ته موږ ته يوه مَلِک ميعن کړه چې موږ د جالوت جبار سره جنګ وکړو تر پيرغ د هغه ملک لاندې نبي ورته وويل "قد جعل الله لكم طالوت ملكاً" او بني اسرائيلو د طالوت له سلطنته انکار وکړی الی اخير القصة وقد مرت.

ثُمَّ أَصْبَحُوا بِهَا كَٰفِرِينَ

وروسته دوی وګرځېدل په سبب د سوالو مذکوره ددوی چې دمخه نژدې هغه مختلف سوالونه د انبياً عليهم السلام څخه تېر سوه کافران، ولې چې دوی عمل ونه کړی او انکار يې وکړی له امروا به څخه.

**درویش وايي:** چې ابو ثعلبه الخشني رحمه الله وايي چې خدای جل جلاله فرائض پر خلګو مقرر کړي دي تاسې له وراندې څخه د هغو سوال مه کوئ تر فرضيت د خدای جل جلاله او نهي يې کړي دي له بعضې شيانو څخه، نو تاسې بې پردګي له هغو مه کوئ، او خدای جل جلاله حدود وضع کړي تاسې تر هغو تجاوز مه کوئ، او له بعضې شيانو يې عفوه کړې ده په هغو کې تاسې بحث مه کوئ.

**درویش وايي:** چې حسين الواعظ الکاشفي الهروي رحمه الله په خپل تفسير پارسي کې وايي (پس نيکبخت آن است که از حال ديګران عبرت ګيرد بقول وفعل فضولي اشتغال ننمايد ودرين باب ګفته اند)

بګوی آنچه ګفتن ضرورت شود — ديګر ګفتهارا فروبند در
بجای آر فعلی که لازم بود — زافعال بيحاصل اندر ګذر

**درویش وايي:** چې له دې قسمه څخه يوه عبرتناکه واقعه واورئ. راوي وايي چې يو سړی و چې د قاضي امام ابو يوسف رحمه الله مجلس ته به ډېر راتلی او همېشه به پټه خوله ناست و. يوه ورځ امام ابو يوسف رحمه الله و هغه ته وويل چې ته ولې يا خبري يا د يوې مسئلې پوښتنه نه کوې؟ هغه سړي ورته وويل اخبرني ايها القاضي متی يفطر

الصائم، قال اذا غابت الشمس، ماته خبر راکړه اې قاضي چي څه وخت به روژه ماتوي روژیاتي، امام یوسف رحمه الله ورته وویل چي لمر ولوېږي، هغه سړي ورته وویل که لمر تر نیمي شپي نه لوېدی امام رحمه الله وخندل او د جریر بیت یې وو ایه

وفي الصمت زين للخلى وانما صحيفة لبن المرء ان يتكلما

په پټه خوله والي کي زينت دی د بې عقل سړي، او کاغذ د عقل د سړي دادی چي خبري وکړي يعني هوښيار او بې عقل په خبرو سره معلومېږي.

## مَا جَعَلَ اللّٰهُ مِنۢ بَحِيرَةٍ

**پوه سه:** چي مراد له جعل څخه جعل شرعي دی چي يوه مفعول ته مضاعفېږي، والمعنى ماوضع وسن الله. کلمه د من زائده ده لپاره د استغراق د نفي.

**فائده:** د اهل جاهليت دا قانون و چي ددوی اوښه به پينځه واره لنګه سوه څلور به يې ښځي راوړې او پنځم به يې نر راوړی، نو دوی به ددې اوښي غوږ ورچاک کړی بيا نو ددې اوښي سپرتيا او شيدې وهر چاته حرامي وې او هيڅ چا به له اوبو څخه دا اوښه نه شړله، نو د بحيرة وزن فعلية دی مشتق دی له بحر څخه وهو الشق، او له ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي هغه پينځم نر به يې ذبح کاوه نرو او ښځو دواړو به يې غوښې خوړلې، او که به يې پينځم عيال هم ښځه وای د هغې غوږونه به يې هم ورچاک کړه.

## وَلَا سَآئِبَةٍ

نه سائبه خدای جل جلاله مشروع کړې ده.

**پوه سه:** چي "سائبة" عطف دی پر "بحيرة" باندي او کلمه د لا لپاره د تاکيد د ما ده.

**فائده:** د اهل جاهليت عادت دا و چي يو سړی به په سفر تلی، نو به يې وويل که زه له سفره په عافيت او سلامتيا راغلم، او که به ناجوړی و، نو به يې ويل که زه جوړ سوم، نو زما اوښه سائبه ده. نو د سائبه حکم عيناً لکه د بحيره داسي و في التحريم الانتفاع بها په سپرتيا کي يا د شيدو په خوړلو کي، نو د سائبة وزن د فاعلة دی او مشتق دی له دې محاورې څخه د عربو ساب الماٗ يسيب سيباً اذا جرى على وجه الارض، نو سائبه اصطلاحي د جاهليت هم مالک خوشي کړه هره خواته

چي څي؛ او بعض اهل تفسیر وايي چي د چا اوښې به په جاهلیت کې دوولس واره انثی راوړه، نو هغه به دوی سائبه کړه یعني په حکم کي لکه بحیره او شدې به یې و مېلمه ته روا وې، نو که به بیا دغه اوښه لنګه سوه د هغې غوږ به یې ورچاک کړی او له موره سره به یې خوشي کړه، نو دې اوښې ته به یې بحیرة بنت السائبة ویله.

**فائده:** بعض مفسران وايي چي سائبة خو پر وزن د فاعلة دی لکن په معنا د مفعولة دی ای المسيبة نحو عيشة راضية ای مرضية.

**درویش وايي:** چي د عيشة راضية په باره کي مطول ته رجوع وکړئ.

وَّلَا وَصِيْلَةٍ

او نه وصیله خدای جلّ جلاله مشروع کړې ده.

**درویش وايي:** چي والكلام في عطفها كالكلام في عطف ولا سائبة كما مر عن قريب فتذكر.

**فائده:** په جاهلیت کي که په د چا مېږي لور راوړه هغه به د مالک وه او که به یې نر راوړی هغه به ددوی د بتانو وچي دوی به خدایان بلله، او که به یې مېږ غبرګه لنګه سوه یو نر او یوه ښځه به یې راوړه، نو دوی به ویل دې لور وصل کړی خپل ورور ته یعني خپل ورور یې د ذبح پر نامه له خدایانو وساتی، نو نر به یې هم د خدایانو پر نامه نه ذبح کاوه، نو وزن یې فعیلة په معنی د فاعلة دی، او مظهري رحمه الله وايي چي وصیلة هغه مېږ ده چي اووه واره لنګه سي، نو دوی ورته ګوري که یې اووم نر و دوی یې ذبح کوي، نرانو اوښځو دواړو به یې غوښي خوړلې، او که به یې ښځه راوړه هغه به یې په خپلو پسو کي ایله کوله، او که به غبرګه لنګه سوه نر او ښځه به یې راوړه، نو نر به یې په سبب د انثی ژوندی پر ښو، او دا به یې ویله وصلت اخاها، او ښځه لور چي به لویه سوه شیدې یې حرامي وې ددوی پر ښځو باندي، او که به یو مړ سو یعني مردار به سو، نو نرو او ښځو دواړو خوړی او دا یې د خدای ذبیحه بلله او لېږي او نژدې قریبانو ته به یې غوښې په تحفه کي استولې.

وَّلَا حَامٍ

او نه خدای جلّ جلاله مشروع کړی دی حام، حام هغه مینده اوښ ته وايي چي دده د ملا له نطفې څخه به لس واره اوښې لنګې سوې، نو دوی به ویل قد حمی ظهره یعني

دي اوښ خپله شا له سپر تیا څخه وساتله، نو بیا نه څوک نه پر سپر یدل او نه یې بار پر بانْدي کاوه او نه به یې. دا اوښ له اوبو څخه منع کاوه. نو صیغه یې د اسم فاعل له بابه حمی یحمی دی په معنی د منع.

**فائده**: د "حام" اصل حامي و، د یا حرکت یې حذف کړی تخفیفاً اذا کانت ضمة او کسرة لانهما ثقیلتان في الیا. وروسته یې یا حذف کړه په سبب د التقا الساکنین له تنوینه سره فصار حام کما تقرر في علم الصرف او چي مړ یعني مردار به سو، نرانو او ښځو د اړو به یې غوښې خوړلې.

**درویش وایي**: چي د بخاري په حدیث کي چي له سعید بن المسیب ﷺ څخه یې روایت کړی دی ددغو الفاظو په مختصر ډول داسي تعریفونه کړي دي چي بحیره هغه اوښه ده چي دوی جاهلیت والا بې شدې د بتانو پر نامه پرې ایښې وې، نو هیڅ چا نه لوشل. او سائبه هغه اوښه ده چي دوی به خوشي کړه د خدایانو یعني بتانو پر نامه. نو چا به بار نه پر وړی او نه به پر سپر یدی. او وصیله هغه اوښه ده چي د بکارت وروسته یوه ښځه جونګی راوړه وروسته به یې بله جونګی راوړه دا به هم دوی د خدایانو پر نامه خوشي کوله. او حام هغه منده اوښ و. چي څو کاله چي دوی ورته مقرر کړي وه منډویي به یې وکړه دا اوښ هم دوی د بتانو پر نامه خوشي کاوه هیڅ بار به یې نه پر وړی او نه پر سپر یدی.

**درویش وایي**: چي والله اعلم بالصواب في هذه التفاسیر الواردة في شان البحیرة والسائبة والوصیلة والحام.

وَلَٰكِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا يَفْتَرُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ ۖ وَأَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ ﴿١٠٣﴾

لکن دغه کسان چي کافران دي په قصد درواغ وایي پر خدای ﷻ چي دوی وایي ان الله امرنا بها چي موږ خدای ﷻ په دغه کارو سره امر کړی یو او اکثر د دوی عقل نه لري چي تحریم او تحلیل نسبت و خدای ته کوي. بلکې دوی تقلید د خپلو آباو واجداد وجهال کوي.

**ډیره سه**: چي په لفظ کي د اکثر اشاره ودې ته ده چي بعض ددوی په بطلان سره د دغو کارو لکن حب او تقلید او مانع د دغو کارو ګرځېدلي دي.

**ضمیمه**: د درویش په خیال شخصي دا مختلف روایات چي په بیان د بحیره او

سائبه وغیره چي وارد دی سبب یې دادی چي مشرکان د مکې مختلف اقوام وه چا بحیره وسائبه وغیره پر یوه قانون کوله او بل چا پر بل قانون کوله. نو هر راوي ته چي کوم قانون رسېدلی و پر هغه قانون یې روایت د بحیره وسائبه وغیرهما کړی دی فلا تناقض بین هذه الروایات المتضادة بحسب الظاهر في الواقع ونفس الامر فافهم فان هذا سانح جدید والله الموفق.

**وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا إِلَىٰ مَا أَنزَلَ اللَّهُ وَإِلَى الرَّسُولِ قَالُوا حَسْبُنَا مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ آبَاءَنَا**

چي ودوی ته وویل سي یعني د ناصح له خوا څخه چي علیه الصلوة والسلام و، چي تاسي راسئ رجوع وکړئ په تحلیل او تحریم کي د شیانو و هغه کتاب ته چي خدای ﷻ نازل کړی دی یعني القرآن العظیم الشان. او رسول ته چي محمد ﷺ دی.

**یوه سه:** چي "والی الرسول" عطف دی پر "الی ما انزل الله" باندي. نو دوی وایي چي کافي او بس دی موږ لره هغه طریقه چي موږ پر هغه لاړ پیدا کړه زموږ پلرونه یعني شرک او بت پرستي.

**یوه سه:** چي "حسبنا" مبتدا ده او "ماوجدنا" یې خبر دی.

**فائده:** په دې ځواب د دوی دا معلومه سوه چي دوی پر بت پرستی هیڅ دلیل نه لري بې له قصوره د عقل او تقلید د اباؤ ددوی. ولي چي که یې کوم عقلي یا نقلي دلیل درلودای هغه به یې ویلی وای.

**أَوَلَوْ كَانَ آبَاؤُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ شَيْئًا وَلَا يَهْتَدُونَ ⑩٤**

آیا دوی اقتدا په پلرو پسي کوي په داسي حال کي چي پلرونو ددوی علم نه درلودی پر هیڅ شي او نه یې هدایت درلودی.

**سوال:** نفي د علم د شي عموماً ددوی د پلرو څخه څرنګه صحیح دی؟

**ځواب:** مراد نفي د علم دی پر طریق حق موصل الی الله ته بقرینة المقام.

**یوه سه:** چي واو لیاره د حال دی او همزه د انکار پر داخل سو. نو مراد نفي د انکار د تقلید الاباً دی چي اباً جاهلان او ګمراهان وي. ولي سړی چي تقلید کوي د هغه چا دي کوي چي هغه پر حقي لاړي او هدایت باندي وي لکه علیه الصلوة والسلام او مؤمنان. حسین واعظ کاشفي هروي رحمه الله وایي (یعني ایشان جاهل وګمراه بودند تقلید ایشان نافع نیست بلکي تقلید عالم می یابد تاکار به تحقیق

انجامد) جلال الدین رومي رحمه الله په مثنوي کي وايي.

از مقلد تامحقق فرقها است		این یکی کوهست وان دیگر صدا است
دست دربینازنی آیی مراه		دست در کور می زنی افتی بچاه

**درويش وايي:** چي په اسئلة الحکم کي شيخ علي دداح داسي وايي اما ماورد في الاحاديث النبوية في حق الدجاجلة وظهورها بين الامة فلاشک عند اهل العلم ان الدجاجلة هم الائمة المضلون يعني علما سو لاسيما من متصوفة الزمان يعني د تکلفي صوفيانو ددې زمانې چي پيران ځانونه بولي او خليفه ګاني چي خلګ خپل و مريدی ته په حيلو سره رابولي. علي وايي وقد شاهدناهم قاتلهم حيث ماکانوا انتهی، قال الشاعر الفارسي.

بروی وریا خرقه سهلست دوخت		گرش باخدا درفروشي نکوست
بنزدیک من شیر وراهزن به است		کی فاسق بود پارسا پیرهن

حافظ شیرازي رحمه الله وايي

قلندری نه بریشست وموی یا ابرو
حساب راه قلندر بدانکه موی بمواست
گذشتن از سر مو در قلندری سهلست
چو حافظ انکه زسربگذرد قلندر اوست

بيت

قلندران حقیقت به نیم جو نخرند		قبای اطلس آن کس که از هر غاریست

**يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا عَلَيْكُمْ أَنفُسَكُمْ لَا يَضُرُّكُم مَّن ضَلَّ إِذَا اهْتَدَيْتُمْ**

اې هغه کسانو چي ايمان يې راوړی دی تاسي ته ضرر نه سي رسولای هغه کسان چي ګمراهان دي چي تاسي پر هدايت ياست..

**پوه سه:** چي جارومجرور يعني "عليکم" اسم فعل دی مجموع مرکب په معنی د الزموا دی، نو ځکه يې "انفسکم" ته نصب ورکړی دی. والمعنی الزموا اصلاح انفسکم باداً الاوامر اللهية وترک المنکرات.

**پوه سه:** چي "لايضرکم" جمله مستانفه ده "من" فاعل د "لايضرکم" دی.

**درويش وايي:** چي ددې آيت شان نزول تقريباً په اکثريت د مفسرينو دادی چي د

مسلمانانو سره به ډېر غم ورسره و د کافرانو چي کاشکي دوی هم مسلمانان سوي وای بسبب القرابات او غیرها بینهم وبینهم، نو خدای ﷻ مسلمانانو ته اطمنان ورکړی چي تاسي چي پر هدایت او پر دین د اسلام یاست تاسي ته کفر د اقاربو یا نور تاون نه لري، او مجاهد او ابن جبیر وایي چي دا آیت په شان کي د د یهودو او نصرای وو نازل سوی دی، نو معنا د آیت داده چي اې مؤمنانو چي تاسي اصلاح د خپلو ځانو کوئ تاسي ته تاوان نه کوي کفر د اهل کتابو چي تاسي پر هدایت او صراط مستقیم یاست، نو خپل جزئیه ځني اخلئ او دوی و خپل کفر سره پرېږدئ، ابن ابي حاتم د عمر مولی عفرة څخه روایت کړی دی چي دا آیت په هغو کسانو کي نازل سوی دی چي یو سړی به مسلمان سو او مور پلار یا ورور به یې کافران وه، نو دې مسلمان چي به شیریني د ایمان په زړه کي محسوسه کول، نو مور پلار یا ورونه به یې هم اسلام ته دعوت کړه هغو به ورته ویل حسبنا ماوجدنا علیه آبائنا، نو مسلمان به ډېر غمجن سو، نو خدای ﷻ مسلمانانو ته اطمنان ورکړی چي تاسي چي پر هدایت یاست د مور او پلار یا ورونو کفر و تاسي ته تاوان نه رسوي لانه لکل امرء ماعمل.

**فائده:** ددې آیت معنا دا نه ده چي امر بالمعروف او نهي عن المنکر ته ضرورت نسته، ولي چي د مسلمانانو د هدایت یو لازم دادی چي امر بالمعروف او نهي عن المنکر به کوي په قدر د طاقت، یعني یا بالضرب والغضب کالامرا، او یا په ژبه لکه علماً او یا به په زړه کي بد ځني وړي، له ابوبکر صدیق ﷺ څخه روایت دی چي ده وویل "یا ایها الناس" تاسي دغه آیت یعني "یاایها الذین آمنوا علیکم انفسکم لایضرکم من ضل" او ترجمه یې ځایه کوي یعني چي امر بالمعروف او نهي عن المنکر ته ضرورت نسته چي سړی په خپله پر هدایت وي، ابوبکر ﷺ زیاته کړه چي ما له علیه الصلوٰة والسلام څخه اورېدلي دي چي خلگو یعني مسلمانانو چي منکر یعني في الدین ولیدی ولم تغیروه یعني بالنهي عنه حسب الطاقة قریب ده چي خدای ﷻ پر ټولو عذاب نازل کړی یعني فاعل المنکر وتارک النهي عن المنکر، رواه ابن ماجه والترمذي، او روایت کړی دی ترمذي وابن ماجه د ابي ثعلبه الخشني ﷺ څخه په تفسیر کي ددې آیت "علیکم انفسکم لایضرکم من ضل اذا اهتدیتم" دی وایي چي ما سوال وکړی له علیه الصلوٰة والسلام څخه ددغه آیت، نو

علیه الصلوٰة والسلام راته وویل چي بلکې تاسي امر بالمعروف کوئ یو وبل ته او نهي عن المنکر کوئ تر هغه وخته چي تا ولیدل چي د بخل او حرص اطاعت کړل کېدی، خلګ یعني مسلمانان د دنیا حریصان او بخیلان وه او د خواهشات نفسانیه وو مسلمانانو متابعت کاوه او دنیا خلګو غوره کړي وه او ذي رای خپله رایه یې خوښه وه یعني د بل چا خبري یې نه منلې.

**درویش وايي:** چي لکه د اوسني زماني ملایان چي په یو مسجد کي امام سو ځان ته د مجتهد درجه ایږدي او د بل عالم که څه هم وجداناً دی پوهېږي چي تر ما عالم دی بلکې که یې څه هم استاذ نه مني او تا داسي یو کار ولیدی چي چاره نه وه ځني فعلیک نفسک یعني ته لازمه وګرځوه اصلاح د خپل ځان ودع امر العوام او پرېږده کار د عوامو یعني امر بالمعروف ودوی ته او نهي عن المنکر ددوی فان ورائکم ایام الصبر چي ستاسي په مخ کي ورځي د صبر دي فمن صبر فیهن قبض علی الجمر که صبر وکړي په هغو ورځو کي په موټه کي به یې سکروټه وي والمعنی علی التشبه یعني لکه په موټه کي چي یې سکروټه وي للعامل فیهن اجر خمسین رجلاً یعملون مثل عمله قالوا اجر خمسین رجلاً منهم قال خمسین رجلاً منکم، حمید الله غزنوي رحمه الله وايي.

چوبینم دین احمد درغریبی دلم سوزان وزچشم خون جاری

**درویش وايي:** چي بغوي رحمه الله وايي ددې آیت په تفسیر کي له ابن عباس رضي الله عنه څخه داسي روایت کړی دی چي تاسي امر کوئ بالمعروف او نهي کوئ عن المنکر که خلګو ستاسي نصیحت نه مني او پر تاسي یې رد کاوه فعلیکم انفسکم ابن عباس رضي الله عنه وروسته وویل چي د قرآن بعض آیتونه چي د هغو تاویل او وقوع دمخه تر نازلېدو د قرآن د آیتو تېره سوې وي لکه هغه آیتونه چي د یهودو او نصاری په دمخني وقائعو کي نازل سوي دي، او بعض داسي آیتونه چي د هغو تاویل په زمانه کي د علیه الصلوٰة والسلام ښکاره سوی لکه انکار د یهودو او نصاری ومشرکینو پر نبوت د علیه الصلوٰة والسلام او طعن پر قرآن کریم ویل وامثال ذالک، او بعض داسي آیتونه دي چي تاویل یې وروسته تر وفات د علیه الصلوٰة والسلام لږ زمانه ښکاره سوی چي بعض اقوام په خلافت د ابوبکر الصدیق رضي الله عنه له زکوٰة څخه یې

انکار وکړي، او بعض داسي آیتونه دي چي تاویل به یې په اخیره زمانه کي پیدا کېږي لکه تابع والی د مسلمانانو د نصاری وو کما في هذا الزمان، او بعض داسي آیتونه دي چي تاویل به یې په ورځ د قیامت سي من الحساب والجنة والنار، ابن عباس رضي الله عنه زیاته کړه چي تر هغه وخته پوري چي ستاسي او خواهشات سره برابر او یو وي او فرقې فرقې نه یاست گرځېدلي او یو له بله سره په جنگ نه یاست اخته سوي، نو امر بالمعروف او نهي عن المنکر کوئ او چي زړونه مو سره مخالف سوه او ډلي ډلي سولاست او یو له بل سره په جنگ اخته سولاست فامرؤ ونفسه، یعني سړی وخپل کار بنه سره پوهېږي فعند ذالک یجئ تاویل هذه الآیة یعني "یاایها الذین آمنوا علیکم انفسکم" الی اخیر الآیة.

إِلَى اللَّهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيعًا فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿١٠٥﴾

او خاص خدای جل جلاله ته رجوع ده ستاسي یعني په ورځ د قیامت، نو خدای جل جلاله به تاسي خبر کړي په هغه څه چي تا یې عمل کاوه په دنیا کي، نو هر چاته به د عمل جزاء ورکړي، اما الجنة واما النار.

**پوهنه:** چي مرجع مصدر میمي دی او کلمه د "ما" موصوله ده عائد یې محذوف دی ای بماکنتم تعملونه ففي هذه الآیة وعد للمؤمنین ووعید للکافرین، ورځ د لوی اختر ده او په دغه کال حج اکبر هم د حاجیانو خدای جل جلاله نصیب کړی سنه ۱۴۲۷ هـ ق.

**درویش وایي:** چي بغوي، بخاري، ترمذي او ابوداؤد د متقارب المعنی روایات کړي دي، ابن عباس رضي الله عنه چي تمیم داري او عدي بن بدا چي دوی دوه نصاری وه د تجارت په نیت د شام پر لور روان سوه او ددوی ملگری بدیل مولی د عمرو چي مسلمان هم و په دې تجارت کي ددوی سره راهي سو، شام ته چي ورغله بدیل ناجوړی سو، نو ده له هوښیاری څخه کار واخستی هرڅه تجارتي شیان چي دده سره ورسره وه هغه یې توله په یو کاغذ کي نوشته کړه او کاغذ یې خپل د اغوستلو په کالو کي کېښښوی او هغه خپل دوه نصاری ملگري یې په دغه کاغذ نه کړه خبر او دا وصیت یې ورته وکړی که چېري زه مړ سوم زما دغه کالي به زما وقریبانو ته وسپارئ، نو بدیل رضي الله عنه وفات سو، او نصراني ملگرو یې هوري په شام کي خاورو ته

وسپارل، وروسته نصرانیانو دده په غوته کي وکښل یو د سپینو زرو جام پکښې و
چي وزن یې درې سوه مثقاله و او په سرو زرو نقشي جوړ و. هغه جام نصرانیانو
واخستی پټ یې کړی وروسته چي نصرانیانو خپل تجارت وپای ته ورساوه او
مدینې منورې ته راغله. د بدیل ﷺ کالي یې د هغه و قریبانو ته وسپارل، هغو چي
غوټه خلاصه کړه په کالو کي یې هغه خط پیدا کړی چي هغه توله شیان چي دده وه
پکښې نوشته وه چي په هغو کي یو جام مذکور هم و. نو اقربا د بدیل ورغله تمیم
داري او عدي ته او ورته وه یې ویل چي زموږ قریب بدیل د مریضۍ په حالت کي د
تداوي لپاره یو شی خرڅ کړی هم و، هغو نصرانیانو ورته وویل یا، بیا هغو ورته
ورته وویل چي د خپلي نفقې لپاره یې یو شی خرڅ کړی؟ هغو ورته وویل یا. نو د
بدیل اقرباؤ ورته وویل چي موږ دده په کالو کي یو خط پیدا کړی چي هغه توله
هغه شیان چي دده سره وه في وقت المرض نوشته وه چي په هغو کي یو جام و د
سپینو زرو چي طلا کاري پر سوې وه چي درې سوه مثقاله یې وزن و، چي اوس
ستاسي په راوړو شیانو کي د بدیل هغه جام نسته. نصرانیانو ورته وویل چي موږ
نور په هیڅ نه یو خبر، موږ ته یې صرف دومره وصیت وکړی چي دا زما غوټه او
کالي زما قریبانو ته ورسوئ او موږ دده په جام هیڅ علم نه لرو. نو د بدیل قریبانو دا
واقعه تر علیه الصلوٰة والسلام پوري ورسول، نو دا آیت نازل سو.

**يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ حِينَ الْوَصِيَّةِ اثْنَانِ**

اې هغه کسانو چي ایمان یې راوړی دی شاهدي ستاسي تر منځ چي یوه ته
ستاسي مرګ حاضر سي په هغه وخت کي چي مریض وصیت کوي د دوو کسو
شاهدي ده.

**پوه سه:** چي "شهادة بينكم" مبتدأ ده او "اثنان" یې خبر دی په حذف د مضاف،
والتقدير "شهادة بينكم شهادة اثنين.

**درویش وایي:** چي باعث د حذف د دادی چي حمل د اثنان چي خبر دی پر شهادت
صحیح سي کما لا یخفی.

**فائده:** دا جمله چي مرکب ده له مبتدأ او خبره څخه لفظ خو یې جمله خبریه ده
نکن په معنا د انشا ده یعني یشهد اثنان.

**فائده:** شهادت دلته په معناد اشهاد دی ای الاحضار ووصیت کولو ته کما یدل علیه القصة.

**فائده:** اذا حضر" ظرف دی د شهادت په معنا د اشهاد.

**فائـده:** د "اذا حضر احدکم الموت" معنی ده اذا ظهـرت امارات المـوت لانفس الموت لانه لایمکن الایصا حین احضار نفس الموت.

**مسئله:** د دوو کسانو حضور بنا پر اولی دی ورنه د یوه سړي حضور هم کافي دی د وصیت لپاره.

ذَوَا عَدْلٍ مِّنكُمْ أَوْ آخَرَانِ مِنْ غَيْرِكُمْ

چي دغه دوه کسه خاوندان د عدالت وي ستاسي مسلمانانو څخه "ذوا عدل" صفت دی د اثنان ذوا عدل یې له دې سببه ووایه چي عادلان د مسلمانانو قابل د اعتماد وي، "او آخران من غیرکم" عطف دی پر اثنان باندي، والمعنی او شهادة اخرین من غیر اهل دینکم یعني اهل الذمة په ابتدا کي د اسلام چي مسلمانان شاهدان نادر وه خصوصاً په حال کي د سفر، نو د اهل ذمـه وو شهادت هم روا وو بیا په دې آیت منسوخه سوه واشهدوا ذوی عدل منکم، نو اوس د ذمي شهادت که په هر دین کي وي پر مسلمان نه قبلیږي، ولي شاهدي خو قسم د ولایت ده ولا ولایت للذمي علی المسلم او شاهدي د ذمي پر ذمي باندي روا ده لان اهل الذمة بعضهم اولیا بعض.

إِنْ أَنتُمْ ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ

که تاسي سفر کاوه په مځکه کي.

**یوه سه:** چي "ان" شرط دی ځواب یې فاصابتکم دی، او انتم مرفوع علی شریطة التفسیر یعني اصل داسي و ان ضربتم انتم في الارض بیا یې ضربتم حذف کړی وروسته یې ضربتم د هغه تفسیر او بیان راوړی.

**سوال:** ددې حذف کولو او بیانولو فائده څه ده؟

**ځواب:** فائده یې اولاً انتظار دی وعامل ته "انتم" وروسته دفع د انتظار ده، علما د علم معاني وایي چي هغه علم چي تر انتظار وروسته حاصل وي هغه علم الذ او اثبت في العقل وي والی هذا اشار المولی الجامي قدس سره في کتابه یوسف زلیخا... چه خوش باشد که بعد از انتظاری،......، بامید رسد امیدواری.

## فَأَصَابَتْكُمْ مُصِيبَةُ الْمَوْتِ

نو تاسي ته ورسېدى مصيبت د مرگ، والاضافة بيانية، يعني نو تاسي سوا ست چي دغو دوو كسانو من غيركم وصيت وكړى او خپل مال ودوى ته په لاس ورکړى، وروسته چي هغو دوو كسانو د ميت مال راوړى بعض ورثه د ميت پر هغو د خيانت دعوه وكړه يعني د مړي له مال څخه تاسي يو شى پټ كړى كالجام المذكور في القصة او هغو دوو كسانو د خيانت انكار وكړى.

**پوښتنه**: پر دې تقدير اتو چي موږ وكړه قرينه څه شى ده؟

**ځواب**: قرينه داده چي ورثه وو ته د بديل ميت كاغذ ورسېدى چي جام پكښې ذكر و، نو ورثه وو د بديل هغو دوو كسانو ته وويل چي جام مو څه كړى هغو دوو كسانو انكار وكړى چي جام موږ نه دى ليدلى فافهم.

## تَحْبِسُونَهُمَا مِنْ بَعْدِ الصَّلَوٰةِ

**پوه سه**: چي "تحسبونهما" صفت دى د "اثنان" عادلان كه د مسلمانانو څخه وي او كه من غيرهم. مطلب هغه كسان چي حاضر وي په وخت كي د ايصا د ميت، او بعض مفسران چي تخصيص كوي په اخرين فقط هغه صحيح نه دى، ولي چي شک وورثه وو ته د ميت خو خاص په آخران من غيركما پوري نه دى بلكې چي جام ورک سو د ورثه د ميت شک د پټولو پر دواړو قسمو شاهدانو سته. والحاصل تاسي يعني ورثه د ميت به درويې هغه دوه كسان چي په ايصا كي د ميت حاضر وه او د خيانت في الجام څخه دى.

**پوه سه**: چي كلمه د "من" زائده ده او مراد له "صلوٰة" څخه صلوٰة العصر دى بجعل اللام للعهد الخارجي بقرينة ان وقت الصلوٰة المذكورة وخت دى د اجتماع د خلگو او وخت دى د اجتماع د ملكو حفظه وو د ورځي او د شپې په دغه وخت كي او بل په قرينه ددې چي تول له اهل اديان ددغه وخت تعظيم كوي او له حلف كاذب څخه ځان ساتي، او بل په قرينه ددې چي په صحيح حديث كي ثابته ده چي عليه الصلوٰة والسلام چي به چاته قسم وركاوه په هم دغه وخت كي يې وركاوه.

فَيُقْسِمٰنِ بِاللّٰهِ اِنِ ارْتَبْتُمْ

نو دغه دوه کسه که منکم وي او که من غیرکم وي قسم به اخلي په خدای ﷻ سره، که تاسي ددوی په خیانت کي شکیان واست اې ورثه وو د میت.

**پوه سه:** چي دا شرط جمله معترضه ده فائده یې داده که شک او ارتیاب د ورثه د میت د هغو کسانو په خیانت کي نه وي فلاحاجة الی تحلیفها. فالمعنی که تاسي شکیان واست اې وارثانو د میت په خیانت کي د هغو کسانو، او هغه کسان له خیانت څخه منکر وه، نو دي حاکم الوقت و دوی ته قسم ورکوي.

**پوه سه:** چي "ان ارتبتم" چي شرط دی پر جزا یې "فیقسمان" دلالت کوي، نو د قسم جواب دا عبارت قرآني دی.

لَا نَشْتَرِيْ بِهٖ ثَمَنًا

ای لانستبدل یعني شرا مجاز ده له استبدال څخه او ضمیر د به یا راجع دی و قسم ته یا والله "ثمناً" ای عوض الدنیا مراد یې دادی چي زموږ غرض دنیاوي نه دی چي ورثه د میت یې پر موږ دعوی کوي، یعني قسم موږ کاذباً نه اخلو بلکې موږ په خپل ویناکي صادق یو موږ خیانت نه دی کړی.

وَلَوْ كَانَ ذَا قُرْبٰى

که څه هم وصي صاحب د قرابت د میت وي لکن ورثه د میت دعوی د خیانت پر لري ددې آیت مطلب دادی چي قسم ورکول یوازي په اجنبي پوري خاص نه دی بلکې قریب ته چي نور ورثه دعوه د خیانت پر وکړي او دی منکر وي قسم به ورکړه کېږي.

وَلَا نَكْتُمُ شَهَادَةَ اللّٰهِ

او موږ نه پټوو شهادت د خدای ﷻ یعني هغه شاهدي چي موږ یې امر کړي یو په اداکولو سره.

**پوه سه:** چي مراد له شهادت څخه شهادت متعارف نه دی، ولي په ځای کي خو ځای د شهادت متعارف نسته بلکې مراد ځني اظهار الحق دی او اخبار بالصدق د وصیت په باره کي د میت که څه هم پر ځان شاهدي اداکوي یعني د میت قریب او خیانت یې کړی وي که چي نور ورثه پرده باندي بد ګمان وچي ده به شی پټ کړی وي.

إِنَّآ إِذًا لَّمِنَ ٱلۡأٓثِمِينَ

نو موږ دغه وخت چي حق پټ کړو د گناه کارانو له ډلې څخه به یو.

په صحیح حدیث کي راغلي دي چي څه وخت چي دغه آیت نازل سو رسول الله ﷺ د مازدیگر لمونځ وکړی، نو تمیم او عدي چي نصاریان وه په نېږ د منبر نبوي داسي قسم ورکړی چي ووایاست بالله الذي لا اله الا هو چي موږ خیانت نه دی کړی په شي کي چي موږ ته راکړل سوی دی د بدیل له خوا څخه یعني هیڅ شی مو نه دی پټ کړی، هغو دواړو دا قسم واخستی، نو علیه الصلوٰة والسلام دوی خوشي کړه.

**پوه سه**: چي سعید بن جبیر له ابن عباس ﷺ څخه داسي روایت کړی دی چي څو زمانه وروسته د بدیل هغه جام په مکه مکرمه کي پیدا سو، د بدیل قریبانو له هغه سړي څخه چي جام ورسره پوښتنه وکړه چي دا جام تاته چېري په لاس دُرغلی؟ هغه سړي ورته وویل چي ما له تمیم او عدي څخه رانیوی، د بدیل قوم چي بني سهم یې بلل په خبره سوه، نو تمیم او عدي ته ورغله چي موږ خو جام پیدا کړی په مکه مکرمه کي او هغه سړي وویل چي ما دا جام د تمیم او عدي څخه رانیولی دی، تاسي خو ویل چي موږ د بدیل په ترکه کي خیانت نه دی کړی!؟ دوی دوو داسي ځواب ورکړی چي موږ خو دا جام له بدیل څخه رانیولی و، نو د بدیل ورثه وو ورته وویل چي موږ تاسي ته وویل چي بدیل خو به یو شی د خپل ما في الید څخه د تداوي یا نفقې لپاره نه وي خرڅ کړی تاسي ویل یا. نو اوس څرنگه تاسي وایاست چي موږ له بدیل څخه رانیولی و، تمیم او عدي په ځواب کي ورته وویل چي موږ د رانیولو شاهدان نه درلوده، نو موږ د رانیولو خبره پټه وساتله. ولي که موږ اقرار کړی وای چي موږ له بدیل څخه رانیولی دی تاسي د شاهدانو مطالبه کوله، نو ځکه مو د شرا معامله پټه وساتله، نو د بدیل ورثه وو د تمیم او عدي قضیه وعلیه الصلوٰة والسلام ته ورسول، نو دا آیت نازل سو.

فَإِنۡ عُثِرَ عَلَىٰٓ أَنَّهُمَا ٱسۡتَحَقَّآ إِثۡمٗا

که علم راغلی و ورثه ته د میت واصل العثر الوقوع علی الشئ، پر دې باندي چي دغه دوه وصیان د میت چي مراد ځني دلته تمیم او عدي دي دوی مستحق

گرځېدلي دي يعني يو داسي فعل يې کړی دی چي هغه سبب گرځېدلی دی د گناه، چي هغه خيانت و ددوی چي جام يې پټ کړی بيا يې په دروا غو قسمونه هم پر واخستله چي موږ په جام نه يو خبر او وروسته يې دعوه ددې وکړه چي موږ جام له بديل څخه رانيولی و تاچي دوی له ځانو څخه تهمت د خيانت لېري کړي او معامله يې تر دې ځايه راورسول چي ورثه وو د بديل ته يقين سو خيانت د عدي او تميم.

فَاٰخَرٰنِ يَقُوْمٰنِ مَقَامَهُمَا مِنَ الَّذِيْنَ اسْتَحَقَّ عَلَيْهِمُ الْاَوْلَيٰنِ

ای رجلان آخران مبتدأ ده "يقومان مقامهما" خبر دی د مبتدأ. ودرېږي دا دوه کسان په ځای کي د هغو دوو چي پر خيانت د هغو دوو د بديل د ورثه وو علم راغلی

**سوال:** آخران خو نکره ده، نو څرنگه مبتدأ واقع سوه؟

**ځواب:** په حذف د موصوف کما اشرنا اليه ای رجلان آخران.

**پوه سه:** چي مراد له مقام څخه د هغو دوو مقام د شاهدی نه دی لکه هغو دوو چي ادأ کړه او حق شاهدي نه وه بلکې مقام د حبس او تحليف يعني قسم ورکول دي نورو دوو ته لکه اولو دوو ته چي يې ورکړی.

**پوه سه:** چي "من الذين" حال دی له فاعل څخه د "يقومان" ای من ورثة الميت چي حق د تحليف لري پر دوی اول دوه کسان، يا معنا داده هغه دوه کسه چي اقرب وه ميت وي او وارثان يې وي يعني دا دوه وارثان دي قسم واخلي پر کذب د اولو دوو

**فائده:** تخصيص د دوو اخران په سبب د خصوص د واقعې دی د بديل چي وارثان يې دوه کسان وه، او که يې وارث يو و هغه ته به قسم ورکوي، او که يې ورثه تر دوو بالا وه تولو ته به قسم ورکوي.

**پوښتنه:** آخرانو ته ولي قسم ورکول کېږي؟

**ځواب:** په حديث شريف کي راغلي دي "البينة على المدعى واليمين على من انكر" په موضوع کي د بديل خو تميم او عدي دعوه د شرأ د جام وکړه له بديل څخه لکن شاهدان د شرأ يې نه درلوده او ورثه د بديل له شرأ څخه منکر وه، نو خو دوی ته حلف "قسم" راجع سو.

**پوه سه:** چي ضمير د "عليهم" راجع دی "والذين" ته چي مراد ځني ورثه د ميت دي

فَيُقْسِمٰنِ بِاللّٰهِ لَشَهَادَتُنَآ اَحَقُّ مِنْ شَهَادَتِهِمَا

نو دا دوه قسم واخلي په خدای ﷻ سره پر خیانت د اولینو او پر کذب د شرا د جام له میت څخه کمامر ان الاولین ادعوا الشرا من بدیل المیت.

**پوه سه:** چي د "یقسمان" مفعول خو محذوف دی وهو کذب الاولین کمامر في الترجمة او د "لشادتنا" سره بل فعل محذوف دی ای ویقولان، یعني قسم زموږ احق په قبول سره دی تر قسم د اولینو کما في قوله تعالی "فشهادة احدهما اربع شهادات انه لمن الصادقین" یعني دوی به وایي چي زموږ شاهدي په دې احق بالقبول ده چي موږ رشتیا وایو او دوی به دروواغ وایي.

وَمَا اعْتَدَيْنَآ ۖ اِنَّآ اِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۰۷﴾

او موږ تجاوز نه دی کړی تر حق په قسم کي، ولي که موږ تجاوز وکړو موږ به د ظالمانو له ډلي یو، ولي چي ظالم هغه څوک بولي چي باطل په ځای کي د حق ایږدي.

**درویش وایي:** دا آیت چي نازل سو دوه کسه له قریبانو څخه د بدیل سهمي ولاړ سول چي د یوه نوم عمرو بن العاص و او د بل نوم مطلب بن وداعة السهمي و، نو د مازدیگر وروسته یې قسم واخستی.

**پوښتنه:** دا دوو کسانو څرنگه قسم اخستی چي بدیل ؓ دا جام پر تمیم او عدي باندي نه دی خرڅ کړی، نو دوی څه علم درلودی؟

**ځواب:** دوی قسم داسي نه دی اخستی چي نه یې دی خرڅ کړی حتی یرد ماذکر بلکې دوی داسي قسم واخستی چي موږ علم نه لرو چي بدیل به دا جام پر تمیم او عدي باندي خرڅ کړی وي وهذا القسم صحیح فتامل.

**درویش وایي:** چي مطلب د مذکوره آیتونو دادی چي څوک ناجوړی سي او عقل یې پر ځای وي او بعض علامات د مرگ ورته ښکاره سي او د وصیت اراده لري باید دوه کسه عادلان چي دده له نسبه څخه وي، او که یې له نسبه څوک نه و حاضر بیا دي دوه کسه عادلان دده په دین شریکان شاهدان کړي پر وصیت خپل او که نه اهل نسب وه نه اهل دین وه یعني چي په سفر کي وي بیا دوه نور کسان چي په دین نه وي سره شریکان هغه دي پر وصیت شاهدان کړي لکه په مانحن فیه یعني د

بدیل سهمي په مرگ کي چي بې له عدي او تمیم چي نصارٰی بل څوک نه وه، نو که هغو شاهدانو ترکه د میت راوړه او ورثه د میت په هغه سره قانع وه فلا حاجة الی شیئ من التحلیف وغیره، او که ورثه وو ته د میت څه شک پیدا سو چي بعض شیان د ترکة المیت به دوی پټ کړي وي او خیانت به یې کړی وي، نو دوی ته دي قسم ورکړي چي موږ له شاهدی او ترکة المیت څخه شی نه دی پټ کړی په تغلیظ د وخت یعني ورروسته د ماز دیگر تر لمانځه، نو که هغو قسم راخستی، نو خلاص سول، ورروسته که ورثه وو د میت د ترکة المیت ددوی سره ولیدی ورثه وو چي پوښتنه څني وکړه چي دا شی څو زموږ د میت دی او شاهدانو دعوه وکړه چي موږ دا شی له میت څخه رانیولی دی، نو ورثه دې قسم واخلي او ددوی په قسم دي عمل وکړل سي، د میت د ورثه د قسم وجه دېره تږدې تېره سوه فتذکر، وهذا حاصل الآیات المتلوة في قصة بدیل فاحفظه.

ذٰلِكَ

دغه حکم الهي چي قسم دي هغه دوو وصیانو ته ورکوي په نېز د شک د خیانت د وصیانو، او بیا دي قسم ورکوي ورثه وو ته د میت که چېرې دعوه وکړه وصیانو په رانیولو سره له میت څخه او بیا دي عمل د ورثه وو په قسم سره کوي.

أَدْنَىٰٓ أَن يَأْتُوا۟ بِٱلشَّهَـٰدَةِ عَلَىٰ وَجْهِهَآ أَوْ يَخَافُوٓا۟ أَن تُرَدَّ أَيْمَـٰنٌۢ بَعْدَ أَيْمَـٰنِهِمْ ۗ

نږې ده ودې ته چي راتګ به کوي وصیان په شهادت سره یعني په اظهار الحق سره او په صحیح بیان سره د هغه څه چي میت ودوی ته ویلي وه پر هغه طریقه سموعه من المیت من غیر خیانت "اویخافون آه" عطف دی پر "ان یاتوا" یعني اقرب ودې ته چي اوصیا دي بېرېږي چي رد به سي قسم و ورثه وو ته پر انکار د دعوې د وصیانو وروسته تر قسمو د وصیانو او د رصیانو رسوایي پکښې راسي، نو ددې رسوایي له کبله باید د میت وصیان د حق اظهار وکړي.

وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَٱسْمَعُوا۟ ۗ وَٱللَّهُ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلْفَـٰسِقِينَ ۝

ای احفظوا احکام الله واتقوا الله، او تاسي اورئ ما امرکم الله به، اوربده اجابت الله، هدایت نه کوي یعني که تاسي د خدای نه وبېرېږئ او سمع د قبول د احکامو د

خدای ﷻ ونه کړي نو تاسي قوم فاسقین سئ، او خدای و فاسقانو ته هدایت ودلیل ته یا لاري ته د جنت نه کوي.

**پوه سه:** چي جمله "واتقوا الله" معطوف ده پر مقدر باندي ای احفظوا احکام الله و اتقوا الله.

مظهري رحمه الله وايي چي پر دغه تفسير دا آيت د شان نزول سره هم برابرېږي او آيت هم محکم بې نسخه پاتېږي، ولي قسم د وصي په نېز د انکار له خيانت څخه او يمين او وارث په نېز د انکار دده له دعوې څخه د وصي چي ما دا شی له ميت څخه رانيولی دی د اوس هم ثابت دی او هغه خبره هم صحيح کېږي چي مفسرين وايي چي د سورة مائدې هيڅ حکم منسوخ نه دی.

**سوال:** په فقهي شريفي کي وايي چي لايجوز شهادة الکافر على مسلم في شئ من الاحکام" او دمخه تېره سوه په تفسير کي ددې قول د خدای ﷻ "منکم" ای من اهل دينکم وملتکم اومن غيرکم ای من غير ملتکم، او دا تفسير منقول دی له ابن عباس رضي الله عنه، او ابو موسیٰ اشعري، سعيد بن المسيب، مجاهد او له عبيده رضي الله عنه څخه نو پر دې تقدير خو شهادت د کافر پر مسلمان يعني عند الوصية وجود پيدا کړي، ددې سوال په ځواب کي امام نخعي رحمه الله او نور هم وايي چي په ابتدا کي د اسلام شاهدي د اهل ذمه پر مسلمان باند مقبوله وه ثم نسخت.

**درويش وايي:** چي پر دې جواب مخالفت له قوم څخه چي وايي په سورة مائده کي هيڅ حکم منسوخ نسته لازمېږي، او شريح رحمه الله داسي ځواب ورکړی دی من کان بارض غربة لم يجد مسلماً يشهد على وصية فاشهد کافرين فشهادتها جائزة ولايجوز شهادة کافر على مسلم الا على وصية.

**درويش وايي:** چي پر دې ځواب هغه قانون چي لايجوز شهادة الکافر على مسلم في شئ من الاحکام عام مخصوص منه البعض دی، يعني الشهادة على الوصية، نو پر دې ځواب نه نسخ د هيڅ حکم د سورة المائدة لازمېږي او شاهدي پر وصيت باند د کافر ثابته پاتېږي فهذا الجواب هو الاسلم، او ددې ځواب تائيد کوي دا قول د شعبي رحمه الله چي يو سړی و له مسلمانانو څخه چي ده ته د وفات وخت ورسېدی په وطن د قوقا کي، نو دې سړي مسلمان نه کړی پيدا چي پر خپل وصيت يې شاهد

کړي، نو بیې دوه کسه د اهل کتابو شاهدان د خپل وصیت وګرځوله. نو هغو دوو اهل کتابو ترکه د میت وکوفې ته راوړه او امام اشعري رضي الله عنه ته ورغله او دا موضوع یې ورته بیان کړه، نو امام اشعري رضي الله عنه ورته وویل چې دا یو داسې موضوع ده چې وروسته تر علیه الصلوٰة والسلام یعني د بدیل په موضوع کې نه ده پېښه سوې، نو امام اشعري رضي الله عنه و هغو دوو اهل کتابو ته قسم ورکړی او ددوی شاهدي یې ومنله، ولې چې ورثه د میت اعتراض د خیانت نه پر وکړی او که چېرې دوی اعتراض د خیانت کړی وای نو قسم به بیا ورثه ته عائد کېدای کما في مسئلة بدیل رضي الله عنه.

**فائده**: په شرعه شریفه کې شاهدي اخبار کول دي د هغه شي چې شاهدان پکښې حاضر وي یا معاینةً لکه افعال نحو القتل والزنٰی وغیرهما او یا سماعاً لکه بیع وشرا والاجارة وغیرها من العقود والاقرارات بالدیون والامانات وغیرها، نو شاهدانو ته هلته شاهدي روا ده چې دي پکښې حاضر وي او علم یې پر راسي او وایه وري او هغه وخت شاهدانو ته روا ده چې هغه حادثه او واقعه هم ورپیاد سي. له دې سببه په صحیح حدیث کې راغلي دي "اذا علمت مثل الشمس فاشهد والا فدع" که تاته واقعه معلومه وه لکه لمر یعني یقین کامل دي سو نو شاهدي ادا کړه او که داغسې نه وه درمعلومه، نو بیې پرېږده یعني که څه شک او شبه په مشهود علیه په زړه کې در ګرځېدله بیا شاهدي پرېږده مه یې ادا کوه.

**حکمت**: په شاهدي کې حکمت دادی چې حقوق د خلګو خوندي سي مثلاً د یو چا پر بل چا پور باندې و هغه ورته منکر و په شاهدانو دا حق ژوندی کېږي، او بل حکمت دادی چې عقود په منځ کې د خلګو له انکار څخه خلاصېږي لکه عقد، بیع، شرا او عقد نکاح وغیر ذالک. ولهذا ورد في الحدیث النبوي ﷺ "اکرموا شهودکم فان الله یستخرج بهم الحقوق"

**مسئله**: که پر چا ادا د شاهدي متعینه وه ده ته نه ده روا چې له کولو څخه یې منع وکړي لان في منعه تضیع الحقوق.

**مسئله**: که په خط کې نور شاهدان هم وه بیې له ده چې په هغو سره هم حق ثابتېدی، نو د امتناع له شاهدي څخه روا ده لان الحق لایضیع بامتناعه.

**مسئله**: په حدودو کې لکه زنٰی، قتل وغیرهما شاهد مخیر دی که شاهدي ادا

کوي او کـه ستر او پـرده پـر اچـوي، ولـي چي اقامـت د حد بـنـه کـار دی او ستر د مسلمان هم ښه کار دی ومع ذالک الستر افضل، وفي الحديث الصحيح من يستر على مسلم ستر الله عليه في الدنيا والآخرة.

**يَوْمَ يَجْمَعُ اللَّهُ الرُّسُلَ فَيَقُولُ مَاذَا أُجِبْتُمْ**

هغه ورځ چي خدای ﷻ جمع کړي ټوله رسولان يعني په ورځ د قيامت، نو خدای ﷻ ووايي و رسولانو ته چي تاسي ته څه ځواب درکړ له طرفه د امتيانو ستاسي.

**يوه سه:** چي "يوم" يا منصوب دی په "اذکر" مقدر سره يا منصوب دی په "لايهدي" سره او يا منصوب دی په "اسمعوا" سره يعني د "اسمعوا" مفعول به دی حذف د مضاف يعني "اسمعوا" خبره "يوم" يا منصوب دی په "احذروا" مقدر سره.

**يوه سه:** چي "ماذا" منصوب محلاً په "اجبتم" سره يعني مفعول مطلق يې دی.

**يوه سه:** چي دا سوال لپاره د توبيخ د قومو د رسولانو دی کما يسئل الموؤدة باي ذنب قتلت لپاره د توبيخ د قاتل د دوی دی.

**قَالُوا لَا عِلْمَ لَنَا إِنَّكَ أَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوبِ ﴿١٠٩﴾**

رسولان ووايي موږ لره هيڅ علم نسته چي موږ ته څه ځواب راکړه سو، په تحقيق ته اې خدايه بليغ علم درلودونکی په غيبو شيانو سره.

**پوښتنه:** رسولان په دې خبر وه چي امت کافره زموږ تکذيب وکړی، نو څرنګه په کلمه د لا نفي جنس دوی نفي علم له ځان څخه کوي، او بل سوال دادی چي رسولان خو پر امتو شاهدي ادا کوي د تکذيب د دوی، نو دا نفي او هغه شاهدي د دوی به څرنګه سره جمع سي؟

**ځواب:** ابن عباس رضي الله عنه او حسن بصري او مجاهد وايي چي ورځي لره قيا اهوال او زلازل سته چي د هغو په سبب زړونه له ځايه څخه بې ځايه ګرځي او عقول په فزع اکبر کي واقع کېږي چي له ځواب څخه د بېخي غافل ګرځي، نو ځکه دوی ځواب له لا علم لنا سره ورکړی، وروسته چي بيا زړونه د دوی ځای ته راسي او نهايت هول د قيامت پورته سي بيا شاهدي پر اممو ادا کوي فارتفع التعارض وصح الجواب بلا علم لنا.

**پوه سه**: چي مراد له غیب څخه غیب عن الخلق لا عن الله لانه لاغیب عن الله تعالی نو دوی ګویا داسي ورته وویل چي ته خدای ﷻ علام الغیوب یې او موږ علم نه لرو مګر پر ما نشاهد باندي، امام بخاري رحمه الله له انس رضي الله عنه څخه روایت کړی چي نبي ﷺ وویل چي بعض اصحاب زما حوض کوثر ته زما راوستل سي چي زه یې هم وپېژنم بېرته یې د دوږخ پر خوا روان کړی زه ملکو ته ناري کړم اصحابي اصحابي فیقول لاتدري ما احدثوا بعدک.

**درویش وایي**: چي شاید دا به هغه کسان وي چي وروسته تر وفات د علیه الصلوٰة والسلام مرتد سوي وه.

**پوښتنه**: څرنګه صحیح دی ذهول د عقولو د انبیاٴ علیهم السلام او خدای ﷻ په شان کي ددوی وایي "لایحزنهم الفزع الاکبر" بعض مفسران په ځواب کي ددې پوښتني وایي چي فزع اکبر خو دخول د جهنم دی دا خو د ټولو انبیاٴ علیهم السلام څخه منفي دی. قال السعدي الشیرازي قدس سره في هذا الباب.

دران روز کزفعل پرسند وقول — اولو العزم راتن بلرزد زهول
بجای که دهشت خورد انبیاٴ — تو عذر گناه را چی داری بیا
برادرز کار بدان شرم دار — که در روی نیکان شوی شرمسار
سر از جیب غفلت بر آور کنون — که فردا نماند بخجلت نګون

او له ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی چي دا ځواب د انبیاٴ علیهم السلام لاعلم لنا الآیة په بعض احوالو کي د قیامت دی، او هغه وخت دی چي د جهنم د بري وي او ټول له امتونه زنګون کیش ناست وي او هیڅ ملکه مقربه اونه بني مرسل وي مګر دا وایي نفسي نفسي. نو به دغه وخت زړونه د انبیاٴ علیهم السلام او عقول ددوی له ځایه بې ځایه سي، نو په دې حال کي رسولان وایي لا علم لنا الآیة. اللهم اجرنا من عذاب الدنیا وهول یوم القیامة یعني الهول الممتد المفضي الی دخول جهنم بحرمة سیدنا وسید الرسل محمد ن المصطفی ﷺ.

## اِذْ قَالَ اللّٰهُ يٰعِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ

**پوه سه**: چي تفسیر روح البیان کلمه د اذ منصوب بولي په فعل مقدر سره، او

ترجمه يې داسې کړې ده اذکروا ایها المؤمنون وقت قول الله تعالی لعيسى بن مريم وهو يوم القيامة. او مظهري رحمه الله تقديرات ورسره کړي او ويلي يې دي چې دا از بدل دی د "من يوم يجمع الله الرسل آه" ددې ابدال په مناسبت کې يې ډېر مقدر عبارات ويلي دي چې عقل سليم ابا ځني کوي په اخير کې مظهري هغه تقدير مشهور اولاً او اخير آداسې راوړی دی او منصوب باضمار اذكر.

اذْكُرْ نِعْمَتِي عَلَيْكَ وَعَلَىٰ وَالِدَتِكَ

ته په ياد کړه نعمت زما پر تا باندې او ستا پر مور باندې. والمقصود له اذكر څخه شكر د نعمت دی.

**پوه سه:** چې لفظ نعمت که څه هم مفرد دی لکن مراد ځني جنس دی. نو ټولو نعمتو ته شامل دی.

**فائده:** د عيسىٰ عليه السلام د مور چې مريمه ده نعمت د خدای جل جلاله پر دې باندې دادی چې دا يې پاکه ساتلې وه د ما اتهم اليهود عليها او دا يې لوړه کړې ده پر نسا العالمين باندې كما ورد في الموضع الآخر من القرآن العزيز.

**پوه سه:** چې درويش چې تفسير د ذکر د نعمت په شکر سره په متابعت د حسن بصري رحمه الله او صحيح خبره داده چې مقصود تکليف د عيسىٰ عليه السلام په شکر سره نه دی. ولې چې دا خبره عيسىٰ عليه السلام ته په ورځ د قيامت کول کېږي او په قيامت کې وخت د شکر د تکليف تېر سوی په دنيا کې بلکې مقصود وادي چې دا خبره حجت سي پر کفربه. ولې چې خدای پاک وده ته معجزات باهرات ورکړي وي کاحيا الموتٰى وابرا الاکمه والابرص وغير ذالک. او سره د يهودانو دی ساحر باله. او بعض نصارٰی وو دده په حق تر حد تجاوز وکړی چا ابن الله باله. او بعضو دی خدای باله. او بلې ډلې د نصارٰی وو ثالث ثلثه باله. نو په يادول د خدای جل جلاله وعيسى ته به حسرت او ندامت سي پر دواړو ډلو د يهودانو او د مذکوره ډلو د نصارٰی وو.

**پوه سه:** چې دا قول د خدای جل جلاله خو اجمال د نعمتو د خدای جل جلاله پر عيسى عليه السلام باندې ؤ ثم ذکر الله وروسته تفصيلاً خدای جل جلاله يو يو نعمت د خدای پر عيسى ذکر کړی وقالوا التفصيل بعد الاجمال اوقع في الذين. نو د تفصيل لپاره خدای پاک وايي:

**إِذْ أَيَّدتُّكَ بِرُوحِ الْقُدُسِ تُكَلِّمُ النَّاسَ فِي الْمَهْدِ وَكَهْلًا**

ای قویتک دا ظرف دی د نعمتي.

**پوه سه**: چي اکثره مفسرين وايي چي له "روح القدس" څخه جبرائيل عليه السلام مراد دی.

**سوال**: جبرائيل عليه السلام خو ټولو انبیاً علیهم السلام ته وحي راوړي، نو د عیسٰی تخصیص په جبرائیل سره په څه و؟

**ځواب**: وجه د تخصیص يې داده چي جبرائيل د عیسٰی سره ملګري و من وقت الصبی الی ان رفع الی السماً فائدۃ اضافت د روح القدس ته اضافت دی د موصوف وصفت ته ای الروح المقدسة، او بعض مفسرین وایي چي مراد روح د عیسی عليه السلام دی او د تقدس معنی په قوت پر مقابله د يهودانو سره په ظهور د معجزاتو باهراتو سره.

**پوه سه**: چي دا جمله "تکلم الناس آو" یا حال ده د "ایدتک" او یا جمله مستانفه ده مهد په لغت عربي کي زانګو ته وايي او مراد ځني حال د طفوليت دی في الغاية، والمعنی چي تا خبري کولې د خلګو سره په حال کي د غايت کوچني والي چي حالت د مهد دی.

**سوال**: خبري په حال کي د مهد که څه هم معجزه وه لکن خبري د حال د کهولت خو هر څوک کوي، نو د کهلاً و راوړلو ته څه ضرورت و؟

**ځواب**: په کهلاً کي اشاره ودې ته ده چي خبري د عیسٰی عليه السلام في حال المهد والکهولة سره برابري وي في انه يتکلم بالحکمة والعقل الکامل في الوقتين المذکورين على السواً، ولي چي عیسٰی عليه السلام هغه وخت چي په زانګو کي و، او خلګو ده مور مريمه ملامتوله چي تا خو مېړه نه درلودی، نو دي څرنګه زوی پيدا سو، يعني تو تا زنٰی کړې ده، نو عیسٰی عليه السلام له مور څخه د زنٰی د تهمت د دفع لپاره داسي وويل "اني عبد الله آتاني الکتاب وجعلني نبياً وجعلني مبارکاً اینما کنت و اوصاني بالصلوٰة والزکوٰة مادمت حياً".

**درويش وايي**: چي دا تکلم د عیسٰی عليه السلام وقت المهد ووقت الکهولة على نهج واحد من غير تفاوت معجزة عظيمة له، او هيڅ نبي ته دا معجزه نه ده په برخه سوې نه دمخه او نه وروسته او هر معجزه لکه د عیسٰی عليه السلام لپاره چي نعمت دی د مور

لپاره يې هم نعمت دی، ولې په دې نعمتو سره ددې پاکوالی له زنی څخه لکه يهودانو چې ددې په باره کې اظهر من الشمس ښکاره کېږي، ولې چې ولد الزنی دومره لوی رتبې ته نه سي رسېدلای لکه عیسی ﷺ چې ددې زوی و ورسېدی
**پوه سه:** چې کهل هغه سړي ته وايي چې دېرش کاله يې تېر سوي وي، او په سر کې يې بعض وېښتان سپين سوي وي، روي ان عیسی ﷺ بعث نبياً وهو ابن ثلثين سنة" نو ده دېرش میاشتي نبوت په مځکه کې وکړی بيا اسمانو ته پورته کړه سو، او هم پر دغه سن به بېرته دنيا ته راځي او کهل به وروسته ګرځي كذا في كتب التفاسير، روح البيان، مظهري، روح المعاني، تفسير ماتريدي، تفسير بغوي والله اعلم بالصواب.

وَإِذْ عَلَّمْتُكَ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَالتَّوْرٰىةَ وَالْإِنْجِيلَ ۚ

عطف دی پر ايد تک او دا نعمت په ياد کړه چې ماتاته وښول جنس كتب الهية المنزلة فاللام للجنس، او مراد له حکمت څخه علم او فهم دی د معاني د کتب متقدمه وو او اسرار د هغو کتابو او تورات مي هم در وښو چې کتاب د موسیٰ و او انجيل هم چې ستا خپل کتاب دی.
**سوال:** په جنس کتابو کې خو تورات او انجيل هم داخل وه نو د بيا راوړلو يې څه وجه ده؟
**ځواب:** بيرته راګرځېدل يې لپاره د شرف ددې دوو کتابو دی.

وَإِذْ تَخْلُقُ مِنَ الطِّينِ كَهَيْئَةِ الطَّيْرِ بِإِذْنِي فَتَنْفُخُ فِيهَا فَتَكُونُ طَيْرًا بِإِذْنِي وَتُبْرِئُ الْأَكْمَهَ وَالْأَبْرَصَ بِإِذْنِي ۖ

**پوه سه:** چې دا ذکر د بل نعمت دی پر عیسیٰ ﷺ او عطف دی پر ماقبل "اذ" او دا يوه بله معجزه ده د عیسیٰ ﷺ.
**فائده:** د خلق معنی دلته تصوير دی معنی دا چې تا به له ختو څخه یو صورت جوړ کړی په مثل د هيئت د مرغه يعني خلق په معنا د اعطا الروح نه ده ولې هغه خو خاص په خدای ﷻ پوري ده، ومعنی الآية په ياد کړه هغه وخت چې تا به له ختو څخه تصوير د هيئت مرغه وکړی زما په اجازه او په اسانه کولو سره، نو تا به پوه

کړه په هغه صورت کي، نو هغه هیئت د مرغه به ژوندی مرغه وګرځېدی زما په اجازه یعني په خلق الروح فیها فخلق الله ظهر ظاهراً علی ید عیسیٰ فلهذا نسب الخلق الی عیسیٰ علیه السلام.

**درویش وایي:** چي یهودانو له عیسیٰ علیه السلام تعنتاً وغوښتل چي ته موږ ته له ختو څخه شوپرک جوړ کړه او بیا پر پوه کړه چي ژوندی سي او په هوا سي، نو عیسیٰ دغسي وکړه یعني ختي یې راواخستلې او د شوپرک هیئت یې څني جوړ کړی او پر پوه یې کړه او هغه ژوندی سو په حکم د خدای جل جلاله او په هوا سو.

**درویش وایي:** چي تر هغو چي دوی ورته کتل په هوا و چي ددوی له سترګو څخه غائب سو راولوېدی پر مځکه.

**فائده:** دوی ولي تخصیص د شوپرک ورته وکړی ددې سببه چي شوپرک له اعجب العجائب څخه د خلق الله دی.

(۱) شوپرک خالص غوښي او وینه ده بڼکې نه لري او الوځي.

(۲) ژېړول یې لکه د نورو حیواناتو یعني هګی نه لري لکه د نورو مرغانو چي له هګی څخه چیچی راوځي.

(۳) شوپرک غولانځه لري چي له هغې څخه شیدې راوځي او دده اولاد یې روي لکه د ښځو د تیو څخه چي شیدې راوځي.

(۴) له ورځي په سترګو نه ویني او د شپې صرف دوه ساعته دی په سترګو ویني، د لمر لوېدو وروسته یو ساعت، او چي سپېدې راوچوي یو ساعت قبل ان یسفر جداً.

(۵) شوپرک دغسي خاندي لکه انسان.

(۶) شوپرک حیض او نفاس لري لکه د ښځو.

**درویش وایي:** چي دا کار چي یې وکړی او یهودانو هم ولیدی سره وه یې خندل وقالوا هذا سحر مبین، لعنة الله علیهم اجمعین آمین، او ته جوړولای سې مور زاده روند یعني ستا په دعا سره مور زاده روند بینا کېږي، او ته جوړولای سې پیس یعني ستا په دعا سره جوړېږي،

**پوه سه:** چي انتهائي درجه د پیس داده چي پوستکی یې سپین سي چي په ستني یې ووهي وینه نه راباسي،

**سوال:** د دغو مرضو تخصیص یې ولې وکړی؟

**ځواب:** دا دوه مرضه یعني علاج الاکمه والابرص له دائرې څخه د طبي علاج له قدیمي زمانې څخه تر اوسه بیا تر قیامته پورې په ټوله نړۍ کې د علاج قابل نه و او نه دی لکه پر دې باندې چې د ټولو یوناني طبیبانو او د ډاکټرانو اتفاق دی.

وَإِذْ تُخْرِجُ الْمَوْتَىٰ بِإِذْنِي

یعني له قبرو څخه به دې راژوندي کول مړي په اذن او اراده زما. په یو روایت سره په غوښتنه د بني اسرائیلو یې سام بن نوح علیه السلام ژوندی کړی او دوه نور کسان او یوه ښځه چې تفصیل یې په سورت آل عمران کې مذکور دی.

**درویش وایي:** چې دلته یوه مهمه فائده سته چې لږ مفسرانو په تفصیل سره بیان کړې ده چې فائده داده، چې رب العزت جل جلاله عادت په جاري چې چې هر صنعت چې په زمانه کې د هر نبي چې خدای په رسالت ډېر پر مخ تللی صنعت وي د هغې زمانې نبي ته د هغه صنعت مشابه معجزه ورکوي تاچې په هغه صنعت کې چې د زمانې خلګ ډېر مهارت پکښې لري عاجزه وګرځوي تاچې دوی په دې پوه کړي چې دا نبي رښتیا نبي دی، ولې چې موږ یې په خپل ماهرانه صنعت کې عاجزه کړو. مثلاً په وخت کې د موسی علیه السلام د فرعون په اتباعو سحر او جادو او شی له خپل حال او ماهیت څخه و بل حال او ماهیت ته اړول په رؤیت کې د خلګو ډېر پر مخ تللی رواج یې درلودی حتی چې فرعون د موسی علیه السلام د مقابلې لپاره اوویا زره کارکونکې د سحر او جادو سره جمع کړه، نو موسی علیه السلام ته یې ددوی د مروج صنعت سره مشابه معجزه ورکړه چې لکړه به یې وغورځول کوچنی مار به و وروسته به لوی مار ځنې جوړ سو. او بله معجزه یې داورکړه چې لاس به یې له لستوڼي څخه را ویستی داسې شعاعې به یې کولې لکه د لمر او چې بېرته به یې په لستوڼي کې داخل کړی پر خپل عادي حال به وګرځېدی الی غیر ذالک. او د عیسی علیه السلام په زمانه کې طبابت او ډاکټري ډېره پر مخ تللی صنعت و په اهل زمانې کې لکه جالینوس د هغې زمانې پر مخ تللی طبیب و، نو عیسی علیه السلام ته خدای پاک د طبابت مشابه معجزه ورکړه چې ټول طبیبان د هغې زمانې یې عاجزه کړه لکه دمځه چې تېره سوه من ابرأ الاکمه والابرص واحیا الموتی چې دا کار د ټولو

ماهرينو د طبابت له توان او طاقت څخه وتلې کار و، او هيڅ چا يې مقابله نه سواى کولای، او د سيدنا ونبينا وحبيب ربنا ﷺ په زمانه کي د فصاحت او بلاغت او ژبياري توب ډېره لويه چرچه وه حتی شاعر او بليغ چي به يو د قصيده جوړه کړه، نو د نورو شاعرانو د ازموينې لپاره به يې د کعبې شريفې پر دروازه وځړول، او نورو شاعرانو به يې مقابله کوله حتی اوله قصيده چي د کعبې شريفې پر دېوال يې وځړول د امرؤ القيس الکندي قصيده وه چي د قصيدې اول بيت يې دادی

قفانبک من ذکرى حبيب ومنزل بسقط اللوى بين الدخول فحومل

الى اخير القصيدة. وروسته بيا بل شاعر قصيده جوړه کړه، د امرؤ القيس قصيده ته ورته قصيده په فصاحت او بلاغت کي ثم وثم چي اووه قصيدو ته ورسېدې چي اووه سره قصيدې په شکل د کتاب چي معلقات سبعه يې نوم دی په مدارس عربيه وو کي د عربي قديم د زدکړې لپاره مروج دی.

**درويش وايي:** چي دغه کتاب که څه هم انفع دی تر تفاريق العصی لکن له بده مرغه د هر عالم او مدرس لاسونه ددغه کتاب غاړې ته رسېږي. گفته شده انجير خوردن نه کار هر مرغيست، نو بناً على هذا رسول کريم ﷺ ته قرآن عظيم الشان معجزه باقيه کړ الازمان ومر الدهور ورکړه چي په کتاب عزيز کي دا اعلان خدای پاک وکړی "وان کنتم في ريب مما نزلنا على عبدنا فاتوا بسورة من مثله" يعني کا تاسي اې کفارو د مکې په شک او انکار کي ياست له هغه کتاب څخه چي ما نازل کړی دی پر خپل محمد رسول الله ﷺ باندي په دې معنا چي دی به دا کتاب له ځانه جوړوي او منزل من عند الله به نوي لکه قريشو د مکې به دغه ويله، نو تاسي چي هم بلغاً ياست او په عربي ښه پوهېږئ مثل د يو کوچني سورت جوړ کړئ او مقابله د قرآن په وکړئ چنانچه سورت قرآني پر دېوال ځوړند سو او بلغاً د عدنان او فصحاً د قحطان ورته راجمع سو ولکن مثل د هغه قصير سورت يې جوړ نه کړی حتی چي له خپلو ځانو څخه يې د عجز تورو الی په دې الفاظو دفع کاوه "انهم سحروا تسحيراً" يعني محمد ﷺ په موږ سحر وکړی او موږ يې له ايتان د مثل د سورت عاجزه وګرځولو.

**درويش وايي:** چي ولله الحمد والمنه دا معجزه قرآني او دا اعلان قرآني اوس هم

باقي دی او باقي به وي الی یوم القیامة.

**پوښتنه**: کفارو او بلیغانو د قریشو به یو شی ویلی وای چي دا مثل د سورت مذکوره دی د ضد له لاري، ولي دوی داسي ونه کړه؟

**ځواب**: دوی پر نام بدی، بېرېدله ولي چي نباید یو بل بلیغ به ووايي چي ته دا لیکلی کلام وګوره او سورت قرآني وګوره فبینما بعد المشرق والمغرب.

**سوال**: چابه مثل د قرآن جوړ کړی وي لکن په مرور د زماني به مخفي پاته سوی وي؟

**ځواب**: په قرآن مجید کي حامیان په اوله دوره کي د اسلام محدود کسان وه هغه مخفي نه سوه پاته، او که مثل د قرآن کریم چا جوړ کړی وای او سره ددې چي حامیان په لکو یهودان او مشرکان د نړی وه او په کوروړو نصارٰی د دنیا وه، نو هغه به ولي مخفي پاتېدی او سره ددې چي نشریات عامه د یهودو او د نصاری و اوس بر سرکار او اقتدار دي، نو که مثل د قرآن د چا سره وای په مکرره تبلیغاتو د نشریات عامه به یې چهاپ ته سپارلي وای، او په راډیوګانو او تلویزونانو به یې بیانولې، لکن بحمد الله داسي نه وسوه وهذا دلیل علی صحة کون القرآن الکریم من جانب الله العزیز الحکیم لا من کلام البشر الکریم ﷺ.

**درویش وايي**: چي چونکه قرآن عزیز معجزه باقیه وه نو ما دومره طویله تشریح وکړه ورنه معجزې د آنحضرت ﷺ وسلګونو بلکې وزرګونو ته بالغه دي کما هي مشروح في کتب الاحادیث الشریفه وکتب السیر والمغازي النبویة.

**درویش وايي**: چي من کان عنده عقل سلیم من الشهوات والعناد فلیدخلوا في دین الله افواجاً.

وَإِذْ كَفَفْتُ بَنِيٓ إِسْرَٰٓءِيلَ عَنكَ

**یوه سه**: چي دا جمله عطف ده پر "اذ علمتک" باندي او په یاد کړه یا عیسٰی مَنع او دفعه کړه بني اسرائیل له تا څخه چي دوی ستا د قتل اراده کړې وه.

إِذْ جِئْتَهُم بِٱلْبَيِّنَٰتِ فَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ مِنْهُمْ إِنْ هَٰذَآ إِلَّا سِحْرٌ مُّبِينٌ ﴿١١٠﴾

چي تا راتګ وکړی ودوی ته په معجزاتو ظاهراتو سره لکه چي عنقریب تېرې سوې، نو وویل هغو کسانو چي کافران وه د بني اسرائیلو چي نه دی دغه چي عیسٰی راتګ په

کړې دی مګر سحر دی ښکاره، ردوا معجزاته په دلیل د ماسولت لهم انفسهم من الکفر فبقوا علی مرض الکفر ولم یعالجوا هذا المرض من عیسیٰ الحکیم الٰهي.

**حکایت:** شبلي نعماني رحمه الله ناجوړی و، نو قریبانو وه ملکي شفاخانې ته یوړی، نو دده د علاج په باره کې علي بن عیسیٰ چې وزیر و وه خلیفة المسلمین ته خط نوشته کړی چې شبلي ناجوړه دی یو ښه طبیب ورته راواستوه، نو خلیفه هم د طبیبانو مشر ورته راواستوه، چې په دین نصاری و، نو شبلي ته دده دوا فائده نه کوله. نو هغه نصراني طبیب شبلي رحمه الله ته وویل چې که زه ویوهېږم چې ستا دوا په یوه ټوټه غوښو زما د بدن کېږي ما به دریغ کړې وای. شبلي رحمه الله ورته وویل چې زما تداوي له لږ شي ستا د بدن له غوښو څخه کېږي، زنار له غاړې وکاږه او کلمه ووایه. طبیب بې له درنګه وویل "اشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمداً رسول الله" دا خبر تر باچا پورې ورسېدی، بادشاه وژړل چې ما خو طبیب و مریض ته استولی و، زه نه وم خبر چې ما مریض یعني نصراني طبیب و طبیب ته استولی دی یعني شبلي رحمه الله ته. وفي هذا قال الامام الیافعي رحمه الله

اذا ما طبیب القلب اصبح جسمه علیلاً فمن ذا للطبیب طبیب
فقل هم اولوا علم لدنی وحکمة آلهیة یشفی بذالک قلوب

## وَإِذْ أَوْحَيْتُ إِلَى الْحَوَارِيِّينَ

عطف دی علی "واذ کففت" او عامل د "اذ" محذوف دی ای اذکر یا محمد الی الناس.

**یوه سه:** چې حوارین جمع د حواري ده چې معنا یې مخلص او برګزیده ده. مشتق من الحور وهو البیاض الخالص اصحاب د عیسی چې په دې نامه مسمیٰ سوه لخلوص نیاتهم ونقاً سرائرهم دغه حواریون بعض د بادشاهانو زامن وه او بعض ښکار کوونکي د ماهیانو وه او بعض یې دوبیان وه. او بعض یې رنګرېزان وه.

**درویش وایي:** چې بعض مفسرین چې وایي حواري مشتق دی له حور څخه چې سپین والي ته وایي دا حوارین تولـه دوبیان وه چې د خلګو کالي به یې پرېوله او سپین به یې کړه فقط غلط غلطاً عظیماً کما لا یخفی او مراد له وحي څخه یا الهام دی په زړو کې ددوی او یا پر ژبه د عیسیٰ علیه السلام ورته وویل سوه.

## أَنْ اٰمِنُوْا بِيْ وَ بِرَسُوْلِيْ ج

چي تاسي ايمان راوړئ پر ما يعني ما په وحدانيت سره ومنئ او ايمان راوړئ زما پر رسول چي عيسىٰ عليه السلام دی.

**سوال:** په شمة النحو کي وايي.

آن را در پنج جا مفتوح خوان	بعد قول وبعد علم وبعد ظن درميان
چون در آيد درخبر او لام نيز	دائماً مفتوح خواني اى عزيز

دلته خو آن وروسته تر وحي واقع دی، نو ولي مفتوح دی؟

**ځواب:** روح البيان وايي ان مفسرة لما في الايحاد من معنى القول ويحتمل ان يكون مصدرية قاله المظهري لکن پر دې دا سوال وارديږي د وحي مفعول بايد جمله وي فافهم.

## قَالُوْٓا اٰمَنَّا وَاشْهَدْ بِاَنَّنَا مُسْلِمُوْنَ ﴿١١١﴾

حواريونو وويل چي موږ ايمان راوړی پر خدی او پر رسول د خدای چي عيسىٰ دی. او ته اې عيسىٰ په دې سره چي موږ مخلصان په ايمان کي يو فلا يرد چي ايمان او اسلام خو يو دی، نو وروسته تر ايمان ذکر ته د اسلام څه ضرورت و، وحاصل الدفع ان الايمان ههنا بمعنى الاخلاص.

## اِذْ قَالَ الْحَوَارِيُّوْنَ يٰعِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ هَلْ يَسْتَطِيْعُ رَبُّكَ اَنْ يُّنَزِّلَ عَلَيْنَا مَآئِدَةً مِّنَ السَّمَآءِ

**درويش وايي:** چي دا آية معركة الآراء دی د مفسرينو او اهل النقل تر منځ.

**يوه سه:** چي "اذ" منصوب دی په اذکر مقدر سره، او ظاهري معنى ددې آيت خو داده چي په ياد کړه هغه وخت چي وويل حوارينو چي اې عيسىٰ د مريم زويه آيا د خدای جل جلاله ستا دا په طاقت پوره ده، نو دا ظاهره ترجمه خو دا لازمه وي چي حوارينو د خدای جل جلاله په قدرت کي شک و، وهذا مناف لقول الحواريون امنا واشهد بانا مسلمون، نو بعض مفسران وايي چي "ليستطيع" په معنى د اطيع دی لکه استجاب چي په معنا د اجاب دی، نو معنا د آيت داسي ده آيا ستا اطاعت به وکړي يعني ستا په خوله به وکړي که ته سوال ځني وکړې. عامر شعبي رحمه الله وايي چي علي رضي الله عنه ددغه آيت داسي ترجمه کوله هل يطيعک ربک، نو ترجمه يې هغه ده چي

درویش هم دا اوس بیان کړه فلا اشکال في هذا السوال. او په حدیث شریف کي راغلي دي "من اطاع الله اطاعه" که چا اطاعت د خدای وکړی یعني د خدای قول یې عملي کړی خدای به دده اطاعت وکړي یعني دده قول او خواست به قبول کړي، او ددې ترجمې تائید کوي، کسائي قرائت "هل تستطیع" په صیغه د خطاب وعیسی ته نو پر دې قرائت "ربک" منصوب دی مفعول به دی. مګر پر دې قرائت حذف د مضاف لازم دی. نو معنا د آیت داده چي اې عیسی ستا په طاقت پوره ده سوال ربک نو لفظ د سوال محذوف دی یعني چي ته خدای ته خواست وکړې او او خدای ستا د سوال اجابت وکړي، ددې پوښتنې معنا داده چي ته خو اې عیسی مانع او صارف د سوال کولو نه لرې.

**درویش وایي:** چي په مخاطب صیغه ویل قرائت د حضرت علي، عائشه، ابن عباس او مجاهد ﷺ دی، وهي قرائت معاذ بن جبل ﷺ کما رواه الحاکم في المستدرک سیدتنا عائشه ﷺ وایي چي حوارین اعلم بالله وه چي داسي به وایي هل یستطیع یعني په صیغه د غیبت، مقصود د دې دا و چي قرائت د خطاب صحیح دی.

**درویش وایي:** چي مظهري رحمه الله داسي اجمالي اشاره کړې ده په نقل له بعض علماؤ څخه چي دا قول د حواریون یعني یستطیع ربک پر ظاهر بنا دی، دی وایي چي دا خبره ددوی هغه وخت وه چي په دوی کي معرفت د قدرت الهي محکم سوی نه و. او دوی بشر وه حدیث العهد بالجاهلیة وه. نو ځکه دا ددوی قول یعني هل یستطیع ربک نهایت عظیم ویاله، او ددوی له قول څخه چي امنا واشهد بانا مسلمون یې بعید ویاله، او داسي یې ورته وویل اتقوا الله ان کنتم مؤمنین، یعني لاتشکوا في قدرة الله علی کل شئ. او روح البیان ددوی دا سوال داسي څېړلی دی کان ذالک السوال في امرهم قبل ان یستحکم معرفتهم بقدرة الله کما نقله المظهري عن بعض العلماء، لکن روح البیان ددې دلیل ویلی دی چي دوی په دې سوال کي بې ادبي د عیسی علیه السلام سره وکړه حیث لم یقولوا یارسول الله او یا روح الله، بلکې عیسی علیه السلام یې په خالص نامه مخاطب کړی او نسب یې ومور ته دده وکړی، او بل بې ادبي یې د خدای ﷻ سره وکړه او داسي یې وویل "هل یستطیع ربک" دا عبارت خو دداسي چا سره مناسب و چي هغه په کمال قدرت کي د خدای ﷻ شک ویني یعني انه تعالی یقدر علی مایشا کیف یشا.

روح البيان وايي ثم اظهروا دنائة همتهم وخساسة مقصدهم. ولي چي طلب وکړي په مثل د عيسىٰ چي ابرأ الاکمه والابرص واحيا الموتی يې کولای په قدرت د خدای ﷻ دوی فائده دنيويه فانيه ځني وغوښتل. او دوی رغبت نه کړی ښکاره په فائده دينې باقي کي، او که چېري دوی فائده دينيه غوښتې وای، نو فائده دنيويه به هم ورسېدلې وای. قال الله تبارک وتعالى من کان يريد حرث الآخرة يزد له في حرثه يعني في الدنيا ومن يريد حرث الدنيا نؤته منها وماله في الآخرة من خلاق.

**فائده**: مائدة هغه ښترخان ته وايي چي پر هغه طعام موجود وي په شرعه کي هغه شي ته وايي. اينبوول د طعام پر ځمکه باندې د عليه الصلوٰة والسلام خوښ و يعني چي د خوراک کاسه پر ځمکه پرته وای. ورووسته پر سترخان چي هغه پر ځمکه اوار وي خوښ و. او پر مېزو باندې ډوډۍ خوړل فعل د بادشاهانو او متکبرينو دی تاچي په وخت کي د خوراک سر کښته کېدو ته ضرورت نه وي. او د يکره پر سترخوان فعل د عربو دی.

قَالَ اتَّقُوا اللّٰهَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۱۱۲﴾

دا جمله مستانفه بيانيه ده جواب د سوال مقدر دی يعني چي حواريونو هغه خپل غوښتنه پيش کړه، نو عيسىٰ عليه السلام په ځواب کي څه ورته وويل. عيسىٰ عليه السلام دا ورته وويل چي له خدايه ووېرېږئ، يعني داسي غوښتني مه کوئ که تاسي مؤمنان ياست پر کمال قدرت د خدای پاک او پر نبوت زما ولي چي کامل مؤمن بې ځايه غوښتني او معجزات نه غواړي خصوصاً په داسي شک آميزو الفاظو سره لکه چي حواريونو وکړه.

قَالُوْا نُرِيْدُ اَنْ نَّاْكُلَ مِنْهَا وَتَطْمَئِنَّ قُلُوْبُنَا

حواريونو وويل په عذر کي چي زموږ سوال د شک له وجهي نه دی بلکي ددې لپاره چي موږ خوراک ددې مائدې او سترخوان اسماني څخه، چي زموږ زړونه مطمئن او ارام سي.

**پوه سه**: چي ايمان بالغيب ته چي مشاهده ورضم سي دې ته اطمنان قلبي وايي کما في قصة ابراهيم عليه السلام. قال "رب ارني کيف تحيي الموتٰى قال اولم تؤمن قال

بلی ولکن لیطمئن قلبي"

**درویش وايي:** چي ګڼ شمېر محدثينو له سلمان فارسي ﷺ څخه داسي روایت کړی دی چي حوارينو چي له عیسی علیه السلام څخه د مائدة من السما وکړه عيسى علیه السلام جداً دا غوښتنه ددوی مکروه او بده وګڼل او ورته وه يې ويل اقنعوا بما رزق کم الله في الارض، قناعت او صبر وکړی په هغه څه چي خدای ﷻ و تاسي ته په مځکه کي درکړي دي او د مائده غوښتنه پرېږدئ، ولي که دا مائده نازله سوه د خدای ﷻ له خوا به ستاسي اخيري امتحان وي يعني که مو کفران ددغه نعمت وکړی ستاسي د دنيا او اخرت نقصان به وګرځي لکه ثمود چي له صالح علیه السلام د ناقې سوال وکړی، اخير هغه ناقه ددوی د هلاک سبب وګرځېده وقصته مشهورة، نو په ځواب کي د عيسى علیه السلام حوارينو دا خبره وکړه نريد ان ناکل منها".

**وَنَعْلَمَ أَنْ قَدْ صَدَقْتَنَا وَنَكُونَ عَلَيْهَا مِنَ الشّٰهِدِينَ**

او مونږ په دې يقين کامل سره پوه سوو چي تا مونږ ته رشتيا ويلي دي په دعوی کي د نبوت، او بعض مفسرين وايي چي عيسى علیه السلام دوی امر کړه چي دېرش ورځي روژې ونيسئ چي روژې مو پوره کړې هر شی چي له خدايه وغواړئ هغه به درکړي دوی چي روژې پوره کړې، نو بيې د مائدې سوال وکړی، نو پر دې تقدير معنی د آيت داده چي مونږ به پوه سو چي تا د روژو په باره کي مونږ ته رشتيا ويلي دي. او مونږ به شاهدان وګرځو پر مائده د نورو لپاره او پر وحدت د خدای ﷻ او ستا پر نبوت بعد ان آمنا بذالک بالغيب.

**درويش وايي:** چي راويان د تاريخ عيسوي وايي چي چونکه حوارينو عيسى علیه السلام مجبوره کړی پر طلب د مائدې عيسى علیه السلام غسل وکړی او د وړيو کالي يې واغوستل او دوه رکعته صلوة الحاجة يې ادا کړی او سر يې کښته وځراوه پر طريقه د عجز او سترګي يې پټي کړې او وه يې ژړل، ددې موضوع حکايت په قرآن مبارک کي دادی.

**قَالَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ اللّٰهُمَّ رَبَّنَا أَنْزِلْ عَلَيْنَا مَائِدَةً مِنَ السَّمَاءِ تَكُونُ لَنَا عِيدًا**

وويل عيسى بن مريم يا الله ته زمونږ رب يې نازل کړې پر مونږ مائده د اسمان له

خوا ځکه چي دغه مائده يعني ورځ د نزول ددې اختر وي يعني د خوشحالئ ورځ او موږ به ددغې ورځي تعظيم کوو موږ او تر موږ وروسته امتيان زما.

**پوه سه**: چي عيد خوشحالي ده وروسته تر غم. بعض اهل التاريخ وايي چي ورځ د نزول د مائدې د يکشنبې ورځ وه. ولهذا اتخذ النصارى هذا اليوم للعبادة والفراغ من الامور الدنيوية الى يومنا هذا في جميع اراضي النصارى.

لِّأَوَّلِنَا وَءَاخِرِنَا وَءَايَةً مِّنكَ

هم زموږ د اولو مذهب هم زموږ د وروسته نصارى وو لپاره. او دليل واضح او کامل به سي پر کمال قدرت ستا او پر صحت د نبوت زما.

**پوه سه**: چي مراد له "اول" څخه اهل د زماني ددوی دی او له "اخره" مراد هغه نصارى دي چي تر دوی وروسته راځي.

**پوه سه**: چي "اية" بدل دی د "لنا" څخه باعادة الجار او "منک" په حذف د متعلق صفت د "اية" دی ای اية کائنة منک.

**درویش وايي**: چي هره ورځ د خوشحالئ عيد دی لعود السرور فيه. نو د جمعې ورځ د مسلمانانو د پاره عيد ده ولي د خدای عظيم رحمت په شپه او ورځ کي د جمعې پر مسلمانانو نازلېږي ځکه په حديث شريف کي راغلي دي که مسلمان د جمعې په شپه يا ورځ قبر ته وسپارل سي د قبر له عذابه به په امان وي. او دغه ورځ د عرفات د حاجيانو لپاره ورځ د عيد ده. ولي چي ددوی کبيره او صغيره گنهونه په دغه ورځ وربخښل کېږي. او داغه رنګه د يو ګران دوست راتګ د کور والا لپاره عيد بلل کېږي. والى هذا اشار الشاعر البليغ.

عيد وعيد وعيد اجتمعن يوم الجمعة وعرفة ووجه الحبيب

وَارْزُقْنَا وَأَنتَ خَيْرُ الرَّٰزِقِينَ ۝ قَالَ اللَّهُ إِنِّي مُنَزِّلُهَا عَلَيْكُمْ

او موږ ته رزق راکړې او ته خير د رزق ورکونکو يې. ووېل الله تعالى زه مائده نازلوم پر تاسي باندي.

**پوه سه**: چي "اني منزلها" کي اجابت دی د دعا د عيسى عليه السلام والمعنى زه نازلوم مائده له اسمانه څخه.

**پوه سه:** چې بعض له قرأ سبعه څخه دا کلمه په تشدید د زا وایي چې له بابه د تفعیل سي لپاره د تکثیر یعني مرةً بعد اخریٰ. او بعض قرأ یې په تخفیف وایي چې له بابه د افعال سي والمکتوب في المصاحف هو الاول لانه قرائة نافع وهو المروج في المصاحف.

﴿فَمَن يَكْفُرْ بَعْدُ مِنكُمْ فَإِنِّىٓ أُعَذِّبُهُۥ عَذَابًا لَّآ أُعَذِّبُهُۥٓ أَحَدًا مِّنَ ٱلْعَٰلَمِينَ﴾

نو که څوک کفر وکړي او ددې نعمت عظمیٰ شکر پر ځای نه کړي وروسته تر نزول د مائدې له تاسي څخه، زه هغه په عذابوم په داسې عذاب سره چې هغه سي به هیڅ له عالمیانو څخه نه وي په عذاب سوی.

**پوه سه:** چې "لااعذب" صفت دی د عذاباً او ضمیر د اعذبه راجع دی وعذابا ته. والمعنی لااعذب بمثله فتامل، ولې دوی چې کفر وکړی وروسته تر نزول د مائدې تول مسخه سول او سرکوزان وګرځېدل چې دومره سخت عذاب د دنیا په بني آدمو کې چاته نه دی ورکړه سوی. نعوذ بالله من غضب الجبار ومن عذاب النار.

**درویش وایي:** چې ټوله قصه د مائدې په روایت د سلمان فارسي ﷺ داسې وه په کتاب د روح البیان والمظهري مع تفاوت یسیر چې هغه وخت چې عیسیٰ علیه السلام د مائدې د نزول له اسمانه خواست وکړی یو غټ سترخوان وپه رنګ سور په منځ کې د دوو وریځو یوه وریځ یې پر سر سرپېره وه او بله وریځ یې لاندې وه او بني اسرائیلو ټولو ورته کتله کرار کرار راکښته کېدل او په منځ کې د خلګو کېښېنول سو، نو عیسیٰ علیه السلام وژړل او داسې یې وویل چې خدایه ته ما له شاکرینو بندګانو څخه وګرځوې یعني چې د مائدې د معجزې شکر ادا کړم. خدایه ته دا مائده رحمت وګرځوې عقوبت یې مه ګرځوې، یهودانو ورته کتل او داسې دوی تر اوسه نه ولیدلې او داسې خوشبویي د مائدې دوی نه وه بوی کړې. نو عیسیٰ علیه السلام وویل چې ور ولاړ دې سي احسنکم عملاً نو سترخوان دې خلاص کړي شمعون الصغار چې د حوارینو مشر و عیسیٰ علیه السلام ته یې وویل چې ته حقداره یې په دې سره چې سترخوان خلاص کړې، نو عیسیٰ علیه السلام ولاړ سو غسل یې وکړی یا یې اودس تازه کړی او دوه رکعته اوږد لمونځ یې وکړی او ډېر یې وژړل، نو یې

سترخوان خلاص کړی او داسي یې وویل بسم الله خیر الرازقین پر سترخوان پوخ
ماهی (کب) پروت وچي نه یې پر بدن وزر وه او نه یې په غوښو کې هډوکي وه او
په غوړو بریان پوخ وچي غوړي څنې څڅېدل وسر ته د ماهي مالګه پرته وه او د
لکي وخواته یې سرکه وه او پر شاوخوا د ماهي تهول خوراکي بقول پراته وه ماسوی
د ګندنې او پیازو څخه، او پینځه دانې فطرې هم پرتې وې چي پر یوې فطرې د
زیتون غوړي پراته وه او پر بله تیکله عسل پراته وه او پر بله تیکله د لم غوړي یا د
غوا غوړي پراته وه او پر څلورمه فطره پنیر پروت و. او پر پینځمه فطره د لاندي
غوښې پرتې وې. نو شمعون و عیسیٰ علیه السلام ته وویل چي دا طعام د دنیا له طعام
څخه دی که د اخیرت؟ عیسیٰ علیه السلام ورته وویل چي دا نه د دنیا طعام دی او نه د
اخیرت بلکې دا د خدای جل جلاله د عظیم قدرت نوی مصنوع دی. نو خوریاست ای
حوارینو هغه شی چي تاسي غوښتی یمددکم ویزدکم من فضله. نو حوارینو ورته
وویل یا روح الله اول ته شروع په خوراک وکړه عیسیٰ علیه السلام ورته وویل معاذالله ان
اکل منها بلکې هغه کسان دې وخوري چي دا مائده یې غوښتله. نو حوراپین
وبېرېدله او دوی وویل چي موږ یې هم نه خورو. نو عیسیٰ علیه السلام مسکینان،
مریضان او د پیس د مرض مریضان او د آتشک د مرض مریضان او شلان او یا په
یوه بله ناجوړی مبتلا خلګ یې سره راټول کړه او ورته وه یې وویل کلوا من رزق الله
ستاسي دي داروسي او د نورو لپاره دي بلا. نو یو زر او دروسوو (۱۳۰۰) خلګو تر
مړتیا خوراک څنې وکړی چي فقرا، نر او ښځې او شلان او نورو ناجوړان وه او
ماهی پر هغه خپل اول حالت دی. وروسته مائده پورته سول د آسمان پر خوا او
خلګو ورته کتل حتی غابت من اعینهم، نو له دې مائدې څخه چي په شل خوراک
کړی و هغه به پر پښو ولاړ سو او که په هر مرض مبتلا سړي به خورک کړی و هغه
به روغ رمټ سوله او که به فقیر خوراک څنې کړی و هغه به غني سو، نو هغه چا
چي خوراک نه څني وکړی هغه پښېمانه سوه چي کاشکي موږ هم خورک څني کړی
وای، نو دا مائده به څلوېښت ورځې د څاښت په وخت کي راتله، نو چي بله ورځ
راغله تو له اغنیا او فقرا او کوچنیان لویان نر او ښځې پر راغونډېدله خوراک به
یې څني کاوه تر زواله پوري چي زوال به سو مائده به بیرته پورته سوه او بني

اسرائیلو به ورته کتله، وروسته بیا یوه ورځ نه بله ورځ راتله. بیا خدای پاک و عیسیٰ علیه السلام ته وحي وکړې چي زما مائده او رزق خاص د فقرا او مساکینو لپاره وګرځوه اغنیا مه پرېږده، دا اعلان چي عیسیٰ علیه السلام وکړی پر اغنیا باندي بده پرېوتل حتیٰ چي په خپله شک ور ولوېدی او خلګو ته به یې شک ور اچاوه چي دا مائده د خدای له خوا نه ده او خلګو ته به یې ویل ترون المائدة حقا من السماء، نو خدای پاک و عیسیٰ علیه السلام ته وحي وکړې چي ما د مائده د نزول په وخت کي دا شرط ایښی و چي که چا وروسته تر نزول کفر او انکار وکړی عذبته عذاباً لا اعذبه احداً من العالمین کما مر من قبل، عیسیٰ علیه السلام وویل که ته عذاب ورکوې ستا بندګان یعني پر عذاب یې قدرت لري وان تغفرلهم فانک انت العزیز الحکیم. وروسته خدای پاک دري سوه درې دېرش (۳۳۳) کسان چي منکران وه خدای مسخ کړه پر دې ډول چي دوی ماښام د خپلو ماینو سره په ځای کي پرېوتله سهار چي راکښېښستل سرکوزان وه په لارو کي به ځغاستله او هر ځای چي به یې د انسان مرداري پیدا کړه هغه به یې خوړله، خلګو چي دا حیرت انګېزه واقعه ولیدله ورغله عیسیٰ علیه السلام ته یې بغاري چیغاري د بېري وهلې، او هغه سرکوزانو چي به عیسیٰ ولیدی تر سترګو به یې اوښکي تویدلې او پر عیسیٰ علیه السلام به شا وخوا راګرځېدله نو عیسیٰ علیه السلام به هر یوه ته په نومانو نعره کوله چي ته فلانی یې هغه به سر ورته ښوراوه یعني هو! او په عین حال کي به یې تر سترګو اوښکي تویدلې او پر خبرو یې قدرت نه درلودی درې ورځي ژوندي وه بیا مړه سوه کما هو حکم الممسوخ، او بغوي رحمه الله وایي چي خلاص بن عمرو د عمار بن یاسر رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چي هغه له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه کړی دی چي دا مائده غوښي او ډوډۍ وه او دوی ته وویل سوه چي دا مائده به جاري وي تر څو چي تاسي خیانت پکښي ونه کړئ، یعني د بلې ورځي لپاره غوښي نه پټوئ دغه ورځ نه وه تېره سوې چي دوی خیانت شروع کړی فمسخوا قردة وخنازیر.

**درویش وایي:** چي د بغوي تر روایت پوري خو د روح البیان او مظهري سره موافقت و، نو د ماقبل او د بغوي د روایت جمع خو امکان لري چي دادي تعدد د واقعې وي، وروسته بیا مظهري دوولس روایته نور راوړي دي او لویو صحابه وو او تابعینو ته یې

منسوب کړي بېله ذکره د اسانیدو. والله اعلم بصحتها وبین تلک الاقوال التي نقلها المظهري تباعد کما بین السما والارض. وایراد مثل هذه الروایات یزداد في قلوب السامعین الشکوک والشبهات کما لایخفی علی من طالع تفسیره.

وَإِذْ قَالَ اللَّهُ يَا عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ أَأَنْتَ قُلْتَ لِلنَّاسِ اتَّخِذُونِي وَأُمِّيَ إِلَٰهَيْنِ مِنْ دُونِ اللَّهِ

یعنې ذکره کړه اې محمده ﷺ وخلکو ته وخت ددې قول د خدای ﷻ و عیسی ﷺ ته په ورځ د آخرت لپاره د سرزنش د هغو نصاری وو چې عیسی یا خدای بولي یا ابن الله بولي یا یې ثالث ثلثه بولي په دې معنا چې عیسی ﷺ اقرار وکړي په حضور کې د ټولو اهل محشر په خپلې بندګي سره او دی اقرار وکړي چې ما خلګ امر کول په عبادت سره د خدای ﷻ. او سدي ﷫ وایي چې دا قول د خدای ﷻ و عیسی ﷺ ته هلته دی چې دی یې و اسمان ته پورته کړی ده یې دلیل یې دا ویلی دی چې کلمه د "اذ" لپاره د ماضي ده او قال هم ماضي ده. یعنې د اخرت د ورځې خبره نه ده. ولې اخرت خو مستقبل دی لیس بشئ. ولې هغه خبره یا وخت چې متیقن الوقوع وي لکه د قیامت ورځ د هغه تعبیر په ماضي روا دی بلکې په قرآن کې واقع دی کما في قوله تعالی "ولو تری اذ فزعوا" اې عیسی زوی د مریم آیا تا ویلي دي خلګو ته یعنې النصاری چې تاسې وګرځوئ ما او زما مور خدایان.

**پوه سه**: چې لفظ د "امي" یې ووایه او مریم یې نه وویل لپاره د توبیخ د کافرانو یعنې نصاری وو په دې معنا چې عیسی ﷺ چې له مریمې څخه زېږېدلی و او حادث و د مور و تربیې ته په وخت کې د کوچنیوالي محتاجه و. نو دی به څرنګه وایې چې ما او مور خدایان وبولئ. او سره ددې چې خدای خو لم یلد ولم یولد دی او عیسی ﷺ خو مولود دی او مور یې والدة ده او ددوی تر منځ تجانس في الماهیة سته او خدای ﷻ خو لم یکن له کفوا دی.

**فائده**: په علم معاني کې وایي چې تقدیم د مسند الیه پر مسند فعلي باندې لپاره د تاکید د نسبت دی کما في قولک زید ضرب. نو ددې قاعدې په رڼا کې چې په دې جمله کې یاعیسی چې مسند الیه دی پر مسند باندې چې قلت دی لپاره د تاکید د نسبت دی. ولې چې دا خبره د عیسی ﷺ له شانه ډېره لېرې وه، نو یې تاکید

وكرى ففي هذا ايضاً توبيخ للكفرة فافهم هذه الدقيقة.

**پوه سه**: چي "من دون الله" حال دی له فاعل څخه د "اتخذوني" كانه قيل صيروني وامي الهين اى معبودين متجاوزين عن الوهيته تعالى ومعبوديته والمراد اشراكهمابه سبحانه لان احداً من النصارى لم يذهب الى القول بالهيهما اى عيسى ومريم مع القول بنفي الهيته تعالى.

**درویش وایي**: چي ابو رؤف رحمه الله وايي چي عيسى عليه السلام چي دا خطاب الهي واوري، نو د بدن تو له اندامونه به يې ورپېږدي او د هر وېښته تر بيخ به يې وينه راووزي، او دا خطاب که څه هم ظاهراً د عيسى عليه السلام سره دی لکن حقيقةً يې د امت سره دی، ولې چي عادت الهي دادی چي د کفارو سره خبري نه کوي ولا ينظر اليهم.

**قَالَ سُبۡحَٰنَكَ**

ځواب د سوال دی چي عيسى عليه السلام به خدای جل جلاله ته ځواب وايي يعني خدای په ځواب کي د خدای جل جلاله.

**پوه سه**: چي سبحانک يعني لفظ د سبحان يا اسم مصدر دی يا علم مصدر دی فعل يې محذوف دی يعني اسبحک سبحاناً زه ستا ستاينه او پاکي وايم له هغه قول څخه چي ستا د شان لائق نه وي يعني اتخذوني وامي الهين كما يدل عليه قوله.

**مَا يَكُونُ لِيٓ أَنۡ أَقُولَ مَا لَيۡسَ لِي بِحَقٍّۚ إِن كُنتُ قُلۡتُهُۥ فَقَدۡ عَلِمۡتَهُۥۚ**

نه ښايي ما لره چي زه دي وايم هغه خبره چي ماته حق نه وي، که چېري ما دغه خبره کړې وي چي ستا د عظيم شانه سره لائقه نه وي نو ته خو زما پر هغه خبره علم لرې يعني عذر ته حاجت نشته، ولې چي ته خبر يې چي ما نه دي ويلي ولې که ما ويلي وای نو ته به خبر وای، له دې سببه.

**تَعۡلَمُ مَا فِي نَفۡسِي وَلَآ أَعۡلَمُ مَا فِي نَفۡسِكَۚ إِنَّكَ أَنتَ عَلَّٰمُ ٱلۡغُيُوبِ ١١٦**

چي ته خبر يې چي زما په نفس او زړه کي وي او زه نه يم خبر په مخفياتو چي ستا په علم کي وي، ولې ته اې خدايه خبر يې د هر بنه په هغه څه چي له بندګانو څخه غيب او پټ وي يعني ماكان في الماضي ومايكون في المستقبل.

**پوه سه:** چي اطلاق د نفس پر خدای ﷻ چونکه شرعاً نه دی روا، نو مراد له نفس څخه ذات د خدای ﷻ دی او تعبیر له ذات څخه چي په نفس کړی مشاکلة مثل جزا سيئة سيئة.

مَا قُلْتُ لَهُمْ إِلَّا مَا أَمَرْتَنِي بِهِ أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ رَبِّي وَرَبَّكُمْ

ما خلګو ته نه دي ويلي مګر نه هغه خبر چي ته زه په امر کړی وم من التوحيد كما يدل عليه مابعده، چي تاسي عبادت کوئ يعني خدای ﷻ يو وبولئ شريک مه ورته واياست او خدای ﷻ زما خالق دی او ستاسي هم خالق دی.

**پوه سه:** چي "ان" سره د مدخوله بيان د ضمير په "به" کي او يا "ان" مفرد دی د "مالمرتني"

وَكُنْتُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا مَا دُمْتُ فِيهِمْ فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِي

او زه وم شهيد يعني مراقب د احوالو د دوی من الكفر والايمان يعني امرهم بالايمان ومانعهم عن الكفر والعصيان او د قول باطل او اعتقاد باطل څخه مي منع کوله.

**پوه سه:** چي له وفات څخه معروفه معنا نه ده مراد وهو الموت لان عيسى عليه السلام في السما وينزل في قرب القيامة حكماً عدلاً مجدداً لدين محمد ﷺ لان دين نفسه منسوخ، بلکي د "توفى" معنا اخذ الشئ كاملاً ومنه الوفات المعروف، نو د عيسى عليه السلام په باره کي معنا قبضتني يعني اسمانو ته دي ځني بوتلم.

كُنْتَ أَنْتَ الرَّقِيبَ عَلَيْهِمْ وَأَنْتَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ ﴿١١٧﴾

ته وې اې خدايه محافظ ددوی د اعمالو، نو ستا د رقيب معنا داده چي ته چاته اراده د عصمت وکړې نو هغه به يا په دلائلو عقليه وو سره له کفره منع کړې او يا به رسول ورته راواستوې او کتاب به پر نازل کړې كما ارسل محمد ﷺ مع القرآن العزيز، او ته يې خدايه شاهد پر هر شي په علم ازلي سره يعني من قولي وفعلي وقولهم وفعلهم يعني ته به جزا ورکړې د هر چاته يعني زما او ددوی د قول او

فعل په ورځ د قيامت.

إِن تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ وَإِن تَغْفِرْ لَهُمْ فَإِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ

كه ته عذاب ورکوي دوی ته. نو په تحقيق دوی ستا بندگان دي ولا اعتراض على المالك المطلق فيما فعل بلکې خصوصاً اذا عبدوا غيرک او تا پيدا کړي دي او ستا شكر د بل وايي او نعمتونه تا ورکړي دي. او که ته بخښنه ورته کوې، نو په تحقيق ته اې خدايه قادر او غالب يې پر ثواب او عقاب، نو ستا عقاب وچاته په سبب د عجز ستا نه دی او حکيم يې چې هيڅ کار ستا له حکمته خالي نه دی، نو که څوک په عذابوې ستا عدل دی او که چا ته ثواب او جنت ورکوې ستا فضل دی.

**پوښتنه:** خبره د عيسى عليه السلام خو په کافرانو کي وه. نو څرنگه دی وايي "وَإِن تغفرلهم آه" او سره ددې چې د کافر بخښنه خو منفي ده شرعاً؟

**ځواب:** غفران د کافر په مقتضىٰ د وعيد الهي ممنوع دی دا ددې سره منافي نه دی چې مغفرت ته د کافر ممتنع لذاته دی حتى چې پر ترديد مذكور د عيسىٰ سوال وارد سي.

**سوال:** د قول عيسىٰ معنا طلب دی د مغفرت وكفارو ته؟

**ځواب:** يا داسي نه ده بلکې تسليم د امر الهي او تفويض دی و ارادې او حکمت ته د خدای پاک، والقرينه که د عيسىٰ عليه السلام مطلب طلب د مغفرت د کفارو وای، نو خو داسي به يې ويلي وای فانک انت الغفور الرحيم.

**درويش وايي:** چې له عمرو بن العاص رضي الله عنه څخه روايت دی چې عليه الصلوٰة والسلام د خدای جل جلاله ددې قول تلاوت يې وکړی د ابراهيم عليه السلام په باره کي "رب فانهن (بتانو) اضللن كثيراً من الناس (په سبب د عبادت ددوی) فمن تبعني فانه مني ومن عصاني فانک انت العزيز الحكيم" او د عيسىٰ عليه السلام په باره کي يې هغه آيت هم ووايه "ان تعذبهم فانهم ؟" نو عليه الصلوٰة والسلام وويل اللهم امتي امتي (خدايه زما امت رابخښه) وبكى" نو خدای پاک و جبرائيل عليه السلام ته وويل "اذهب الى محمد وربک اعلم" نو ته سوال څني وکړه چې پر څه شي دي

وژړل، نو جبرائیل راغلی او د علیه الصلوٰة والسلام څخه یې پوښتنه وکړه او علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل چې خپل د امت په باره کې مې وژړل، نو جبرائیل علیه السلام د علیه الصلوٰة والسلام ځواب خدای پاک ته ورساوه، نو خدای جل جلاله وجبرائیل علیه السلام ته وویل چې ورسه محمد ته ووایه چې زه په تا خوشاله کړم د امت په باره کې او غمجنوم دې نه یعنې په ورځ د قیامت.

قَالَ اللّٰهُ هٰذَا يَوْمُ يَنْفَعُ الصّٰدِقِيْنَ صِدْقُهُمْ

خدای پاک وویل چې دا ورځ ده یعنې یوم القیامة چې نفع رسوي صادقانو کسانو ته یا معنا داده چې منافق نه وي. یا معنا داده چې محسنین في العبادة وي کما ورد في الحدیث الاحسان ان تعبد الله کان تراه الی اخیر الحدیث الطویل المشهور الذي رواه البخاري. ددوی صدق یعنې په دنیا کې.

**پوه سه**: چې "قال" ماضي ده لکن په معنا د مضارع ده اې یقول الله تعالی لعیسی یو القیامة.

**پوه سه**: چې د جمهورو قراؤ قرائت په پېښ د "یوم" دی نو خبر د "هذا" دی او مضاف وینفع ته دی وتمام الجملة مقولة لقال. او نافع رحمه الله یې په زور وایي، د زور وجه یې داده چې ظرف د قال ای قال الله هذا الکلام لعیسیٰ په هغه ورځ چې صادقین ته آه او یا یوم سره د زوره خبر د هذا دی لکنه پر فتحه یې مبني کړی دی ولې چې مضاف و مبني ته دی.

**سوال**: یوم "خو مضاف و "ینفع" ته دی چې هغه معرفه ده؟

**ځواب**: یوم" یوازې مضارع ته نه دی بلکې ټولې جملې ته دی.

**درویش وایي**: چې په شرح جامي کې راغلي چې جمله له قسمه څخه د مبني الاصل ده فلا یرد مایتوهم.

**پوښتنه**: د خدای جل جلاله ددې قول حکمت څه دی یعنې قال الله الآیة؟

**ځواب**: حکمت یې دادی چې له کلام څخه توهم کېدی چې د بخښنه د کفارو لپاره غواړي، نو خدای جل جلاله یې دفعه وکړه چې هذا یوم ینفع الآیة یعنې دون الکاذبین الکفار في الدنیا یعنې و هغو ته د مغفرت امید نشته.

**فائده**: موږ صدق د دنیا وو ایه ولي چي په اخرت کي که څوک رښتیا ووایي کما في قوله تعالى في حق الكفار يوم القيامة لم تك من المصلين لم تك نطعم المسكين. دا خبره خو ددوی رښتیا وه او که دروغ وایي کما في قوله تعالى حكاته عن قول الكفار في يوم القيامة والله ربنا ماكنا مشركين الآية يوهم فائده دوی ته نه کوي.

**شپاړسمه فائده**: پوه سه چي اخترونه څلور دي د څلورو قومونو لپاره.

(۱) اختر دی د ابراهیم علیه السلام د قوم چي په دغه ورځ ده د لوی بتخاني بتان مات کړه حين خرج قومه الى عيد لهم.

(۲) د موسى علیه السلام د قوم اختر دی او دغه اختر ته خدای جل جلاله اشاره کړي ده په سورة طٰه کي "قال (ای فرعون) ان موعدكم يوم الزينة الى اخير الآية.

(۳) د عیسى علیه السلام د قوم اختر دی ودې اختر ته خدای پاک اشاره کړي ده په دې آیت کي "ربنا انزل علينا مائدة الى ان قال تكون عيداً لنا الى اخير الآية.

(۴) اختر دی د امت د علیه الصلوٰة والسلام ددې امت اخترونه درې دي یو عید مکرر دی په هره هفته کي. او دوه اختره په کال کي یو یو وار راځي من غير تكرار في سنة واحدة. عید متکرر په هر هفته کي د جمعې مبارکې ورځ ده. چي د عيد الاسبوع په نامه په عربي کي ورته ویل کېږي دا اختر د هغه مسلمانانو دی چي هغه پينځه لمونځونه په شپه او ورځ کي کوي چي خدای پاک پر دوی فرض کړي دي په کامله وجه د ارکانو و واجباتو او سنتو او مستحباتو په جماعت سره يې اداً کړي وي، نو د جمعې ورځ ددوی اختر دی چي خدای پاک ودوی ته به عفوه د ګنهو کوي په حدیث شریف کي راغلي دي که څوک وفات سي د جمعې په شپه یا د جمعې په ورځ "امن من فتنة القبر او كما قال" په دغه ورځ د جمعې کامل سوی دی خلق د آدم علیه السلام وفيه ادخل الجنة وفي اخرج من الجنة الى الارض، او د جمعې په ورځ امر د دنیا ختم کېږي او د صور شپېلی پوه کل کېږي او د جمعې په ورځ مسلمانان سره جمع کېږي پر اوریدلو د ذکر او موعظت او د جمعې پر لمانځه. او خدای پاک دا ورځ ددوی

لپاره اختر او د خوشالی ورځ ګرځولي ده، او د جمعې په لمانځه کې څه ناڅه مشابهت سته د حج، ځکه چې په يو روايت کې راغلي دي چې د جمعې لمونځ حج المساکين دی، سعيد بن المسيب رضي الله عنه روايت کړی دی چې حضور ﷺ وويل چې د جمعې لمونځ ماته محبوب دی تر نفلي حج، او د جمعې لمونځ کول سبب دی د بخښنې د ګنهو تر بلې جمعې پورې چې په منځ کې د دوو جمعو کبائر ګنهونه ونه کړي کما ان الحج المبرور يکفر ذنوب تلک السنة الى الحجة الاخرىٰ کذا في روح البيان، او هغه دوه اختره چې په يوه کال نه مکررېږي بلکې هر يو په کال کې يو وار راځي يو عيد الفطر چې په پښتو يې کوچنی اختر بولي چې د روژې د مياشتې روژې پوره ونيسي چې عذر شرعي نه وي او روژه د اسلام له ارکانو څخه دريم رکن دی، نو چې مسلمان د روژې د مياشتې پوره ورژې ونيسي، نو دی مستحق دی چې خدای پاک به مغفرت ورته کوي او عتق من النار به ورکوي. او دويم اختر غير مکرر عيد النحر دی چې په پښتو يې لوی اختر بولي وهو اکبر العيدين و افضلهما او دا اختر اصلاً مرتب دی پر اکمال د حج چې څلورم رکن دين د اسلام دی فاذا اکمل المسلمون حجهم غفرلهم او اکمال د حج په وقوف سره عرفات تر سرکېږي وهو الرکن الاعظم، وروی انس رضي الله عنه چې عليه الصلوٰة والسلام چې مدينې منورې ته راغلی، نو مدينې والو دوې ورځې درلودې چې هغو خوشالي کولې. نو عليه الصلوٰة والسلام وويل چې ددې دوو ورځو په بدل کې خدای تاسې ته دوې ورځې نورې د خوشالی درکړي دي چې ستاسې تر اصطلاحي دوو ورځو بهتر دی يوم الفطر والاضحى چونه عليه الصلوٰة والسلام دا ورځې معينې کړي دي تر ننې ورځې پورې دغه دوې ورځې عموماً د مسلمانانو د خوشالی ورځې دي.

**درویش وايي:** چې اوس خدای پاک په دې آيتو کې بيان د نفع د صادقين کوي،

**لَهُمْ جَنّٰتٌ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ؕ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ ؕ**

دوی لره دي جنتونه چې بهېږي به لاندې تر درختو د هغو او د قصورو د هغو

ولې يعني عسل، اوبه شيدې او شراب او دوی په همېشه وي په دغو جنتو کي چي بيا نه مرگ ستته او نه خروج ابداً. خدای ﷻ له دوی څخه راضي دی په سبب د صدق او اخلاص په دنيا کي او دوی له خدايه راضي په حسن ثواب سره چي نه د چا سترگو ليدلی دی او نه د چا غوږو اورېدلی دی يعني بالتفصيل او نه د چا پر زړه ورگرځېدلی دی.

ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿۱۱۹﴾

دا دخول د جنت لو يه کامیابي ده لانها باقية ابداً بخلاف حطام الدنيا من الاموال و الاولاد والقصور والسيارات فانه مكدرة بكدرة الفنا فلا يكون فوزاً فضلاً عن ان يكون عظيماً اللهم اجعلنا من اهل فوزك العظيم برحمتك يا ارحم الراحمين آمين.

لِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا فِيْهِنَّ ۚ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۱۲۰﴾

او خاص خدای لره ده بادشاهي او تصرف د اسمانو او د مځکي او د هغو شيانو چي په اسمانو او مځکي کي دي او خدای ﷻ پر هر شي چي اراده يې ورته وسي قادر او توانا دی.

**پوه سه:** چي په دې آيت سره رد دی پر نصارٰی باندي په باره کي د عيسٰی علیه السلام او دده د مور، او ددوی د کذب بيان دی، ولي چي خدای ﷻ لره ده خاصه سلطنت او تصرف د اسمانو او د مځکي او چي په اسمانو او مځکي کي دي که عقلا وي او که غير عقلا وي يتصرف فيها كيف يشآ ايجاداً او اعداماً واماتةً واحياً وامراً ونهياً بېله د مدخليت د بل چا. او دا مذکوره امور د طاقت د عيسٰی او مور دده خارج دي فكيف يكون هو وامه الهين. سعدي شيرازي رحمه الله مېگويد

نيست خلقش را دگر کس مالکی شرکتش دعوی کند جزها لکی
واحد اندر ملک و او یا رنی بند گانش راجز او سالا رنی

**پوه سه:** چي مظهري رحمه الله وايي چي خدای ﷻ من فيهن نه وو ايه تغليباً

للعقلاً او ما فیهن یې ووایه عقلا یې د غیر عقلا وو تابع وگرځول، بیانو مظهري ددې توجیه کړې ده.

**درویش وایي**: چې په هیڅ ځای کې د قرآن مبارک عقلا د غیر عقلا وو تابع نه دي گرځول سوي. دا د مظهري رحمه الله تکلف بناً پر مشهور دی چې کلمه د من د عقلا لپاره ده او کلمه د ما د غیر ذوی العقول لپاره ده، والحق ان کلمة ما عامة لذوی العقول وغیرهم کما في شرح الجامي.

**درویش وایي**: چې خاتمه د تفسیر د سورة المائدة د توفیق الهي ودرویش عاصي ته. الحمد لله الذي وفقني لتفسير سورة المائدة والصلوٰة والسلام على خير الخليقة وآله وصحبه الكملة.



خدا یه ته تفسیر ددې سورة مائده اسانه کړي او په حسن قبول سره یې راڅخه قبول کړي او خیر باقي یې وګرځوي.

سُوْرَةُ الْاَنْعَامِ مَكِّيَّةٌ وَهِيَ مِائَةٌ وَّخَمْسٌ وَّسِتُّوْنَ اٰيَةً وَّعِشْرُوْنَ رُكُوْعًا

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ

ټولـه تعریفونـه خـاص خـدای ﷻ لـره دي هغـه خـدای ﷻ چـې پیـدا کـړي یـې دي اسمانونه یعني ومافیهـا مـن الشمس والقمر والنجوم وغیرها ممالا یعلمه الا الله. مځکه او په مځکه کې چې دي من الحیوانات والنباتات والمعدنیات. او هر یو لـه دغـو درو یـا مشتمل دي پر ډېرو اجناسـو او انواعو کما لا یخفی او هر نـوعي لـره خپل خپل خواص او مراتب او فوائد سته که یې څوک پېژني او که نه.

**پوه سه**: چي "الحمد لله" مبتدأ او خبر دی ددې اخبار فائده داده چي خدای ﷻ محمود دی که یې څه هم څوک حمد نه وایي او دی مستغني دی لـه حمد څخـه د عبادو. او بل باعثه کول دي د بندګانو چي تاسي باید اقتدا پـه فعل پسـي د خدای یعني د خدای ﷻ حمد وویاست چي ګنبه یې وتاسي ته راجع ده. او الف ولام په الحمد کي لپاره د استغراق دی ای کل حمد لله په نېز د اهل السنة والجماعة او لپاره د جنس دی په نېز د معتزله وومآل المذهبین واحد کما في المطول.

**پوه سه**: چي سورة الانعام نازل سوی دی په مکه مکرمـه کي د شپې لـه خوا جملة واحدة او اوویا زره ملکې ورسره وې چي د مشرق او مغرب منځ یې ټول نیولی و او دوی په لوړ آواز تسبیح او تحمید وایه حتی چي قریبه وه چي د مکې مځکه دي لرزه سي. نو علیه الصلوٰة والسلام چي دا ژور تسبیح او تحمید د ملکو واورېدی نو یې وویل سبحان ربي العظیم سبحان ربي العظیم او پر سجده پرېوتی.

پـه حدیث مرفـوع کـي راغلـي دي کـه څوک سـورة الانعام ووایي هغه تـه دعـا د مغفرت کوي هغه اوویا زره ملکې او علیـه الصلوٰة والسلام پـه کاتب د وحي ټولـه دغه سورة نوشته کړی په هغه شپه کي.

**پوښتنه**: آیا شکر د منعم لکه استاذ پر تعلیم دده چي عاق شده شاګرد نه وي واجب نه دی؟ او دغه رنګه شکر د سلطان چي عادل وي او شکر د محسن پر احسان دده واجب دی کما جاء في الحديث من لم يشكر الناس لم يشكر الله. نو دا حمدونه او شکرونه خو د بندګانو دي. نو څرنګه به صحيح وي کل حمدلله؟

**ځواب**: مراد په کل حمدلله کي عام دی که صريحاً او ظاهراً وي او که التزاماً او باطناً وي. نو دغه حمدونه چي په پوښتنه کي ذکر سوه که څه هم ظاهراً د غيرالله دي لکن په حقيقت کي هغه هم راجع وخدای ﷻ ته دي. مثلاً په صورت کي د احسان چي څوک نعمت وبل ته ورکړي مثلاً انګور يا انار الى غير ذالک خالق ددغو موادو د احسان خدای ﷻ دی، او بل دا چي په زړه کي د محسن چا ورواچول چي د فلاني سړي سره احسان وکړه خدای ﷻ ور واچول. نتيجه داده فلا محسن الا الله ولا مستحق للحمد الاهو.

**فائده**: په دې آيت کي خدای ﷻ حمد مربوط په اسم ذات سره وګرځاوه اشارة الى انه تعالى مستحق للحمد لذاته. او علاوه پر هغه په بعض آياتو قرآنيه وکي حمد مربوط په بعض صفاتو سره ګرځول سوی دی، او بعض آيتونه په افعالو پوري د خدای راغلي دي اشارةً الى الاستحقاق الصفتي والافعالي ايضاً.

**سوال**: خدای پاک سموات د جمع په صيغه راوړه او ځمکه يې په مفرد لفظ راوړه سر يې څه دی؟

**ځواب**: مفسرين په يوه ځوله وايي چي د يوه اسمان ماهيت له بل اسمان څخه جلا دی او ځمکه که څه هم اووه طبقې ده کما قال الله تعالى في موضوع آخر ومن الارض مثلهن لکه ماهيت چي يې يو دی فرق يې يوازي په عوارضو سره لکه وچه ځمکه لنده ځمکه. او صرفي وجه يې داده چي جمع د ارض پر ارضون کما جاء في بعض الكتب خلاف القياس ده. ولي چي جمع په واو او نون سره د ذوی العقول لپاره ده او جمع قياسي يې چي اراضي دی ثقيل ده.

**فائده**: له خلق څخه مراد ايجاد دی بېله مثال سابقه.

**يوه سه**: چي خدای پاک اسمانونه ومافيها په دوو ورځو کي پيدا کړي دي يعني

یکشنبه او دوشنبه او مځکه ومافیها یې هم په دوو ورځو کې پیدا کړې یعني سه شنبه او چهار شنبه.

**فائده:** تخصیص د سموات او مځکې چې خدای پاک په ذکر سره وکړې له دې سببه چې اسمانونه او مځکه لویه ده مخلوقات د خدای ﷻ دي چې خلګ یېویني، دا قید چې خلګ یې ویني ددې لپاره چې تر اسمانو او مځکې لوی مخلوق خو په واقع کې سته لکن هغه خلګ نه ویني لکه عرش، جنت، جهنم، شجرة الطوبیٰ او ملائکه چې جبرائیل علیه السلام شپږ سوه وزره لري الی غیر ذالک مما یعلمه الله. او بل سبب د تخصیص یې دادی چې په اسمانو او مځکه کې فوائد سته مثلاً په اسمانو کې لمر، سپوږمۍ او ستوري چې اهل ارض ته رڼا ورکوي د ورځې یا د شپې "وبالنجم هم یهتدون" او په ستورو سره د بر او بحر لارې پیدا کوي، او په مځکه کې فوائد لامتناهیة سته من الحیوانات الماکولة اللحم وغیرها کالفیل والحمار والبغل والاشجار المثمرة وعامة ارزاق العباد په مځکه کې دي. او نور جواهرات او معدنیات من الحدید والذهب والفضة والرصاص وغیرها ومن اللعل والفیروزج والعقیق الی غیر ذالک.

**فائده:** له یوه اسمانه تر بل اسمانه پورې د پینځو سوو کالو مسافت دی، اختلاف العلماً، بعض علماً وایي چې اسمانونه افضل دي تر مځکې، لکن صحیح دادی چې مځکه افضله ده، ولې چې انبیاً علیهم السلام په سبب د خلق د آدم علیه السلام ټول له مځکې څخه پیدا دي او انبیاً علیهم السلام خپل ټوله عبادت په مځکه کې کړې دی او رسالت او نبوت یې ټوله په مځکه کې سر ته رسولی دی. او اسباب د حیوة الدنیا چې مزرعة الآخرة دي ټوله په مځکه کې دی او د مځکې په ژوند سره جنتونه د مسلمانانو لاس ته ورځي الی غیر ذالک من فوائد الارض او انبیاً علیهم السلام ټوله په مځکه کې مدفون دي، او مځکه دار الخلافة ومزرعة الآخرة ده کما مر، او افضله د مځکې هغه ټوټه ده چې هغه پر جسد انور د آنحضرت ﷺ په مدینه منوره کې شاوخوا راګرځېدلې ده، او دویمه درجه افضله د مځکې بقعة الحرم المکي ده، او دریمه درجه د بیت المقدس بقعه ده، او څلورمه درجه بقعه د مدینې منورې ده او شام په بیت المقدس کې داخل دی الی غیر ذالک من المواضع الشریفة لکه مقابر د

اولیاً الله او مساجد جامعه ثم وثم.

**فائده**: کعب احبار وایي چي دغه آیت یعني الحمدلله الذي خلق الآیة اول آیت دی په تورات کي او اخیر آیت دی په تورات کي الحمد لله الذي لم یتخذ ولداً.

**پوښتنه**: تورات خو عربي نه و بلکې سریاني و او دا د قرآن مبارک آیتونه خو عربي دي، نو څرنګه به د کعب احبار خبره صحیح وي؟

**ځواب**: د کعب د خبري اول د تورات او اخیر د تورات معنا داده چي معنا یې یوه ده که څه هم الفاظ یې مختلف دي والله اعلم. له ابن عباس ﷺ څخه روایت دی چي خدای پاک شروع د پیدا کولو د اسمانو او مځکي په حمد سره فقال الحمدلله الذي خلق السمٰوات والارض او ختم یې هم په حمد سره وکړی یعني قوله تعالی "وقضي بينهم بالحق وقيل الحمد لله رب العالمين. درویش وایي وهذا من معجزات القرآن الکریم ولا یسع مثل هذه الفاتحة والخاتمة طوق البشر.

وَجَعَلَ الظُّلُمٰتِ وَالنُّوْرَ ۚ

او خدای ﷻ پیدا کړې ده تاریکي او نور یعني رڼا.

**درویش وایي**: چي مفسرین اختلاف لري په تفسیر کي ددې آیت. حسن بصري وایي چي مراد له ظلمات څخه کفر دی او مراد له نور څخه ایمان دی. نو پر دې جمع د ظلماتو او مفرد راوړه د نور ظاهره ده، ولي چي انواع د کفر ډیري دي کالشرک والیهودیة والنصرانیة والدهریة والمجوسیة، او نور یو دی وهو الاسلام. له ابن مسعود ﷺ څخه روایت دی چي علیه الصلوٰة والسلام یوه ورځ مونږ ته خط مستقیم په ګوتي مبارکي سره ولیکی بیا یې وویل هذا سبیل الله یعني لار ده سیده کوږ والی نسته پکښي، بیا یې پر رسته او چپه طرف د خط مستقیم ډېر خطونه ولیکل او وه یې ویل چي دا نوري لاري دي او هره لار د شیطان ده چي خلګ ودغو لارو ته رابولي لکه کفر، زنی، لواطت او نور ورته ګنهونه بیا علیه الصلوٰة والسلام دا آیت ووایه "هذا صراطي مستقیماً فاتبعوه ولا تتبعوا السبل فتفرق بکم عن سبیله" رواه احمد والنسائي والدارمي.

**درویش وایي**: چي پر دې هم جمع د ظلماتو چي لاري د شیطان دي او افراد د نور

چي طريق مستقيم د ظاهر دی او پوه سه چي په دې آيت رد دی پر مجوسيانو چي دوی وايي خالق د نور خدای دی او خالق د ظلمت شيطان او دواړه واجب الوجود دي. او داغه رنګه رد دی پر ثنويه چي عالم لره دوه واجب الوجود خدايان وايي يعني خالق د خير د شيانو او د فائدمندو چي د انسانانو نفع پکښې وي د هغه خالق نوم يزدان دی او د مضرو شيانو چي د انسانانو په ضرر تماميږي نوم يې اهرمن دی.

**پوه سه:** چي ظلمات يې تر نور دمخه کړی، ولي چي عربو بلکې شريعت حساب د هفتې يا د مياشتي له شپې څخه شروع کوي او شپه ځای د ظلمت ده او ورځ ځای د نور ده، نو ظلمت تر نور وجوداً دمخه دی، او بعض مفسران يې دا وجه وايي چي اجسام حامله د ظلمت ډېر دي او اجرام حامله د نور لږ دي، فالنور بالنسبة الى الظلمة كالواحد بالنسبة الى المتعدد.

**فائده:** ثنويه وايي چي ظلمت او نور قائم بنفسهما دي يعني له قسمه د جوهر دي، او اسلام وايي چي قائم بغيرهما دي يعني له عرض قسم څخه دي او له مقوله د کيف دي يعني دواړه نور او ظلمت کيفيت دي چي قائم په جسم منير او جسم مظلم پوري دي.

**درويش وايي:** چي په دې فائدې سره هغه سوال دفع سوه چي د بعضې اشخاصو په اذهانو کي ورګرځي چي ظلمت خو عدمي دی او په قانون کي د حکمت جعل په عدمي شي پوري تعلق نه سي نيولای وجه الدفع ظاهر كما لا يخفى.

**درويش وايي:** چي ما دمخه وويل چي فالنور بالنسبة الى الظلمة آه ددې خبري توضيح داده چي د شپې په يوه خونه کي سل يا زر شيان پراته وي او څراغ يا برق نه وي تو له شيان مظلم تاريک وي په سترګو نه معلوميږي چي څراغ يا ګروپ په خونه ولګوي تو له شيان معلوم سي او وليدل سي فاحفظ فانه سانح جديد. او د روح المعاني او روح البيان او تفسير مظهري دغه چي تاسي واوريدی حاصل دی.

ثُمَّ الَّذِينَ كَفَرُوا بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُونَ ①

بيا هغه کسان چي کافران دي.

**پوه سه:** چي "بربهم" متعلق دی په "يعدلون" پوري، معمول يې مقدم کړی لپاره د

اهتمام په شان سره د هغه. او عدل برابرولو ته وايي. والمعنى چي وروسته تر دغو دلائلو د خالقيت د خداى وحده چي د الحمد لله څخه شروع سوي دي بيا هم كفار نورشيان چي عبارت له بتانو څخه دي له خداى سره يې برابروي په استحقاق كي د عبادت، نو ثم د استبعاد دى له برابرى څخه د مشركانو نور شيان يعني بتان د خداى ﷻ سره. بلكي ددغو دلائلو په رنا كي مشركانو يوازې او يوازې مستحق د حمد او شكر او عبادت خداى ګڼلاى چي معطي د ټولو نعمتو دى. لكن دوى داسي ونه كړه نو ځكه يې ثم لپاره د استبعاد ذكر كړى.

**پوه سه:** چي "ثم الذين كفروا" عطف دى على قوله الحمد لله او يا عطف ده پر خالق باندي، دا وه هغه معنى او تفسير ددې آيت چي روح البيان ذكر كړى دى. او مظهري بيا د بربهم متعلق په كفروا پوري بولي او د يعدلون سره جار او مجرور محذوف بولي يعني يعدلون عنه. نو ترجمه داسي كېږي د مظهري پر تفسير چي وروسته هغه كسان چي كفر كوي په خداى ﷻ سره چي مشركان دي روى ګرداني كوي له خداى ﷻ څخه وبل شي ته چي بتان دي.

**درويش وايي:** چي ترجمه د روح البيان پر دې مبني ده چي د عدل معنا تسويه ده او د مظهري د تفسير بناً پردې ده چي يعدلون مشتق دى له عدول څخه چي معنا يې روى ګرداني ده. دواړه تفسيره خو صحيح دي لكن تفسير د روح البيان ډېر ښايا او له تكلف څخه د حذف خالي دى فعليك بالتامل.

**فائده سينة:** پوه سه! چي ددې آيت په تفسير كي يعني له الحمد لله الذي څخه بيا تر يعدلون پوري اولياً الكرام او ارباب القلوب يو ښائسته تفسير د اشارې په ډول داسي كوي آسمانونه د زړو يعني چي مشابه د اسمانو سره دي او ځمكه د نفوسو پيدا كړي دي او تاريكى يې په نفوسو كي پيدا كړي دي دا ظلمات د نفوسو عبارت دى د صفاتو بهيميه وو. او اخلاق شيطانيه او صفاتو سبوعيه وو او حيوانيه وو څخه دى او نور يې په زړو كي ايښى دى. دا نور عبارت دى د صفاتو ملكيه او د اخلاق روحانيه څخه، نو هغه سړى چي غالبه سي پر ده نور الهي قلبي ملكي روحاني، نو هغه سړى ميل كوي و بندګى. او عبادت ته د خداى ﷻ او دعوت د انبياً عليهم السلام قبلوي ويؤمن بالله ورسوله او د شريعت زيور په ځان

پوري کوي فالله تعالى وليه فيخرجه من ظلمات الصفات الذميمة الشيطانية والبهيمة الى الصفات الملكية واليه اشير في قوله تعالى "الله ولي الذين آمنوا يخرجهم من الظلمات الى النور" او پر هغه چي غالب سي صفات ذميمه او ملكات شيطانيه او خواهشات ذميمه نفسانيه او هوائيه او پر شهواتو د دنيا خوند اخلي، نو طاغوت يعني شيطان دده ولي وگرځي، نو دا سړی طاغوت وباسي له نوره څخه د صفاتو ملكيه او روحانيه وو وظلمات ته د صفات بهيميه وو كما ورد في قوله تعالى "والذين كفروا اولياهم الطاغوت يخرجونهم من النور الى الظلمات" او هم دغه ده معنا ددې قول د خدای ﷻ في هذه الآية "ثم الذين كفروا بربهم يعدلون" درويش وايي چي دا تفسير د اشارې د تاويلات نجميه وو.

**حکايت**: يو جماعت له فقهاؤ څخه د يمن لپاره د امتحان د عارف بالله ابي الغيث ابن جميل قدس سره چي په يو شي كي يې دده د ولايت امتحان كاوه، چي يمنيان فقهاً وشيخ ابي الغيث ﷫ ته نږدې راغله شيخ ابي الغيث ورته وويل مرحباً بعبيد عبدي بنه راغلاست ای بندگانو زما د بنده. دا خو ظاهراً د كفر خبره وه. نو ددوی ډېر نفرت څني وسو، نو دوی ولاړه وشيخ الطريقين او امام الفريقين وبالذبيح اسماعيل بن محمد الحضرمي قدس سره. نو دوی د ابو الغيث خبره ورته وكړه يعني چي داسي كفر امېزه خبره يې موږ ته وكړه، نو شيخ اسماعيل ورته وخندل او ورته وه يې ويل چي ډېره ښه خبره يې درته كړېده انتم عبيد الهوىٰ والهوىٰ عبده، يعني تاسي بندگان ياست د خواهشاتِ نفسيه وو چي هوىٰ يې بولي او هوىٰ بنده وه د ابو الغيث ﷫، ولنعم ماقيل.

قدر زر زرگر شناسد قدر جوهر جوهري

هُوَ الَّذِي خَلَقَكُم مِّن طِينٍ

خدای ﷻ هغه ذات دی چي تاسي انسانان يې پيدا كړي ياست له ختو څخه چي خاوري او اوبه سره گډي كړي، نو په عربي يې طين بولي.

**سوال**: نسبت د خلق له ختو څخه يې وتولو انسانانو ته وكړی، او سره ددې چي انسان خو له نطفې څخه د مور او پلار پيدا كېږي على الاكثر؟

**خواب**: هو، لکن اصل د ټولو انسانانو چي ابو البشر آدم علیه السلام دی له ختو خدای جل جلاله پیدا کړی و او موږ د هغه اولاد یو، نو ګویا موږ ټوله هم له ختو څخه پیدا یو بالواسائط. له ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی چي علیه الصلوٰة والسلام وویل خلق آدم من تراب یعني مخلوط په اوبو سره چي ختې سوې بیا یې پرېښود حتّی کان حمأ مسنوناً یعني بد بویه شي وروسته یې انساني اعضا ورڅخه جوړه کړه یعني په وسائط د ملکو په تعلیم د خدای جل جلاله بیا یې پرېښو چي وچ سو او شرنګی یې وکړی لکه کودري، هغه لوښي چي په اور پوخ سوي وي ثم نفخ فیه من روحه فصار بالبشر، او د آدم علیه السلام قد شپېته ګزه و.

**حکمت**: خدای جل جلاله آدم علیه السلام ددې لپاره له خاورو څخه پیدا کړی چي مقام د خاورو تواضع او مسکنت دی، او تواضع او مسکنت مقام د ثبات او د رفعت دی، ولهذا ورد في الحدیث من تواضع لله رفعه الله. قال علیه الصلوٰة والسلام اللهم احیني مسکیناً وامتني مسکیناً واحشرني في زمرة المساکین ویدفن غالباً کل انسان په هغه خای کي چي دده جزء د ختې په اول خلقت د آدم علیه السلام اخستـه سوی وي، موږ غالباً ددې لپاره وواېه چي بعض انسانان لکه هندوان مړي په اور سوځي ښخوي یې نه او بعض انسانان په دریاب کي غرق سي ماهیان یې وخوري وهکذا نور هم، لکن اکثره انسانان سړی په قبر کي ښخوي لکه مسلمانان عند القدرة او یهودان او نصارٰی او مشرکی العرب، امام مالک رحمه الله وایي چي زه لوی فضیلت د ابوبکر او عمر رضي الله عنهما دا بولم چي په حجره کي د علیه الصلوٰة والسلام سره مدفون دي، نو ګویا طینت د علیه الصلوٰة والسلام ددوی سره یو دی.

**درویش وایي**: چي مفسرین ټوله تقریباً په اتفاق وایي او له سدي رحمه الله څخه روایت کوي چي جبرائیل علیه السلام ته خدای جل جلاله وویل چي ورسه د مځکي له یوه او بل څایه خوړه، ترخه او تروه خاوره وغیرها من اقسام التراب راوړه د آدم علیه السلام د خمیر لپاره، مځکي د خدای جل جلاله په قدرت سره جبرائیل علیه السلام ته وویل اعوذ بالله منک چي ته به زما څخه خاوره وړې او زما اجزا به را کموې، نو جبرائیل علیه السلام بیرته د خدای جل جلاله له مراعات خالي لاس راغلی، خدای پاک ورته وویل چي ولي دي خاوره نه راوړه؟ جبرائیل علیه السلام ورته وویل "یارب انها اعاذت بک" بیا یې

میکائیل علیه السلام پسي واستاوه مخکي بیا اعوذبالله منک ورته وویل، نو هغه هم د خاوري په راوړلو کي کامیابه نه سو لمراعات اسم الله تعالی. بیا ملک الموت عزرائیل علیه السلام پسي واستاوه. خو مخکي خپل استعاذه و عزرائیل علیه السلام ته هم پیش کړه، نو عزرائیل علیه السلام ورته وویل انا اعوذ بالله ان اخالف امره تعالی، نو مختلف الالوان خاوره چي یې له مخه تېره سوه راتوله یې کړه فلذالک اختلف الالوان بني آدم، بیا یې په امر د خدای جل جلاله په دې خاوره کي خوږې، ترخې او تروې اوبه واچولې او خمیره یې کړه ولذالک اختلف اخلاق بني آدم، نو خدای جل جلاله وویل رحم وکړی جبرائیل اومیکائیل پر مخکه باندي، او تا یعني عزرائیل رحم نه وکړی، نو خامخا زه قبض د روحانو د هغه چا چي له دې خاورو څخه پیدا کېږي تاته سپارم، بیا نو لکه دمخه چي تېره سوه د آدم علیه السلام تصویر انجام سو.

**درویش وایي:** چي تر دې ځایه او مامر من قبل روایت د بغوي رحمه الله و، او قریب و روایت ته د بغوي احمد او ترمذي او ابو داؤد له ابو هریره رضي الله عنه عن النبي صلی الله علیه وسلم څخه کړی دی.

## ثُمَّ قَضٰٓى اَجَلًا ؕ وَاَجَلٌ مُّسَمًّى عِنْدَهٗ

وروسته خدای پاک لیکلی دی د هر انسان لپاره یو اجل یعني حد معین له زماني څخه چي هغه وخت راسي دی به مري یعني د تر هغه اجل معین نه دمخه مري او نه وروسته. قال الله تعالی ماتسبق من امة اجلها ومایستاخرون.

**یوه سه:** چي کلمه د "ثم" لپاره د تفاوت او فرق په منځ کي د خلق د انسانانو او د تقدیر د آجالو د دوی.

**فائده:** اجل په لغت کي عبارت دی اخیري مدې د یو شي لاعن اولها وسیظهر فائدة هذه الفائدة فیما سیأتي قریباً.

**یوه سه:** چي "اجل مسمی" مبتدأ ده او "عنده" یې خبر دی، یعني بل اجل چي لپاره د بعث بعد الموت دی مثبت دی په علم کي د خدای جل جلاله چي هغه هیڅ تغیر نه کوي او علم نه لري پر وخت د هغه هیڅ څوک نه مجملاً او نه تفصیلاً. او اجل الموت چي اجل اول و هغه معلوم دی اجمالاً په اماراتو او علاماتو سره که څه هم معلوم تفصیلاً نه دی یا په دې سره معلومېږي چي عمرونه د انسانانو د هري زماني

غالباً څو دي. او د اجل د بعث بعد الموت چي اجل بولي په اعتبار ددې چي دا زمانه د درنګ ددوی په قبرو کې په اعتبار ددې چي ابتدا د ورځي د قیامت ده لکه په اجل اول کي چي اجل په اعتبار ددې چي دا اخیره مده د ژوند ده لاکونه اول مده د ممات ده لما مر في الفائدة السابقة.

**بوه سه**: چي حکما د اسلام وايي چي د هر انسان دوه اجله دي. يو اجل طبعي بولي او بل اجل اخترامي بولي، دوی وايي چي اجل طبعي هغه بولي چي که سړی پر خپل طبعیت او مزاج پاته سي او عوارض خارجیه او امراض مهلکه نه سي ورپېښ نو دده د ژوند موده به تر هغو پاته وي چي رطوبات دده د بدن غالبه سي او حرارت طبعي ختم سي. نو به مړ سي، او اخترامي اجل دې ته وايي چي مرګ په يو ه سبب د اسبابو خارجیه ورپېښ سي، کالحرق او الغرق ولدغ الحشرات السمية لکه مار، لړم غوندک، وغیرها چي یې وخوري من الاسباب عن جسده اخترام وقطعي ته وايي نو ګویا دغو اسبابو دده اجل ورقطعه کړی. مثاله چي يو غویی یا پسه چي قصاب یې یې ناجوړیه نه کړي ذبحه. نو دا غویی یا پسه به تر خپل طبعي مرګه پوري پاته وي. او که یې قصاب د خپلې ګټې لپاره ذبحه کړي، نو دا د غویي یا پسه اجل اخترامي دی.

**سوال**: دا حکما د اسلام څرنګه دا خبره کوي چي اجل دوه قسمه دی او سره ددې چي په قرآن مجید کي راغلي دي "ماتسبق من امة اجلها"؟

**خواب**: د قرآن مجید ددې آیت مراد دادی چي اجل معلوم عند الله دمخه نه سي کېدای او نه وروسته او خدای پاک ته د هر چا که په اجل طبعي مري او که په اجل اخترامي مري معلوم دی نه تقدیم پکښې کېږي او نه تاخیر. اجل اخترامي خو زموږ په علم کي دی، ددې ځواب تائید هغه خبر کوي چي د ټولو عقائدو په کتابو کي وايي چي مقتول پر اجل مړ دی یعني په علم کي د خدای ﷻ نو پر دې بعض ناپوهانو اعتراض کوي چي مقتول چي پر اجل مړ سو، نو قاتل ولي پر قصاصېږي شرعاً. ددې سوال ځواب د عقائدو ټوله کتابونه داسي ورکوي چي مقتول خو په صورت جوړ و هیڅ مریضي چي دده مرګ دې سبب وي نه وه پکښې، نو که قاتل نه وای وژلی نو به هم مقتول ژوند کړی وای. د عقائدو د کتابو عربي عبارت داسي

دی فکان القاتل قطع عنه اجله، فلذا يقتص من القاتل، نو دا خو عين معنى د اجل اختراميٍ وه. او دا چې دوی وايي چې كه قاتل نه وای وژلی ده به نور ژوند کړی وای دا عين معنا د اجل طبعي ده والله اعلم بالصواب.

**درويش وايي:** چې وهذا حاصل مافي روح البيان وغيره من كتب التفسير وحاصل مافي كتب العقائد لاهل السنة والجماعة. بخاري او مسلم د ابن مسعود ﷺ روايت كړی دی قال حدثنا رسول الله ﷺ وهو الصادق المصدوق ان خلق احدكم يجمع في بطن امه اربعين نطفة ثم يكون علقة مثل ذالك يعني په څلوېښت ورځې كي ثم يكون مضغةً مثل ذالک يعني په څلوېښت ورځي کي ثم يبعث الله اليه ملكاً باربع كلمات فيكتب عمله واجله ورزقه وشقي او سعيد ثم ينفخ في الروح، عليه الصلوٰة والسلام چې هم صادق دی هم يې خدای ﷻ تصديق کړی دی چې پيدائښت ستاسي په دې ډول دی چې څلوېښت ورځي نطفه يعني په رحم کي د مور او تصرف د قدرت پر جاري وي حتى بيا نو علقه سي يعني جامده وينه وګرځي بيا هم تصرف د قدرت پر جاري وي حتى بيا نو مضغة وګرځي لکه ژوولې غوښه هم څلوېښت ورځي، يعني بيا نو اعضاً انساني د مضغة وروسته پيدا سي حتى چې اعضاً د بدن پوره سي بيا ملکه خدای ﷻ ورته راواستوي په څلورو خبرو نو ملکه نوشته کړي يعني ښوونه د خدای ﷻ (۱) چې اول يې عمل نوشته سي يعني چې نيکو کار به وي او که به بد کرداره وي. (۲) اجل يې نوشته سي يعني که طبعي وي او که اخترامي حسب علمه تعالى (۳) رزق نوشته سي يعني فقير او مسكين به وي او که به غني او كرو ړپتي پيدا ل به وي (۴) سعيد يعني نېکبخته مسلمان به وي او که به شقي بدبخته وي يعني کافر. وروسته بيا روح پکښي پوه سي يعني ژوندی انسان تر يا ښځه وګرځي الى اخير الحديث بطوله.

ثُمَّ اَنْتُمْ تَمْتَرُوْنَ ۝

**پوه سه:** چې كلمه د "ثم" لپاره د استبعاد ده يعني وروسته تر دې چې تاسي ته ښکاره سوه چې خدای ﷻ خالق ستاسي دی او خالق ستاسي د اصولو دی، او تاسي ژوندي ساتي تر پوره والي پورې د اجل. نو بايد سړی پوه سي چې ددا سي مقتدر خدای ﷻ د قضا او علمه څخه هيڅ شی خارج نه دی نو لکه اول پر پيدائښت

ستاسي چي قدرت درلودی پر ستاسي پر اعاده په ورځ د قیامت کي هم قادر دی، ولیس اول الخلق باهون علیه من الاعادة نو سره سره ددې معلوماتو چي تاسي ته حاصل سوه بیا هم تاسي ایها المشرکون شک کوئ په بعث بعد الموت کي دا ډېره بعیده عقیده ده ستاسي.

**پوه سه:** چي له عائشي رضي الله عنها څخه روایت دی قالت قال رسول الله ﷺ ستة لعنهم ولعن الله وکل نبي مجاب" د سیدتنا عایشي رضي الله عنها څخه روایت دی دې وویل چي رسول الله ﷺ وویل شپږ قسمه خلګ دي چي ما لعنت پر ویلی دی او خدای پاک هم لعنت پر کړی دی او هر نبي چي مجاب الدعوة وي لعنت پر ویلی دی "الزائد في کتاب الله" اول هغه سړی دی چي په قرآن کي چي کتاب الله دی زیاتوب وکړي.

**پوه سه:** چي زائد في کتاب الله روافض دي چي قرآن مبارک چي دېرش جز دی دوی نور لس پر بالا کړي دي، او دوی وایي چي دا لس حضرت عثمان رضي الله عنه څني ساقط کړي دي. او دوی وایي چي سورة احزاب دومره اوږد و لکه سورة البقره، نور عثمان رضي الله عنه څني ساقط کړی او موجوده سورة احزاب یې پرېښو.

**درویش وایي:** چي لعنهم الله کیف یقولون هذا، او سره ددې چي جمع د قرآن اول په خلافت کي د ابوبکر رضي الله عنه سوې ده په مشوره د ټولو صحابه کرامو رضي الله عنهم او بیا تجدید د جمع د قرآن په خلافت کي د عثمان رضي الله عنه سوی دی په حضور کي د موجودین صحابه کرامو رضي الله عنهم، نو عقل دا څرنګه قبلوي چي دومره ډېر قرآن لکه دوی چي وایي ساقط کړی او موجوده قرآن په اجماع د قرا د صحابه وو، او د نورو صحابه وو په اجماع تابعینو ثم وثم دغه قرآن مجید چي د ټولي نړی د مسلمانانو له لاسونو او کورونو کي دی، فالروافض کفروا بقولهم هذا بالاجماع" والمکذب بقدر الله" او چي له تقدیر څخه د خیر وشر له جانبه څخه د خدای پاک منکر وي.

**درویش وایي:** چي مکذب د تقدیر د خدای جل جلاله معتزله دي چي دوی خالق د افعالو د بندګانو بندګان بولي بدون مداخلة ارادة الله کما في کتب العقائد "والمتسلط بالجبروت" او چي ځان یې مسلط کړی پر مسلمانانو په زور سره یعني بدون بیعة اهل الحل والعقد.

**درویش وایي:** چي متسلط بالجبروت ظالمان بادشاهان دي او ظالمان رئیس

جمهوران دي "لیعز من اذله الله ویذل من اعزه الله" چي دی عزت ورکړي وهغه چاته چي خدای ﷻ ذلیل کړی وي یعني الفساق والفجار شاربین الخمر الی غیر ذالک اودی ذلیل کړي هغه څوک چي خدای ﷻ عزت ورکړی وي چي علماً حقاني دي او روحانیون اتفاقي دي "والمستحل لحرمة الله" او چي حلال ګڼي هتک د حرمت د خدای ﷻ.

**درویش وایي:** چي دا دله مرجئه بولي چي بندګان مجبور محض بولي نه قدرت او نه کسب بنده ته وایي، نو دا دله په حقیقت کي له ثواب او عقابه څخه د قیامت د ورځي منکر دي، ولي چي د دوی په نیز بندګان لکه جمادات داسي دي خدای ﷻ چي یې پر هره خوا ګېلوي روان دي "والمستحل لعترتي ماحرم الله" او بل هغه څوک دي چي زما د اولاد حرمت نه ساتي.

**پوه سه:** چي اولاد د علیه الصلوٰة والسلام د سیدتنا فاطمي ؓ اولاد دي چي سیدان یې بولي الی یوم القیامة.

**درویش وایي:** چي دا اشاره وقاتلانو ته د حسن او حسین و اولادهما ؓ. او دا دله په نامه د خوارجو یادېږي "بل پرې ښونکوی دی زما د سنت هر سنت چي وي که فعلي وي او که قولي او که حالي وي.

**درویش وایي:** چي چي تارک د سنت نبویه ټوله اهل اهوا دي لکه شیعه ګان وغیرهم او ټوله فساق او فجار رشوت خواره شراب نوشان قمار بازان او د استاذانو بې حرمتي کونکي الی غیر ذالک من اهل الکبائر او هغه کسان چي پر ګناه صغیره بانديي همېشه توب کوي اللهم احفظني من لعن الله ومن لعن رسوله ﷺ امین بفضلک وکرمک.

## وَهُوَ اللَّهُ فِي السَّمَاوَاتِ وَفِي الْأَرْضِ

**پوه سه:** چي د "هو" ضمیر راجع دی و لفظ "الله" ته چي موصوف په صفاتو مذکوره ووسره دی او لفظ "الله" یې خبر دی لکن په اعتبار د معنی وصفي یعني المعبود الحق او "في السمٰوات آه" متعلق دی په لفظ "الله" سره ولي چي د لفظ "الله" څخه مراد معنی وصفي ده نو تعلق د حرف جر پوري صحیح دی، والمعنی خدای ﷻ معبود بالحق دی په اسمانو او مځکه کي یعني مستحق د عبادت دی دی لاغیره کما في آیة اخری وهو الذي في السما آله وفي الارض اله.

**فائده:** دا نه ده لازمه چي خدای ﷻ په اسمانو او مځکه کي معبود دی، نو ده لره

اسمان یا مځکه مکان وي فانه تعالی منزه عن المکان والزمان.
**پوښتنه**: ظاهر ددې آیت خو دادی چې خدای ﷻ په خپله په اسمانو او مځکه کې دی، نو په معبود سره ترجمه تاچې وکړه له دې سببه چې خدای ﷻ لره مکان پیدا نه سي دلیل د نفي د مکان څه دی؟
**ځواب**: قاضي بیضاوي رحمه الله ددې آیت په ترجمه کې صرف دومره ویلي دي چې چونکه خدای ﷻ کامل علم لري په مافي السمٰوات ومافي الارض سره نو ګویا خدای ﷻ پخپله په اسمانو او مځکه کې دی لکن درویش وایي چې په زړه پوري ځواب ددې پوښتني او د اعتبار وړ ځواب او دلیل په نفي د مکان د خدای څخه هغه دی چې امام الحرمین ابو المعالي عبدالملک رحمه الله چې استاذ د امام غزالي رحمه الله هم دی او د عقائدو د اهل السنة والجماعة په باب کې منل سوی لوی امام دی، او په شرح المواقف کې داسې راغلي دي وهو مذهب امام الحرمین. پر دې دلیل دی چې دی لوی امام دی پر نفي د مکان خدای ﷻ لره. او د هغه قصه داده چې امام الحرمین د لوی سرمایه داره سړي میلمه و، نو علماً د هغه وخت او نور د دنیا غټ سرمایه داران چې خبر سوه چې امام الحرمین د فلاني سړي په کور کې میلمه دی سره راغونډ سوه د هغه سړي په کور کې. نو د خبرو په جریان کې یوه سړي د اهل مجلس وویل چې څه دلیل پر نفي د مکان خدای ﷻ لره سته او سره ددې چې خدای ﷻ وایي "الرحمٰن علی العرش استوٰی" یعني دا آیت خو په ظاهره سره مقتضي ددې دی چې د خدای ﷻ مکان عرش دی. نو امام الحرمین ورته وویل چې دلیل په هغه آیت سره دی چې حضرت یونس علیه السلام د ماهي په نس کې وویل "لا اله الا انت سبحانک اني کنت من الظالمین" حاضرین علماً حیران سوه چې ددې آیت او د نفي د مکان د خدای ﷻ څه مناسبت سره سته. او دوی د امام الحرمین څخه ددې دلیل توضیح وغوښتل. امام الحرمین ورته وویل چې دباندي یو مسکین سړی ولاړ دی چې زر درهمه پور پر باندي دی. نو که څوک د هغه پور ادا کړي نو زه به توضیح ددې دلیل درته وکړم. صاحب الضیافة وویل چې دادی زه به زر درهمه و هغه مدیون ته ورکړم هغه زر درهمه و هغه مسکین مدیون ته ورکړه نو امام الحرمین ته یې وویل چې اوس توضیح د دلیل پر نفي د مکان د خدای ﷻ

راته وکړه، نو امام الحرمین وویل چې رسول الله ﷺ چې په شپه د معراج الی ماشاء الله من المرتبة العلیا ته ورسیدی، نو داسې یې د خدای ﷻ مخاطبه وکړه "لااحصی ثناً علیک انت کما اثنیت علی نفسک، او یونس ﷵ چې په تاریکیو کې د دریاب په نس کې د ماهي و داسې یې وویل "لا اله الا انت سبحانک اني کنت من الظالمین" نو علیه الصلوٰة والسلام فوق العرش خدای ﷻ مخاطب کړی په انت سره او یونس ﷵ په قعر البحر په نس کې د ماهي هم خدای ﷻ مخاطب کړی په انت سره. او انت خو خطاب د حضور دی. نو که خدای ﷻ لره مکان علوي یا مکان سفلي وای نو دواړه خطابه به څرنګه صحیح سوي وای فعلم انه لیس له مکان فاثنی علیه اهل المجلس من العلما.

يَعْلَمُ سِرَّكُمْ وَجَهْرَكُمْ وَيَعْلَمُ مَا تَكْسِبُونَ ۝

خبر دی خدای ﷻ په هغه پټو خبرو چې تاسې یې په زړو کې ساتئ، او خبر دی په هغه چې تاسې یې اعلانیه کوئ. او خبر دی خدای ﷻ په هغه کارو چې تاسې یې په اندامو یا په سترګو کوئ لکه نظر بالشهوة ونا محرمي ښځې ته یا په ژبو لکه غیبت، بهتان، دروغ یا په لاسو الی غیر ذالک من المعاصي که د شر کارونه وي لکه مامر او که د خیر کارونه. لکه په ژبو قرآن پاک یا بل ذکر، په غوږو وعظ اوریدل الی غیر من افعال الخیر. والمعنی نو خدای ﷻ په ورځ د قیامت درکړی ان کان خیراً فخیر وان کان شراً فشر. دا جمله دوهم خبر دی د "هو"

**درویش وایي:** چې ژوند د دنیا لویه سرمایه ده کما ورد "الدنیا مزرعة الآخرة" باید دا عزیزه سرمایه په ښوو کارو کې ولګوئ، یو محقق شاعر وایي

حیف باشد که عمر انسانی — چون بهایم بخواب وخور گذرد
آدمی میتواند از کوشش — که از مقام فرشته در گذرد

چنانچه سعدي قدس سره در معراج آنحضرت ﷺ میگوید

چنان گرم در تیه قربت براند — که در سدره جبریل ازو باز ماند
بدو گفت سالار بیت الحرام — که ای حامل وحی برتر خرام
بگفتا که بیروی یالم نماند — اگر یک سر موی بر تر پرم
فروغ تجلی بسوزد پرم

وَمَا تَأْتِيهِم مِّنْ آيَةٍ مِّنْ آيَاتِ رَبِّهِمْ إِلَّا كَانُوا عَنْهَا مُعْرِضِينَ ④

او نه راځي ودوی ته يعني اهل مکه ته يو آيت له آيتو څخه د خدای ﷻ يعني المعجزات الدالة على حقيقة رسالة رسول الله ﷺ وصحت القرآن المنزل عليه مثل انشقاق القمر يعني دوه ځايه کېدل د سپوږمۍ چي دوی يعني ټولو هم وليدله چي څورلسم تاريخ د مياشتي و، قصه د انشقاق القمر دا وه چي د ابو جهل کره دوه يا درې کسه د اهل کتابو مېلمانه راغلي وه او ابو جهل ودوی ته وويل چي په موږ کي يو نفر دی يعني دده خبيث اشاره و عليه الصلوٰة والسلام ته وه، دی وايي چي زه نبي يم او موږ يې سحرگر بولو، نو تاسي خو اهل کتاب ياست نو موږ ته به دا معلومات را نه کړې چي دی اوس رشتيا رسول دی او که جادوگر دی؟ هغو ورته وويل چي موږ يې معلومولای سو که يې ته په موږ وويني، ولي چي موږ ته معلومه ده چي د ساحر سحر پر اسمان اثر نه سي کولای صرف پر مځکه د سحر جادو محصور وي. ابو جهل ورته وويل چي اوس دستي به يې زه په تاسي ووينم، نو څورلسم تاريخ د هغې مياشتي و، ابو جهل ورغلی او عليه الصلوٰة والسلام يې له کوره راوېستی او ورته وه يې ويل چي دا کسان ستاڅخه يوه معجزه غواړي که تا هغه معجزه دوی ته ښکاره کړه زه به هم ايمان راوړم او دوی به هم ايمان راوړي، عليه الصلوٰة والسلام و هغو ته وويل چي تاسي څه غواړئ؟ هغو ورته وويل چي ته اشاره ودې سپوږمۍ ته وکړه چي دوه ځايه سي، يوه حصه د جبل ابي قبيس تر شا ولاړه سي او پاته نيمه حصه د جبل ابي قبيس ودې بلې خوا ته سي او بېرته سره يو ځای سي، په بعض رواياتو کي راغلي دي چي درې واره دا شق القمر مکرر به واقع کېږي. عليه الصلوٰة والسلام په سبابه گوته سره اشاره ورته وکړه، نو سپوږمۍ لکه دوی چي ورته ويلي وه يو وار يا درې واره پر منځ سره پرې سوه او بيا بېرته سره يو ځای سوه. عليه الصلوٰة والسلام وويل اشهدوا او خلگ د مکې اکثره وينې وه او دا موضوع يې وليدله. په روايت د ابن مسعود ﷜ نو هغو دوو يا درو اهل کتابو ايمان راوړی او ملعون ابدي ابو جهل وويل چي د دنيا د ساحرانو سحر پر مځکه چلېږي او د مکې د

ساحر سحر پر اسمان هم وچلېدی روان سو او ایمان یې نه راوړی، او بله معجزه د علیه الصلوٰة والسلام دا وه چي شګو او ډبرو خبرې وکړې، د هغه قصه داسي وه چي ابوجهل په کور کي ناست و او په شګو کي یې لاس واهه، نو دده په زړه کي دا را وګرځېدله چي دا پینځه شپږ شګي به زه په موټ کي پټي ونسم او محمد ته به ووایم که ته رشتیا نبي یې دا زما په موټه کي شی به راوښیې، نو علیه الصلوٰة والسلام یې پیدا کړی او هغه خبره یې ورته وکړه. علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل چي ښوونه خو یې اسانه ده که دغه ستا د لاس شیانو کلمه شهادت ووایه، نو ته ایمان راوړې؟ ابوجهل ورته وویل چي دا به ډېره عجیبه خبره وي چي زما د لاس شی به کلمه شهادت وایي، نو هغو شګو په بلند آواز چي ابو جهل هم واورېدی داسي وویل "اشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمداً رسول الله" ابو جهل هغه شګې وغورځولې او علیه الصلوٰة والسلام ته یې وویل چي پر شګو دي هم سحر تاثیر وکړی الی غیر ذالک من المعجزات الباهرات.

**پوه سه:** چي کلمه د "من" زائده ده حکمت یې استغراق د نفي دی کما تقرر في کتب النحو. او پوره معنا د آیت داده چي نه راځي و اهل مکې ته یو آیت یعني معجزه له معجزاتو څخه د خدای ﷻ مګر نه په داسي حال کي راځي چي کفار د مکې د هغو آیاتو روی ګرداني کوي یعني په مقتضٰی د هغو آیتو عمل نه کوي یعني چي ایمان دي راوړي.

**پوه سه:** چي کلمه د "من" په "من آیات ربهم" کي لپاره د تبعیض ده یعني بعض آیات ربهم.

فَقَدْ كَذَّبُوا بِالْحَقِّ لَمَّا جَاءَهُمْ

نو دوی تکذیب وکړی د حق چي قرآن دی. وقیل بمحمد ﷺ، چي ودوی ته هغه راغلی چي قرآن یا علیه الصلوٰة والسلام دی.

**پوه سه:** چي "فقد کذبوا" تفریع ده د ماقبل فانهم لما اعرضوا عن الآیات کلها کذبوا بالحق الذي جائهم فانه ای الحق من الآیات یعني چي په خپله حق چي قرآن پاک دی هم له معجزاتو څخه و. لقوله تعالی "وان کنتم في ریب مما

نزلنا علی عبدنا فأتوا بسورة مثله﴾.

**تنبیه**: پخپله ذات انور د علیه الصلوٰة والسلام هم معجزه وه، ولې چې دی چې زو کړی ؤ امي ؤ، یعني لم یقرٔ ولم یکتب في زمان الجاهلیة او قوم یې ټوله بت پرستان وه او ده مبارک هرګز له کوچنیوالي بیا تر لوی والي پورې وبت ته سجده نه ده کړې، او قبل النبوة د داسې ښائسته اخلاقو څښتن ؤ چې اهل مکه به دی امین مکه باله، او څونکه بعد النبوة قرآن دده موافق د کتب قدیمه وو سره، نو ځکه قسیسون او احبار او رهبان دده نبوت مانه.

**درویش وایي**: والکلام فیه طویل غایة الطول فاعرضنا عن ایراه کاملاً.

فَسَوْفَ يَأْتِيهِمْ أَنْبَٰٓؤُاْ مَا كَانُواْ بِهِۦ يَسْتَهْزِءُونَ ۝

پس ژر دی چې رابه سي دوی ته یعني کفارو ته د مکې خبرونه د هغه شیانو چې دوی چې په هغه سره بې پسخند واهه، یعني یا په ورځ کې د قیامت او یا په تېز د ظهور او غلبه د اسلام پر شاوخوا د مدینې پر یهودانو باندې او په فتح کې د مکې خبرونه د هغه شیانو چې دوی به په هغه سره پسخند واهه، یعني بعث بعد الموت او یا غلبه او یا ارتفاع د امر د اسلام په بدر کې او یا په نورو غزاوو کې د علیه الصلوٰة والسلام، اللهم انصر الاسلام والمسلمین ودمروا هلک اعدآ الدین من کانوا وحیث کانوا في زوایا الارض آمین.

أَلَمْ يَرَوْاْ كَمْ أَهْلَكْنَا مِن قَبْلِهِم مِّن قَرْنٍ

آیا نه ویني کفار مکه یعني په سفرو کې ددوی وه شام ته چې ددې رؤیت څخه به دوی عبرت اخستی واي.

**پوه سه**: چې "اهلکنا" خبر دی په معنی د کثیراً، او کلمه د "من" زائده ده، ولې چې "اهلکنا" په خپله متعدي دی.

**فائده**: قرن قوم ته وایي چې په یوه زمانه کې سره جمع وي او جمع یې قرون ده کما في قوله علیه الصلوٰة والسلام خیر القروني قرني، یعني هغه کسان چې د ماسره یو ځای ه ژوند کې، اقول ضعیفه په اندازه کې د قرن (۱) خلوېښت کاله (۲) لس کاله (۳) شل کاله (۴) دېرش کاله (۵) پینځوس کاله (٦) شپېته

کاله (۷) اوویا کاله (۸) اتیا کاله (۹) یو سل او شل کاله، والاصح چي یو قرن سل کاله دی، ولي چي علیه الصلوٰة والسلام و عبدالله بن بشر المازني ﷺ ته وویل "امک تعیش قرناً" نو هغه د سلو کالو دی.

خواندگان محترم د درویش عمر اوس تخمیناً لس کاله تر قرن اصح کم دی. نو والله اعلم چي دا ارمان به زما خدای جلت قدرته پوره کړي چي دا تفسیر پایه تکمیل ته ورسوم او که زه مړ سم تفسیر به مي یتیم سي.

## مَكَّنّٰهُمْ فِي الْاَرْضِ مَا لَمْ نُمَكِّنْ لَّكُمْ

چي موږ دوی ته قرار ورکړی ؤ په مځکه کي یعني اسباب د معیشت او د ژوندانه چارو پر مخ بیولو کي لوی قدرت مي ورکړی ؤ، هغه شیان چي تاسي ته مي نه وه درکړي، یعني قوة في الابدان او مالونه او نور اسباب د عیش.

**پوه سه:** چي جمله د "مکنا في الارض" مجرور محلاً ده صفت د "قرن" ده او ضمیر د "هم" چي جمع راوړي که څه هم راجع و "قرن" ته دی په اعتبار د معنی د "قرن"

**پوښتنه:** په اول کي خدای پاک "مکناهم" په خپله متعدي کړی ومفعول ته چي "هم" دی، او په دې بل ځای کي یې متعدي کړی په حرف جر سره؟

**ځواب:** چونکه "مکنا" د تمکین مشتق دی چي باب د تفعیل دی او متعدي بنفسه دی، نو اول عبارت پر خپل ظاهر دی او په دوهم لام د تقویه د عمل دی، او دا بل ځواب چي دوهم که پر تعدیه وویل سي، نو څو لفظ یې داسي راتلی "مالم نمکنکم" او دا لفظ پر ژبه دروند ؤ ځکه یې لام ورسره زیات کړی، او روح البیان حرف جر محذوف بولي ای مکنا لهم، نو دده په نیز باب د تفعیل دلته لازمي دی لانه قد یجئ لازماً کما في الشافیة.

**پوه سه:** چي کلمه د ما موصوفه ده په معنی د شیاً ده منصوب ده چي معفول ثاني دی د مکناهم په تضمین سره د معنا د اعطیناهم چي متعدي و مفعوله ته دی او یا مفعول مطلق دی فالمعنی مکناهم شیئاً من التمکین لم نمکن لکم مثلهم، او ابن عباس ﷺ ددې آیت ترجمه داسي کړې ده امهلناهم في العمر مالم نعمرکم مثلهم مثل قوم عاد و ثمود.

**نکته**: خدای ﷻ اهل مکه ته په صیغه د غیبت وویل یعني الم یروا ای کفار مکه لعدم اهلیته لخطاب الملک العزیز الجبار، او چي محمد ﷺ په دوی کي ؤ نو یې خطاب ورته وکړی یعني مالم نمکن لکم.

وَأَرْسَلْنَا السَّمَاءَ عَلَيْهِم مِّدْرَارًا وَجَعَلْنَا الْأَنْهَارَ تَجْرِي مِن تَحْتِهِمْ

او موږ راواستاوه باران پر دوی پی درپی او موږ وګرځولې ولې چي بهېږي لاندي تر دوی یعني لاندي تر درختو او د کورو ددوی.

**پوه سه**: چي "وارسلنا آه" عطف دی پر "مکنا" باندي، او "السما" په معنا د باران دی، د "مدرارا" وزن مفعال دی، ابن عباس ﷺ یې ترجمه په متتابع سره کړې ده لکه درویش چي وکړه، او مظهري ﷫ په مشتق د "دَر" په معنی د شیدو بولي، او په شیدو کي خیر کثیر دی د عربو بلکې شرعاً هم شیدې بنه غذایي خواړه دي، نو معنی د مدرارا یې داسي کړې ده کثیر النفع چي په اوقاتو د حاجت د خلګو وي، یعني ددوی د زراعت او باغو او کارېږو او چنو پکښي فایده وي، او ابن الشیخ وایي چي مدرارا صیغه د مبالغې ده یعني کثیر الدوره یعني د متتابع ورکوي لکه ابن عباس چي ؤ او درویش یې هم ترجمه په پی درپی سره وکړه.

فَأَهْلَكْنَاهُم بِذُنُوبِهِمْ

نو موږ دوی هلاک کړه په سبب د ګنهو ددوی یعني چي دوی ته به خدای ﷻ رسولان ور ولېږل او دوی به یې تکذیب وکړی، او هغه ددوی بنو باغو او سرایو او بنه ژوند چي خدای ﷻ دمخه تر ارسال الرسل او د دوی د تکذیب ودوی ته ورکړی فائده ونه کړه او نه یې عذاب د خدای ﷻ له دوی څخه دفعه کړی.

وَأَنشَأْنَا مِن بَعْدِهِمْ قَرْنًا آخَرِينَ ⓺

او موږ پیدا کړي دي وروسته تر دوی بل قرن خلګ لکه دوی چي تر دزی دمخه وه.

**فانده**: ددې آیاتو مطلب دادی چي قریش پر علیه الصلوٰة والسلام ایمان نه راوړي، نو دوی به هم لکه دمخه قرون خدای ﷻ هلاک کړي.

**فانده**: په دې آیتو کي تنبیه ده پر کمال قدرت د جل سلطانه په دې معنی چي

اهلاک د قرونو د خدای ﷻ وه سلطنت ته کوم تاوان نه دی رسولی، چه خوش گفت آنکه میگوید.

پند گیر از مصائب دیگران تانگیرند دیگران زتو پند
نرود سوی دانه مرغ پران جودیگر مرغ بیند اندر بند

ودیگر محقق گفته دربیان بجا آوردن شکر نعمت الهي.

شکر نعمت نعمتت افزون کند کفر نعمتت نعمت از کفت بیرون کند

او دا معنا ددې قول د خدای ﷻ ولئن شكرتم لازيدنكم ولئن كفرتم ان عذابي لشديد. دیگر محقق میگوید

دریغ آدمی زاده پر محل چوباشد چو انعام بل هم اضل

ددې بيت معنا داده چي څوک چي د انبیا علیهم السلام څخه انکار کوي او د الهاماتو څخه د اهل الله او د کراماتو څخه د اولیا الله هم روی گرداني کوي په سبب د مغروری په شهواتو د دنیا او کوټیو او بنگلو او په درهمو او د دینارو سره، نو دغه خلگ لکه چارپایان بلکې تر هغو هم اضل دي، ولي چي چارپایانو انکار د حق نه دی کړی او دوی وکړی.

**یوه سه:** چي کلبي او مقاتل وایي چي نضر بن الحارث، عبدالله بن ابي امية او نوفل بن خويلد يوه ورځ و عليه الصلوة والسلام ته چي دی په مکه مکرمه کي و او ورته وه یې ویل چي اې محمده موږ پر تا ایمان نه راوړو تر هغو پوري چي ته یو کتاب مجموعه له اسمان څخه چي څلور ملکې به ورسره وي، او هغه ملکي به زموږ په حضور کي شاهدي ادا کوي چي دا کتاب من عند الله دی او ستا لپاره شاهدي ادا کوي چي دی د خدای رسول دی، نو خدای ﷻ دا آت ددوی په رد کي نازل کړی.

وَلَوْ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ كِتَٰبًا فِى قِرْطَاسٍ فَلَمَسُوهُ بِأَيْدِيهِمْ لَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟ إِنْ هَٰذَآ إِلَّا سِحْرٌ مُّبِينٌ ۝

که موږ نازل کړو پر تا باندي لکه دوی چي غواړي یو کتاب یعني لیکلی پر کاغذ او دوی مسه کړي هغه مکتوب.

**یوه سه**: چي خدای ﷻ مس بالید ذکر کړی او داسي یې نه وویل چي دوی یې په سترګو ووینې له دې جهته چي په ملموس کي هیڅ وجه د سحر نه جاري کېږي بخلاف المبصر ولي چي دوی بیا وایي چي زموږ چشم یې وکړه، هر آئینه وایي به هغه کسان چي دوی کفر مختاره کړی دی نه دی دغه مکتوب مګر سحر دی ښکاره د تعنت او عناد له کبله.

**وَقَالُوا لَوْلَا أُنزِلَ عَلَيْهِ مَلَكٌ**

او وایي کفار د قریشو ولي نازلول کېږي پر محمد باندي یوه ملکه یعني چي زموږ سره خبري وکړي چي محمد زما نبي دی. لکه په بل ځای کي د قرآن ورته مضمون ددوی د قول خدای ﷻ داسي رانقل کړی لولا انزل معه ملک فیکون معه نذیراً.

**وَلَوْ أَنزَلْنَا مَلَكًا لَّقُضِيَ الْأَمْرُ ثُمَّ لَا يُنظَرُونَ ۝**

که موږ نازله کړو ملکه یعني دده سره لکه دوی چي یې طلب کوي، نو به فیصله د اهلاک ددوی سوی وای د خدای ﷻ له خوا، ولي عادت الهي دادی قدیماً ر دې جاري دی چي موافق د غوښتني د کافرانو خدای ﷻ معجزه نازل کړي او بیا هم دوی ایمان نه راوړي هغه کافران خدای ﷻ هلاکوي کما في ناقة صالح ؑ، نو وروسته تر نزول د ملکي دوی یعني کفارو ته د قریشو مهلت نه ورکول کېږي طرفة العین یعني یو چشم زدن، او مجاهد ؒ وایي چي د قضی الامر معنی داده چي قیامت به قائمېږي او ضحاک وایي چي ملکه که په خپل صورت ملکي ځان ښکاره کړی وای دوی به له بېري څخه مړه سوي وای.

**درویش وایي**: چي هغه اوله معنا ډېره زیبا ده اود اکثرو مفسرینو مختاره ده.

**وَلَوْ جَعَلْنَاهُ مَلَكًا لَّجَعَلْنَاهُ رَجُلًا**

که موږ ګرځولای مطلوب ددوی ملکه، یعني ملکه به مو په صورت د یو سړي ورته را استولې وای، لکه په ډېر اوقاتو کي به جبرائیل ؑ په صورت د دحیة بن خلیفه کلبي و علیه الصلوٰة والسلام ته راتلی او خبري او وحي به یې ورته راوړلې کما ورد في حدیث عائشة ؓ علی ما رواه البخاري.

**حکمت**: قوة بشري ددې توان او طاقت نه لري چي ملکه په خپل صورت ملکي کي ووېني بلکې بعض افراد د انبياً عليهم السلام چي گاهي گاهي يې ملکې په خپل صورت ملکي کي ليدلي د ه هغه په سبب د قوت قدسي ددوی، نو کفار کله توان د ملکي د ليدلو لري په خپل صورت ملکي، نو ځکه خدای ﷻ وويل لجعلناه رجلاً.

## وَلَلَبَسْنَا عَلَيْهِم مَّا يَلْبِسُونَ ﴿٩﴾

او موږ به پوشيده کړی کار پر دوی چي ملکه په صورت بشري کي ورته راغلې وای يعني دوی به په ملکيت د ملکي نه پوهېدلای بلکې ويلای به يې ما هذا الا بشر مثلکم لکه دوی چي امر د نبي ﷺ پوشيده کړی ؤ سره ددې چي امر او معامله د رسالت د عليه الصلوٰة والسلام خو اظهر من الشمس وه په سبب د معجزاتو ظاهراتو متکاثراتو متواليا تو. نو اوس خدای ﷻ د عليه الصلوٰة والسلام د تسلي لپاره دا آيت نازل کړی.

## وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّن قَبْلِكَ

**پوه سه**: چي لام موطئه د قسم محذوف دی او کلمه د قد لپاره د تحقيق ده او تنوين په رسلٍ کي لپاره د تعظيم او تکثير دی او په من قبلک کي مضاف محذوف دی ای قبل زمانک. ومعنى الآية والله په تحقيق پسخند وهل سوی دی لکه ستا قوم چي په تا پسخند وهي په نورو رسلانو چي په عدد ډېر وه او صاحبان د عظمت وه. نو ته ډېر غم مه کوه لان البلية اذا عمت هانت.

## فَحَاقَ بِالَّذِينَ سَخِرُوا مِنْهُم مَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ ﴿١٠﴾

نو احاطه وکړه او يا نازل سوه پر هغو کسانو چي مسخرې به يې کولې له دوی څخه هغه څه چي وه به دوی يعني کافران په هغه سره پسخند به يې واهه يعني هغه عذاب الٰهي چي انبياً عليهم السلام به دوی په ېېرول که ايمان نه راوړئ پر نازل سو يعني ستا پر قوم به هم احاطه وکړي او نازل به سي هغه شی چي ستا قوم په هغه پسخند واهه من العذاب الالٰهي.

**درویش وايي**: چې هغه عذاب چې کفارو د قریشو به پسخند په واهه پر دوی په ورځ د بدر نازله سوه چې ددوی اوویا غټ سرکوزان په شمول د ابوجهل مردار سوه. او اوویا کسه په حصارت ونیول سول ثم وثم.

**یوه سه**: چې کلمه د ما موصوله ده او د به ضمیر راجع ودغه موصوله ته دی.

**فانده**: یوه سه! چې استهزا په انبیا علیهم السلام ره او په اولیا الله د گمراهانو او د سرکښانو عادت دی او دا عادت جاري في کل زمان دی په حدیث شریف کې راغلي دي چې یوه ورځ علیه الصلوٰة والسلام په مسجد حرام کې ناست ؤ یو څو کسان د فقراؤ د مسلمانانو ورسره ناست وه بلال، صهیب، عمار بن یاسر وغیرهم ﷺ، نو ابو جهل سره د یو څو کسانو تېرېدی ابو جهل وویل یزعم محمد ان هؤلاء ملوک الجنة، نو یې سره وخندل د پسخند پر دول. نو خدای ﷻ وه ابوجهل ته او سره د نورو گمراهانو دده سره یعنې ابو جهل وارو ته جزا دده استهزا د بدر پر میدان اوویا کسو ته ورکړه. وفي ذالک عبرة لاولی الابصار. مثنوي مولوي معنوي.

نی ترا حفظ زبان زا زار کس   نی نظر کردن بعبرت پیش وپس
پیش چه بود یامرگ ونزع خویش   پس چه باشد مردن یاران زپیش

په صحیح حدیث کې دي چې په وخت کې د اخیري ناجوړی رسول الله ﷺ وه صحابه وو ﷺ ته داسې ویل وکړه چې ماوتاسې ته دوه نصیحت کونکي پرې ایښي دي یو ناطق یعنې خبري کوي او تاسې یې اورئ. او بل صامت یعنې پټه خوله ناست دی مگر وخلګو ته نصیحت کوي. ناطق قرآن کریم دی او صامت مرگ دی.

**حکایت**: یو شیعه ؤ چې ابن هیلان یې باله په حق کې د صحابه کرامو ﷺ داسې ناوړه او د گمراهي خبري کولې چې پر بیان یې قلم د درویش دلاوري نه سي کولای. یوه ورځ ده په کور کې دېوال نړاوه دېوال پر را ایله سو او دی تر دېوال لاندې مړ سو. نو قریبانو دی په جنت البقیع کې چې عمومي هدیره د علیه الصلوٰة والسلام له وخته څخه ده ښخ کړی. دوهمه ورځ چې یې قریبان ورغله نو ابن هیلان په هغه قبر کې چې دوی پکښې ښخ کړی ؤ نه ؤ. او نه یې

هغه خاوري وي، چي وروسته تر دفن دده قريبانو پر قبر اچولي وي او د قبر خښتي پر خپل ځای وي لکن مړی نه ؤ يعني مړی کښل سوی ؤ حتی چي هره ورځ به دپر مسلمانان د عبرت لپاره دي قبر ته ورتله چي يو له هغو څخه نو موړی سړی قاضي جمال الدين رحمه الله ؤ. او دا سلسله چي خلګو به واوربدله د لېري ځايو څخه به ورتله وکان هذا جزا سبه واستهزائه باصحاب رسول الله ﷺ ورضي الله تعالى عنهم اجمعين.

**درویش وایي:** چي دا حکایت امام سخاوي رحمه الله دده په کتاب المقاصد الحسنة کي راوړی دی.

قُلْ سِيرُوا فِي الْأَرْضِ ثُمَّ انظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِينَ ﴿١١﴾

ته ووايه اې محمده وکفارو ته د مکې تاسي سفر وکړئ يعني په فکر او عبرت په مځکه کي للتجارة وغيرها بيا نو وګورئ يعني چي سفر کي د اقوام مهلکه هلاک الاستيصال واردسي چي څرنګه سوی دی اخير کار د مکذبينو د رسولانو فاعتبروا منه چي ستاسي اخير کار به هم داغسي وي ان لم يؤمنوا بمحمد ﷺ او همېشه توب وکړئ پر کفر.

**پوه سه:** چي اخير کار د امم ماضيه لکه قوم لوط عليه السلام وثمود قوم صالح عليه السلام الى غيرهم چي کفر ددوی او تکذيب د انبياً دوی ته په ميراث پرېښو هلاک استيصال د دوی في الدنيا والعذاب الاليم في الآخرة وذالک هو الخسران المبين.

**درویش وایي:** چي ټولو مفسرينو دلته يو سوال مطرح کړی دی چي دا آيت د قرآن کريم په بل ځای کي داسي راغلی دی "قل سيروا في الارض فانظروا کيف کان عاقبة المکذبين" او په موجوده آيت کي د "ثم" راوړل، نو سوال دادی چي نحويين وايي چي کلمه د فا د تعقيب بلا مهلة ده او ثم لپاره د تراخي دی فکيف التوفيق بين الفا ثم په يوه موضوع کي ده چي په کيفيت د حال د مکذبينو دی، قاضي بيضاوي رحمه الله او صاحب المدارک داسي ځواب ورکړی حاصل يې دادی چي ايجاب د سير في الارض په هغ آيت کي چي سيروا في الارض فانظروا ﴿ صرف

لپاره د نظر دی په حال او عاقبت کي د مکذبینو ، او په دې آیت "قل سیروا في الارض ثم انظروا آه" بلکې معنی ددې آیت داده چي سیروا في الارض لاجل التجارة مثلاً چي مباح دی او نظر وکړئ په عاقبت کي د مکذبینو چي واجب دی، نو په لفظ کي "ثم" تنبیه پر دې ده چي د مباح او د واجب ډېر فرق سته او صاحب د روح البیان داسي ځواب ورکړی دی که کلمه د "ثم" للتفاوت بین الواجبین، نو دده په نیز سیر في الارض هم واجب دی لکونه وسیلة الی النظر والتفکر بالعبرة في احوال المکذبین کیف هلکوا بعذاب الاستیصال الذي هو الواجب.

**درویش وایي:** چي دا نبأ پر دې ده چي علماً ټوله وایي چي مقدمه د واجب چي دلته تفکر دی في حال المکذبین ددې مقدمه سیر في الارض دی، نو سیر في الارض هم واجب دی، او مظهري داسي ځواب ورکړی دی چي سیر یې ټولو مساکنو کي د مکذبینو من الامم السابقة وخو متراخي دی نظر و ابتداً ته سیر نو اول فکر وهل په حال کي د مکذبینو په اول کي د اجزاً د سیر بلا مهلت مرتبېږي فاورد الفاً لذالک، او تر پایه پوري سیر خو په ډېر مهلت سره راځي، نو تفکر په حال کي د مکذبینو جمیعاً په مهلت سره حاصلېږي، نو له دې وجهي یې "ثم" راوړی.

**درویش وایي:** چي ددې سخت سوال د جوابو بېل بېل د دغو نوموړو د عربي تفسیرو ځخه د هر طالب او امام د طاقت ځخه وتلی کار دی، مثل انجیر خوردن نه کار هر مرغی است.

**فائده:** ددې مثل معنا داده چي په ډېرو کتابو کي راځي چي په مرغانو کي وي داسي مرغه سته چي په صورت هم کوچنی دی لکن خدای ﷻ په خپل قدرت سره دونده لوی ستوني ورکړی دی چي انځیر ته ور حمله کړي پوره انځیر په یوه پلا تېروي، او نور مرغان لږ لږ د انځیر داني پرې کوي او خوري یې په یوه پلا یې نه سي تېرولای فتفکر في هذا المثل او د ممثل به سره ربط ورکړه.

**درویش وایي:** دا کارونه نو د توفیق دي ..... نه خوار عبید الله ضعیف دی.

## قُلْ لِمَنْ مَّا فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

ووایه اې محمده لپاره د الزام د خصم چې کفار د مکې وه، هغه چا لره دي هغه شیان چې په اسمانو او مځکه کې دي، ذوی العقول دي او که غیر ذوی العقول دي په اسمانو کې ملکې او ستورې دي، او په مځکه کې انسانان او جنیان دي او نور حیوانات او نباتات او معدنیات دي، یعنې دا شیان د چا مخلوق، مملوک او عبید دي.

## قُلْ لِّلّٰهِ

ته ووایه چې د خدای ﷻ دي، ولې چې پر دې خبره مشرکان هم د اسلام سره موافق دي.

**درویش وایي:** چې ددې خبرې ځواب په غیر الله سره هیڅ څوک نه سي ورکولای بې له دهریانو چې هغه عالم لره صانع نه وایي.

**فائده:** کلمه د "مَن" په لمن کې استفهامیه ده او جار ومجرور خبر دی او مبتدأ یې ما في السمٰوات ده.

## كَتَبَ عَلٰى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ

**پوه سه:** چې دا جمله مستانفه ده او تر امر لاندې داخله ده یعنې "قل"، دا جمله ددې لپاره خدای پاک راوړه چې خدای مهربان دی پر بندګانو، ولې چې ژر عذاب نه پر لازموي بلکې مهلت ورکوي چې دوی په خپلو زړو کې فکر وواهي او د خدای ﷻ د توحید او د قدرت آیات په ځانو او آفاقو کې ملاحظه کې او د رسولانو په معجوز کې هم په نظر د پند اخستلو وکړي نه د تعنت او عناد په سترګو وګوري، او بل رحمت د خدای ﷻ دادی چې د بندګانو توبه او رجوع د کفر او معصیت څخه قبلوي.

**پوه سه:** چې د "كتب على نفسه آه" معنا داده چې خدای ﷻ رحمت پر ځان لازم کړی او واجب کړی دی لکن تفضلاً واحساناً والا فلا يجب على الله شئ في الحقيقة لا بالوجوب الشرعي ولا بالوجوب العقلي.

**فائده**: خدای ﷻ چي په خپل ذات ځخه په نفس سره وکړی، نو د هغو کسانو قول چي وايي اطلاق د نفس پر خدای ﷻ ناروا دی شرعاً مردود سو، بغوي رحمه الله وايي چي ابو هريرة رضي الله عنه له عليه الصلوٰة والسلام ځخه داسي روايت کړی دی قال رسول الله ﷺ لما قضى الله الخلق كتب كتاباً فهو عنده فوق العرش ان رحمتي غلبت غضبي وفي رواية ان رحمتي سبقت غضبي.

**ترجمه**: خدای ﷻ چي اراده وکړه و پيدا کولو ته د مخلوق، نو يو کتاب يې وليکی يعني ملکې يې په کتابت سره امر کړې چي هغه کتاب په نبز د خدای ﷻ پر عرش سربېره دی، او په هغه کتاب کي يې دا نوشته کړه چي زما رحمت زما پر غضب غالب دی، او په بل روايت کي زما رحمت زما تر غضب وړاندي دی، او په بل حديث کي چي روايت يې مسلم کړی دی له ابو هريره رضي الله عنه ځخه چي رسول الله ﷺ وفرمايل چي خدای پاک خپل رحمت سل حصې کړی دی يوه حصه يې پر انس او جن او حيواناتو او بهائمو وغير ذالک ووېشل، نو په هغه يوه رحمت دوی يو پر بل مهرباني او تعاطف کوي، او د هغه رحمت له کبله احوش پر خپلو شفقت کوي او ما يحتاج الله وربرابروي، او نهه نيوي (٩٩) حصې د خپل رحمت يې ځنډولي دي چي په هغو برخو سره رحم کوي پر خپلو بندګانو يعني ايمان والا وو په ورځ د قيامت.

**درويش وايي**: چي دا حديث ډېر د اميد حديث دی لپاره د مؤمنانو ولي چي ددې دينا رحمت کافرانو، وحوش، طيور، بهائم، انس او جن ټولو ته شامل سو، نو نه نوي (٩٩) رحمته د رب العزت په ورځ د قيامت چي کفره او وحوش وغيرها له منځه ولاړ سي او يوازي مؤمنان پاته سي ځونده مؤمنان به په بره کي ونيسي او شفاعت قبول د انبياً عليهم السلام او د اولياً الله الکرام والملائکة هم د هغه برخه ده.

**درويش وايي**: وقد ساء من هذا الحديث على مجرد التمثيل بمجرد العقلية الا دلائل العقلية، وقال قلت لعل المراد بعدد المائة التمثيل آه. له عمر بن الخطاب رضي الله عنه ځخه روايت دی ته مينځياني چي سبي يې بولي راوستول سي يوه

ښځه وه له سبې څخه چې شدې یې تر تیو تویدلې په نورو سبیو کې څغاستله هر کوچنی چې په یې پیدا کړی د خپل تیو شیدې به یې ورکولې او په نس پوري به یې ټینګ نیولی و، درویش وایې چې ددې ښځې زوی یا لور په سبې کې نه وه راغلی، نو ځکه دې داسې بد حالې کوله او د سبې اولادونه به یې وتې ته اچول او خپل د عیال مینه او محبت یې په ماتاوه، نو علیه الصلوٰة والسلام خلګو یعنې صحابه کرامو ﷺ ته وویل چې ستاسې وزړه ته لوېږي چې ددغې ښځې خپل اولاد موجود وای دې به اور ته اچولی وای؟ قلنا لا، نو علیه الصلوٰة والسلام وویل "لله ارحم بعباده من هذه بولدها" انتهی الحدیث باختصار یسیر.

لَيَجْمَعَنَّكُمْ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ لَا رَيْبَ فِيهِ

**پوه سه:** چې لام موطئه د قسم محذوف دی ای والله لیجمعنکم، زه به تاسې سره جمع کړم.

**فائده:** بعض مفسران ددې آیت ترجمه داسې کوي چې زه به تاسې وساتم په قبرو کې او د الی یوم القیامة متعلق محذوف بولي، یعنې مبعوثین الی یوم القیامة یعنې هورې به تاسې ته جزاً د شرک او معاصي درکړې که څه هم په دنیا کې یې تاسې ته مهلت درکړی و، په سبب د خپل رحمت ولم یعاجلکم في الدنیا بالعقوبة هغه ورځ د قیامت چې په هغې هیڅ شک نسته.

**درویش وایې:** چې پر دې ترجمه دا آیت مخصوص په کافرانو مشرکانو سره دی، او بعض مفسران وایې چې کلمه د الی په معنا د في دی، نو معنی د آیت چې زه به سره جمع کړم په ورځ د قیامت لیجازیکم باعمالکم الحسنة بالجنة واعمالکم السیئة من الکفر والمعاصي بالنار.

**درویش وایې:** چې پر دې تقدیر دا آیت عام دی مؤمنانو او کافرانو لره ټولو ته شامل دی والله تعالی اعلم بمراده في کتابه.

**درویش وایې:** چې دا دعا د شیخ اکبر والمسک الاذفر والکبریت الاحمر محي الدین ابن العربي قدس سره اللهم ارحمنا اذا عرق الجبین وکثر الانین، وبکی علینا الحبیب ویئس منا الطبیب اللهم ارحمنا اذا وارانا التراب وودعنا

الاحباب وفارقنا النعيم وانقطع النسيم، اللهم ارحمنا اذا نسي اسمنا وبلى جسمنا واندرس قبرنا، وانطوٰی ذکرنا، اللهم ارحمنا يوم تبلٰی السرائر وتبدی الضمائر وتنشر الدواوين وتحشر الموازين، اللهم يا حي يا قيوم يا رحمٰن يا رحيم برحمتک نستعين.

**درويش وايي:** چي دا مناجات د شيخ اکبر مناجات شريفه ومناجات لطيفه مقبولة دي برحمته تعالى التامة ماترک فيها خير الدنيا والآخرة.

ٱلَّذِينَ خَسِرُوٓا۟ أَنفُسَهُمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿١٢﴾

هغه کسان چي په تاوان کي يې اچولي دي خپل ځانونه په سبب د شرک او د شائع کولو د راس المال د فطرة سليمة، او عقل سليم ددې سبب چي فطرت سليمه او عقل سليم بايد دوی سبب د ايمان گرځولی وای، لکن دوی شرک او کفر مختاره کړی، نو هغه يې د لاسه ورکړی وذالک هو الخسران المبين، او په رحمت عامه د خدای ﷻ چي سبب به د جنت گرځېدای عذاب او عقوبت د خدای يې رانيوی ابداً ابداً، وذالک الاستبدال خسران اخير دی ددوی.

**يوه سه:** چي موصول مبتدا ده او جمله د فهم لايؤمنون يې خبر دی وايراد الفا لتضمن الموصول معنى الشرط، ولي چي خسران مذکور سبب د عدم ايمان دی د دوی.

وَلَهُۥ مَا سَكَنَ فِى ٱلَّيْلِ وَٱلنَّهَارِ ۚ وَهُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْعَلِيمُ ﴿١٣﴾

او خدای ﷻ لره دي ملکاً وخلقاً وعبيداً هغه شيان چي استوگنه لري نو سکن د سکنٰی څخه مشتق دی.

**سوال:** د سکنٰی اضافت خو د مکان ته کېږي کما في قوله تعالى وسکنتم في مساکن الذين ظلموا انفسهم. او دلته يې وليل او نهار ته نسبت وسو چي زمان دی؟

**ځواب:** دا نسبت مجاز دی والمراد مايمر عليه الليل والنهار او يا له سکون څخه مشتق دی والمعنى ماسکن وتحرک في الليل والنهار.

**سوال:** د سکون زمان خو شپه ده ورځ د حرکت لپاره ده؟

**خواب:** نعم لکن چي اکتفا یې له یوه ضد څخه په بل وکړه کما في قوله تعالی سرابیل تقیکم الحر. یعني والبرد. روی کفار مکة وعلیه الصلوٰة والسلام ته راغله او ورته وه یې ویل یا محمد ﷺ موږ پوهېږو ته باعثه کړی یې پر دعوه د رسالت او دعوت د توحید د خدای ﷻ فقر او مسکنت. نو موږ به په قبیلو کي د عربو تاته چنده وکړو چي د ټولو مکې والو به ته لوی غني وګرځې ته دا دعوت د خدای ﷻ د توحید پرېږده او د پلار او نیکه ګانو و دین ته رجوع وکړه. فانزل الله تعالی هذه الآیة "وله ماسکن في اللیل والنهار" نو معنا د آیت داده چي مستقر شیان په شپه او ورځ کي خاصة لله دي نو خدای ﷻ اراده وکړي چي خپل رسول اغني الناس وګرځوي، نو هغه خدای ﷻ کولای سي. نو دا ستاسي دعوه ستاسي غلطي ده چي دی د فقر له کبله د رسالت او دعوت توحید دعوه په مخه را اخستي ده، بلکې ده پخپله تر غنٰی د دنیا فقر او مسکنت اختیاراً خوښ کړی دی کما جا في الحدیث ایضاً.

**پوښتنه:** خدای ﷻ په هر ځای کي د قرآن کریم لیل تر نهار دمخه راوړی دی حکمت یې څه دی؟

**خواب:** شپه لپاره د خدمت او عبادت د مولا ده بدون الریا، او ورځ لپاره د خدمت د اهل وعیال ده چي مخلوق دی که څه هم په ورځ کي عبادت د مولی سته لکن د ریا او سمعې څخه به خالي نه وي اللهم الالخواص الاولیا الله تعالی او مناجات د انبیا علیهم السلام ټولـه د شپې سوي دي کمناجات موسٰی علیه السلام ومعراج النبي ﷺ وهکذا خواص اولیا الله تعالی ولیلة القدر چي تر زر میاشتي خدای ﷻ خیر بللي ده هم شپه ده هي حتی مطلع الفجر ولیس في الایام مثل لیلة القدر اصلاً. اولیا الله وایي چي هغه څوک چي په سر د شپې او په خوند د مناجات د مولی سره او په حلات د یوازي والي د مولی جل سلطانه خبر نه وي، نو هغوته ورځ محبوبه ده لکه عوام الناس او علما د رسومو، حافظ شیرازي وایي

هر گنج سعادت که او داد به حافظ    ازیمن دعایی وورد سحری بود

قُلْ أَغَيْرَ اللَّهِ أَتَّخِذُ وَلِيًّا فَاطِرِ السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضِ وَهُوَ يُطْعِمُ وَلَا يُطْعَمُ

ته ووایه اې محمده ﷺ و قریشو او نورو خلګو ته چي آیا زه بې له خدایه

خپل ولي او معبود گرځوم.

**يوه سه**: چي دا استفهام انكاري دى چي زه داسي نه كوم چي پيدا كونكى د كتم څخه د عدم د ټوله اسمانو او مځكه يعني مع مافيهما من عجائب القدرة التي لاينتهى الى علمها عقول العقلاً زه دي ولي او معبود وگرځوم.

**يوه سه**: چي اضافت د فاطر و سمٰوات او ارض ته اضافت معنوي دى. نو ځكه صفت د لفظ "الله" چي معرفه ده واقع سو.

**سوال**: نحاة خوايي چي اضافت د صفت و معمول ته لفظي دى د تعريف فائده نه كوي؟

**ځواب**: هغه خو هلته ده چي صفت په معنى د حال يا استقبال وي نو اضافت يې لفظي د تعريف نه فائده كوي. دلته خو صفت چي فاطر دى په معنى د ماضي دى نو اضافت يې معنوي دى. او حال دادى چي خداى ﷻ رزق وركوي د رزق محتاجه ته او د ته رزق نه وركول كېږي وتخصيص الطعام لشدة احتياج الناس اليه والا فكل مخلوق عائد اليه تعالى.

قُلْ إِنِّيٓ أُمِرْتُ أَنْ أَكُونَ أَوَّلَ مَنْ أَسْلَمَ وَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿١٤﴾

ووايه اې محمده يعني مشركينو ته د مكې او نورو ته چي زه امر كړل سوى يم د خداى ﷻ له خوا څخه چي زه به اول هغه څوك يم چي اسلام به راوړم، ولي چي نبي خو تر ټوله امت دمخه وي په اسلام راوړلو كي او هر گز ته مه گرځه له مشركينو څخه.

**يوه سه**: چي "لاتكونن" عطف دى پر امرت.

**پوښتنه**: امرت خو اخبار دى او لاتكنن خو انشأ ده نو څرنگه به يې عطف صحيح وي؟

**ځواب**: د "لاتكونن" سره وقيل لي مقدر دى والتقدير وقيل لي لاتوكنن نو داهم جمله خبريه گرځي.

قُلْ إِنِّيٓ أَخَافُ إِنْ عَصَيْتُ رَبِّي عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ ﴿١٥﴾

ته ووايه اې محمده چي په تحقيق زه بېرېږم چي عصيان د خداى ﷻ وكړم

یعني په سبب د شرک بالله له عذاب څخه د ورځي یوې چې د قیامت ورځ ده.

مَنْ يُصْرَفْ عَنْهُ يَوْمَئِذٍ فَقَدْ رَحِمَهُ

**درویش وایي**: چي "من یصرف عنه" بعض قرا په پېښ د یا او په فتح د را وایي یعني پر صیغه د مجهول او ضمیر مستتر د یصرف راجع دی و عذاب ته او ضمیر د عنه راجع دی ومن ته، نو معنا د آیت داده چي له چا څخه چي مصروف سي عذاب په دغه ورځ یعني د قیامت، نو خدای ﷻ پر هغه سړي رحم کړی دی چي نجات له عذاب څخه ورکړي او جنت ورپه نصیب کړي بدون الاستحقاق من العبد بل برحمته تعالی. او بعض قاریان یې په زور د یا او په زبر د را وایي یعني پر صیغه د معلوم، نو پر دې قرائت ضمیر مستتر د یصرف راجع وه ربي ته دی او ضمیر د عنه کما کان راجع دی ومن ته او مفعول د یصرف محذوف دی ای العذاب او یومئذ ظرف دی یصرف او پر دواړه تقدیره من مبتدا ده متضمن معنی لره د شرط ده او فقد رحمه خبر دی ولهذا دخله الفآ.

وَذَٰلِكَ الْفَوْزُ الْمُبِينُ ﴿١٦﴾

اودغه ده کامیابي ښکاره.

**فائده**: مبین خو اسم فاعل د باب د افعال یعني ابان چي د مبین معنا ښکاره کول دي د شي هغه معنی دلته نه ده صحیح نو اهل لغت او اهل تفسیر او اهل صرف ټوله وایي چي باب د ابان گاهي په معنی د مجرد راځي چي بان دی په معنی د ظهر هغه معنا دلته مراد ده.

**فائده**: ددې آیت څخه دا معلومه سوه چي د خول د جنت لازم دی د صرف سره د عذاب او په منځ کي د جنت او دوږخ بل منزل نسته کما یقوله المعتزلة.

وَإِن يَمْسَسْكَ اللَّهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهُ إِلَّا هُوَ ۖ وَإِن يَمْسَسْكَ بِخَيْرٍ فَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿١٧﴾

که تاته ورسوي خدای ﷻ یو ضرر لکه فقر، مرض او عذاب، نو پر دفعه د ضرر بل څوک قدرت نه لري بې له خدای ﷻ والا یلزم عجزه تعالی وهو محال

منافي للالوهية، او که تاته ورسوي خير لکه صحت د بدن، غنی، والاولاد وغيرها، نو خدای ﷻ پر هر شي قدرت لري يعني څوک يې بيا نه سي درڅخه اخستلای اذ لاراد لفضله. په حديث شريف کي چي روايت يې بغوي کړی دی له ابن عباس رضي الله عنه چي دا حديث روح البيان او مظهري هم نقل کړی دی چي نبي عليه السلام ته يوه غاتره ملک د فارس کسری په هديه کي را استولې وه، نو عليه الصلوٰة والسلام پر سپور و او يوه مرانده (وانبکی) د بزې د وېښتانو يې ور اچولې ؤ، ابن عباس رضي الله عنه وايي چي بيا يې زه هم تر شا سپور کړم، غاتري چي يو ګړی رفتار وکړی، نو عليه الصلوٰة والسلام ماته وکتل و قال يا غلام قلت لبيک يا رسول الله احفظ الله، يعني د خدای د شريعت او قرآن او د قرآن مجيد د احکامو ساتنه کوه، يحفظک خدای ﷻ به ستا ساتنه کوي له آفاتو، بلياتو او غمو څخه مثلاً، او يا معنا داده احفظ الله د خدای ﷻ مراعات کوه ته به خدای ﷻ پيدا کړې په مخکي، يعني په حضور علمي سره و اذا استعنت فاستعن بالله که دي کومک غوښتی له خدای ﷻ څخه کوک غواړه لانه تعالی علی کل شئ قدير.

**درويش وايي:** چي دا سي حديثونه ډېر ددې معنا دانه ده چي مريض به دوا نه کوي او که فقير وي کسب به نه کوي الی غير ذالک لان الدنيا دار الاسباب بلکې د حديث دا معنا ده چي په وخت کي د مرض چي څوک دوا کوي شافي في الحقيقة به خدای ﷻ بولي کسب به سبب عادي بولي الی غير ذالک، يو شاعر وايي.

گر توکل ميکنی درکار کن　　　　کشت کن پس تکيه برجبار کن

**درويش وايي:** چي حديث مذکور طويل و په اختصار سره نقل کړل سو، ترمذي وايي چي دا حديث صحيح او حسن دی.

وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهِ ۚ وَهُوَ الْحَكِيمُ الْخَبِيرُ ﴿١٨﴾

او خدای ﷻ غالب دی سربېره پر بندګانو او خدای ﷻ حکمت والا دی، بې فائدې او بې حکمته کار نه کوي او خبر دی د مخلوقاتو په ټولو احوالو.

**پوه سه:** چي "هو القاهر" مبتدأ او خبر دی، او "فوق عباده" يې خبر ثاني دی

او له فوقیت څخه مراد ذوقیت حسي نه دی لتنزهه تعالی من المکان بلکې مراد فوقیت په قدرت دی، یعني هیڅ بنده هیڅ کار نسي کولای بې له ارادې دده.

**فائده**: په دې آیت کي غلبه د خدای او علوشان د خدای ﷻ مشابه کړی د علو مکاني حسي سره فعبر به عنه علی طریقة الاستعارة التمثیلیة کما تقرر في علم البیان.

**حکایت**: شیخ عبد الواحد بن زید قدس سره وایي چي موږ یو څو نفره په کښتی کي سپاره وو چي کښتی، تندي هوا واختسله او موږ یې یوې جزیرې ته بلا اختیاره ورسولو او په هغه جزیره کي یو سړی وچي د بت عبادت یې کاوه، موږ ورته وویل چي سړی یې ته د څه شي عبادت کوې ده وبت ته اشاره وکړه، شیخ عبد الواحد وایي چي دا ستا خدای ﷻ خو زموږ په وطنو کي خلګ په لاسو جوړوي، نو دا خدای ﷻ نه دی چي ته یې عبادت کوې، نو ده راته وویل چي تاسي نو د چا عبادت کوئ، ما ورته وویل چي موږ د هغه خدای ﷻ عبادت کوو چي اسمان او عرش لري او په مځکه کي یې قدرت چلیږي او په ژوندو او مړو کي د هغه قضا او حکم جاري دی تقد ست اسمائه وجلت قدرته وکبریائه، نو ده راته وویل چي دا خدای نو تاسي ته چا درښوو؟ ما ورته چي خدای ﷻ موږ ته رسول کریم راواستاوه، نو هغه رسول موږ ته راوښوی، نو ده راته وویل چي هغه رسول نو څه سو؟ ما ورته وویل هغه رسول چي خپله وظیفه د رسالت وپای ته ورسوله نو هغه وفات سو، ده راته وویل چي د هغه رسول ستاسي سره یو شی پاته دی؟ ما ورته وویل چي موږ ته یې کتاب الله پرېښو چي په هغه کي احکام الٰهیه امر او نهي موجود دي، نو ده راته وویل چي تاسي هغه کتاب الله په ما وویني، فانه ینبغي ان یکون کتاب الملوک حساناً، نو ما مصحف شریف ورته راواخستی، ده راته وویل چي زه خو یې نه سم ویلای، ته یې راته ووایه، نو ما یو سورت ورته شروع کړی، نو هغه سړی په ژړا سو تر هغو یې ژړله چي ما سورت ختم کاوه، وروسته یې وویل ددې کتاب د صاحب باید څوک عصیان ونه کړي، نو زموږ په ښوونه یې "لا اله الا الله محمد رسول الله" وویل او مسلمان سو او اسلام یې هم ښه پالی، بیا چي موږ له جزیرې څخه راوتلو دی هم په کښتی کي

راسره ملګرې سو، څه موده وروسته وفات سو علی احسن حال والحمدلله المتعال.

**درویش وایي:** چي دا حکایت ددې قول سره د خدای ﷻ "وان یمسسک بیا تر وهو الحکیم الخبیر" پوري مربوط دی فتامل هداک الله.

له کلبي رحمه الله څخه روایت دی چي قریش مکه و علیه الصلوٰة والسلام ته راغله او ورته وه یې ویل چي موږ ته ووایه چي څوک ستا پر نبوت او رسالت شاهدي ادا کوي، موږ خو هیڅ څوک نه دي لیدلي چي ستا د رسالت تصدیق دي وکړي. او ستا په باره کي موږ د مدینې د یهودانو سره هم پوښتنه کړې ده، هغو راته نوشته کړي دي چي زموږ په کتاب تورات کي د محمد په نامه د نبي ذکر نسته. نو دا آیت نازل سو.

قُلْ اَیُّ شَیْءٍ اَکْبَرُ شَهَادَةً ۖ قُلِ اللّٰهُ ۖ شَهِیْدٌۢ بَیْنِیْ وَبَیْنَكُمْ

**پوه سه:** چي "شئ" په معنا د موجود دی او پر هر موجود یې یې اطلاق روا دی یعني پر خدای ﷻ هم د شي اطلاق روا دی، دا په بیان او تفصیل کي د سورت بقرې مطالعه کړه، د ای شئ معنا داده ای شاهد، د اکبر معنا اعظم او جلیل القدر، نو د اعراب له لاري ای شئ مبتدأ ده او "اکبر" یې خبر دی، او "شهادة" تمیز د نسبت دی یعني شهادت ای شاهد اکبر، نو که دوی اقرار وکړی چي خدای ﷻ لوی شاهد دی فیها، او که دوی اقرار ونه کړي، نو ته ورته ووایه الله شهید.

**پوه سه:** چي لفظ "الله" مبتدأ ده او خبر یې محذوف دی یعني اکبر شهادةً خبر یې حذف کړی په قرینه د سوال، او "شهید بیني آه" د مبتدای محذوفي خبر دی یعني هو شهید بیني وبینکم، او سلیسه ترجمه د آیت داده چي ته اې محمده ووایه په ځواب کي د سوال د کفارو د مکې چي دمخه یې ذکر تیر سو، کوم شی دی اعظم از روی شهادت یعني تر خدای ﷻ، او که دوی دا ځواب درنه کړی، نو ته ورته ووایه چي خدای ﷻ اکبر دی شهادةً تر شهادت د مخلوق لان علم المخلوق پر تولو شیانو احاطه نه لري او علم د خدای ﷻ محیط دی بجمیع الممکنات من العلویات والسفلیات، او هغه خدای ﷻ شاهد دی زموږ او ستاسي تر منځ یعني چي زه صادق یم په دعوه کي د رسالت او تاسي عناداً او

تکبر آزما له نبوت څخه انکار کوئ.

**پوه سه:** چي د خدای ﷻ شهادت پر صدق د رسول اللهﷺ په دعوه کي د رسالت اظهار دی د معجزاتو باهراتو دده پر لاس لکه شق القمر في مكة المكرمة كما اشير اليه بقوله تعالى اقتربت الساعة وانشق القمر، وان يروا كل آية لايؤمنون بها ويقولوا سحر مستمر.

**فائده:** اعلی د معجزاتو د علیه الصلوٰة والسلام قرآن کریم دی په دې سبب چي معجزه باقیه ده، ولي هغه اعلان چي قرآن پاک وکفارو ته د مکې کړی ؤ "ان كنتم في ريب مما نزلنا على عبدنا فا"توا بسورة من مثله" هغه اعلان اوس هم پر ځای قائم دی.

**درویش وایي:** چي تفصیل د آیت مذکوره ددې تفسیر په سورة بقره کي تېر سوی دی فراجع اليه هم ددې سببه چي قرآن پاک لویه معجزه ده، نو خدای پاک وهغې معجزې ته د اشارې لپاره دا آیت د ماقبل سره متصل راوړی.

**وَأُوحِيَ إِلَيَّ هَٰذَا الْقُرْآنُ لِأُنذِرَكُم بِهِ وَمَن بَلَغَ**

او ماته وحي کړه یعني له جانبه د خدای ﷻ ددې قرآن معجز چي پر احوال د مبدأ او معاد او د ملک وملکوت مشتمل دی او لاري د رسېدلو وه رضا الهي او جنت ته، او لاري د غضب الهي او د دخلو و دوزخ ته په اکمله توګه پکښي مذکور دي تاچي زه وبېروم په دې قرآن سره تاسي یا اهل مکه له عذاب څخه د قیامت د ورځي، او هغه څوک چي دا قرآن ورورسېږي.

**پوه سه:** چي "ومن بلغ" منصوب دی عطف دی پر ضمیر د "کم" چي مخاطبین د اهل مکه وه.

**فائده:** مراد د من بلغ هغه موجودین د عصر نبوي کافران دي ثم وثم الی يوم القيامة من الجنة والناس.

**درویش وایي:** چي له عبدالله بن عمر رضی الله عنه څخه روایت دی چي علیه الصلوٰة والسلام وویل "بلغوا عني ولو آیة" تاسي زما څخه رسوي یعني و خلګو ته که څه هم یو آیت وي "وحدثوا عن بني اسرائیل ولاحرج" او تاسي نقل کوئ د بني

اسرائیلو په دې قتل کې حرج او ګناه.

**درویش وایي:** چې مراد له بني اسرائیلو څخه مؤمنان ددوی دي لان الکفار منهم قد بدلوا التورات وغیروه وکتموا منه اشیاً کنعوت النبي ﷺ او علیه الصلوٰة والسلام زیاته کړه ومن کذب علي متعمداً فلیتبوءُ مقعده من النار" او که چا دروغ وویل پر ما باندې په قصد سره، نو جوړ دې کړي ځای خپل په اور کې.

**پوه سه:** چې کلمه د "فلیتبوا" ظاهراً امر دی لکن مراد ځني اخبار دی یعني ځای یې په اور کې جوړ کړی. کذا قال الشارحین لهذا الحدیث والحدیث رواه البخاري ومسلم، او له ابن مسعود ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل "نضر الله عبداً سمع مقالتي فحفظها ووعاها واداها فرب حامل فقه الی من افقه منه" خدای ﷻ دې تازه او سرسبز لري هغه څوک چې واوري زما خبرې او په یاد یې کړي او په یاد کې یې وساتي. او بیا یې ورسوي بل چا ته.

**پوه سه:** چې فرب آه علت دی ورسولو وبل ته والمعنی ډېر حامل د فقهې او د احکامو د حدیث وي لکن هغه څوک چې دا حدیث ورسره وي هغه به په استخراج د احکامو د دین د هغه حدیث څخه تر راوړلو والا وده ته افقه وي.

**درویش وایي:** صدق رسول الله ﷺ ولي چې احادیث د رسول الله ﷺ د بعضو داسې صحابه کرامو ﷺ څخه مروي دي چې هغو ته به خدای ﷻ اجتهاد نه وُ ورکړی، نو چې هغه حدیث وتابعینو ت ورسېدی هغو ته خدای ﷻ ملکې د اجتهاد ورکړي وې، ډول ډول احکام یې ځني استخراج کړه، کالامام ابو حنیفه رحمه الله ومحمد بن ادریس الشافعي رحمه الله او امام مالک رحمه الله وامام احمد بن حنبل رحمه الله.

**تنبیه:** د موجوده زمانې وهابیان، سلفیان او اهل حدیث وایي چې د ائمه اربعه رحمهم الله تعالیٰ و تقلید ته څه ضرورت دی؟ موږ هغه حدیثونه وایو او په معنا یې پوهېږو. اې بدبختانو تاسې د حدیث په صیغه او اعراب او بلاغت خو هیڅ شک نه یاست حتیٰ چې د کلمة طیبه لا اله الا الله صحیح ترجمه نه سئ کولای، نو تاسې له تقلید څخه څرنګه خلاص یاست، نه هر که سر بتراشد قلندری داند، وګفته اند انجیر خوردن نه کار هر مرغی است. البته صحیح ده

چي موږ د امامانو د خیر القرون تقلید کوو. او تاسي د نورو معلوم الحاله کسانو چي په سوو کلونه تر خیر القرون ودنیا ته وروسته راغلي دي تقلید کوي، ببین تفاوت راه از کجا تاکجا. قال محمد بن القرضي من بلغه القرآن فکانما رئ محمداً علیه الصلوٰة والسلام.

أَئِنَّكُمْ لَتَشْهَدُونَ أَنَّ مَعَ اللَّهِ آلِهَةً أُخْرَىٰ

آیا تاسي نو شاهدي ادا کوئ چي سره د خدای ﷻ نور معبودان او خدایان شته.

**پوه سه:** چي حاصل ددې آیت له دوی څخه اقرار د شرک غوښتل دي او استفهام لپاره د انکار دی یعني باید دادی چي تاسي شاهدي پر شرک ورنه کړئ او په عین حال کي استبعاد د شرک د دوی هم دی.

قُلْ لَا أَشْهَدُ قُلْ إِنَّمَا هُوَ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ

ته ورته ووایه چي زه خو شاهدي نه ادا کوم یعني په ما تشهدون به من ان مع الله الهة اخرىٰ، او ته ورته ووایه چي الله خو یو دی یعني مستحق د عبادت او د وجوب الوجود او د تخلیق اود ترزیق او د نورو صفاتو د کمال دی یعني هیڅ شی دده سره شریک نسته لا في السمٰوات ولا في الارض فضلاً عن الهتکم ای الاصنام التي جمادات محض دي چي نفع یې و عابد ته په عبادت کي ددوی نه رسیږي، او که یې څوک عبادت نه کوي پر ضرر و هغه ته قدرت نه لري.

**سوال:** د "هو" ضمیر خو راجع دی وه لفظ "الله" ته او لفظ "الله" خو جزئي حقیقي دی او په جزئي کي خو تعدد ممکن نه دی کما قال المناطقة نو حمل د اله واحد څه فائده کوي.

**ځواب:** له اله واحد څخه مراد نفي د مطلق تعدد نه دی بلکې مراد ځني وحدت دی په وجوب الوجود وما یتبعه من صفات الجلال والجمال وهو حمل مفید بلا ریبة.

**پوه سه:** چي ددې ځواب هلته ضرورت سته چي ما د انما کافة سي، او که ما موصوله سي او ضمیر د هو راجع سي وما موصوله ته او هو اله صله د موصول سي او لفظ د واحد خبر د موصول مع الصلة سي فلا حاجة الی الجواب، ولي چي

معنا د آيت داسي ده چي په تحقيق هغه څوک چي مستحق د عبادت دى په سبب د وجوب الوجود او د نورو صفات كماليه وۍ. يو دى فكيف يتوهم عدم افادة الحمل كما لايخفى على من تدبر في معنى الجملة المذكورة كما ذكرنا.

وَإِنَّنِي بَرِيٓءٌ مِّمَّا تُشْرِكُونَ ﴿١٩﴾

او په تحقيق زه بېزاره يم د هغه شي څخه چي تاسي شريک گرځوئ په استحقاق د عبادت من اصنامكم الجمادات.

الَّذِينَ ءَاتَيْنَٰهُمُ ٱلْكِتَٰبَ يَعْرِفُونَهُۥ كَمَا يَعْرِفُونَ أَبْنَآءَهُمُ

هغه كسان چي مونږ دوى ته كتاب وركړى دى يعني يهودان پېژني عليه الصلوٰة والسلام يعني په نبوت سره لكه خپل زامن چي پېژني، ولي چي په تورات كي د عليه الصلوٰة والسلام ټوله نعوت موجود دي او تورات ددوى سره موجود دى، او بيا سره د معرفت يې له نبوت څخه انكار كوي حفظاً لرياستهم يعن يعلمائهم على العوام واخذ الاموال منهم في الصدقات وغيرها فاشتروا بآيات الله في التورات ثمناً قليلاً.

**يوه سه:** چي عليه الصلوٰة والسلام چي مدينې منورې ته راغلى او عبدالله بن سلام او نور ملگرو يې ايمان پر راوړى، نو يوه ورځ عمر رضي الله عنه د عبدالله بن سلام څخه پوښتنه وكړه ددې آيت په باره كي "الذين آتيناهم آه" په دې ډول چي تا هم عليه الصلوٰة والسلام داغسي وپېژندى لكه خپل زوى؟ عبدالله رضي الله عنه ورته وويل نعم، او زياته يې كړه چي زما معرفت د عليه الصلوٰة والسلام په نبوت سره اشد دى تر معرفت د خپل زوى، عمر رضي الله عنه ورته وويل چي دا له څه سببه؟ عبدالله رضي الله عنه ورته وويل چي د عليه الصلوٰة والسلام نبوت ماته په كتاب الله تورات سره معلوم سو چي په تورات كي هيڅ مجال او ځاى د كذب نشته او زما زوى خو په ظاهر الحال سره زه خپل زوى بولم او يقين نه پر لرم ولي چي احتمال سته چي زما مايني دي زنا كړې وي او زما زوى دي ولد الزنى وي، نو عمر رضي الله عنه عبدالله بن سلام رضي الله عنه پر تندي مچ كړى او ورته وه يې ويل چي دا ستا ايمان يو قوي ايمان دى.

الَّذِينَ خَسِرُوا أَنفُسَهُمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ

هغه کسان چي په تاوان کي يې واقع کړي دي خپل ځانونه، نو هغه پر نبي ﷺ ايمان نه راوي لعلمه تعالى في الازل بانهم لايؤمنون باختيارهم.

**درويش وايي:** چي دا آيت شامل دی اهل کتاب يهودانو ته چي دوی نعوت د عليه الصلوٰة والسلام چي په تورات کي وه پټ کړه او په زړو کي ددوي خو يقين و چي محمد ﷺ خو نبي منعوت في التورات دی لکن د تعنت او ضديت له لاري او خپل د حفظ رياست له لارِ ملا يان ددوی په خوله ايمان نه پر راوړي، او هم شامل دی مشرکانو ته چي هغو خپل قطرة سليمه التي فطرالله الخلق عليها كما جا في الحديث الصحيح "كل مولود يولد على فطرة الاسلام الى اخير الحديث المشهور" مشرکانو بيا دا کار وکړی اتباعاً لابائهم واجدادهم في عبادة الاصنام، مظهري ﷫ دا آيت خاص په اهل کتابو پوري ګرځولی دی.

**فائده:** الذين" سره د خپل صلې مبتدأ ده او جمله د فهم لايؤمنون يې خبر دی وايراد الفا في الخبر للايذان بسببية الخسران الازلي لذالک فافهم.

**فائده:** في بيان الخسران المبين لهؤلاء الضالين من اهل الكتاب والمشركين، ابن ماجه او بيهقي دا حديث له ابي هريرة ﷺ څخه روايت کړی دی قال قال رسول الله ﷺ مامنكم من احد الا وله منزلان منزل في الجنة ومنزل في النار (نشته هيڅ څوک ستاسي څخه مګر نه ده لره دوه منزله يعني ځايونه سته يو منزل په جنت کي دی او يو منزل په اور کي دی) فاذا مات يعني الكافر فدخل النار ورث اهل الجنة منزله فذالک قوله تعالى اولئک هم الوارثون (نو چي مړ سي کافر او اور ته داخل سي، نو په ميراث وړي اهل جنت منزل د هغه کافر يعني هغه منازل د کافرانو خدای ﷻ پر مؤمنانو تقسيم کړي، نو دغه معنا د دي قول د خدای ﷻ په باره کي د مؤمنانو اولئک يعني المؤمنين دوی دي وارثان يعني د منازلو د اهل النار في الجنة) فهو المراد بالخسران.

وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا أَوْ كَذَّبَ بِآيَاتِهِ ۗ إِنَّهُ لَا يُفْلِحُ الظَّالِمُونَ

او څوک دی لوی ظالم، والاستفهام للانکار يعني نشته لوی ظالم تر هغه چا

چي قصداً دروغ ووايي پر خداى ﷻ يعني مثلاً دعوه د نبوت وكړي لكه مسيلمة الكذاب او اسود عسني وغيرهما، يعني قال اوحي ولم يوح اليه شئ اويا تكذيب وكړي د آياتو د خداى ﷻ.

**پوه سه:** چي له آيتو څخه د خداى ﷻ يا آيات منزله في القرآن مراد دي، او يا معجزات د الله پر توحيد د خداى ﷻ او پر صحت د نبوت د عليه الصلوٰة والسلام نو په دې آيت دليل دى پر دې چي عليه الصلوٰة والسلام لمن د دروغو څخه په دعوه كي د رسالت پاكه ده او تنبيه پر دې هم ده چي كافران اظلم الناس دي، او بعض مفسران وايي چي معنى د آيت داده چي څوک دى لوى ظالم تر هغه چا چي پر خداى ﷻ دروغ وايي او نسبت د ولد او شريک ورته كوي او بتان چي دېري دي د هغو په باره كي وايي چي هؤلاء شفعائنا عند الله او كذب بآياته.

**پوښتنه:** پر دې ترجمه خو مناسب به داوي چي په ځاى كي د او كذب يې واو عاطفه راوړى واى، ولي چي دوى خو داغه دواړه كارونه كول چي هم يې پر خداى دروغ ويل كما مر او هم يې تكذيب د آياتو د خداى ﷻ كاوه.

**ځواب:** د "او" راوړل په ځاى كي د "واو" تنبيه ده پر دې چي هر يو له ددې دوو كارو افراط دى فكيف اذا اجتمعاني هؤلاء، په تحقيق فلاح او خلاصونه له عذابه د خداى ﷻ نه سي پيدا كولاى ظالمان.

**پوه سه:** چي مراد له ظلم څخه ظلم غير متناهي دى وهو الكفر لا الظلم المتعارف في المؤمنين فافهم.

وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا ثُمَّ نَقُولُ

هغه ورځ چي زه دوى يعني كافران سره جمع كړم چي ورځ د قيامت ده يعني سره ددې معبودينو چي بتان وه.

**پوه سه:** چي مكتوب قرائت په موجوده مصاحفو كي په صيغه د متكلم مع الغير دى او يعقوب رحمه الله چي له قراء سبعه وو څخه دى په يا د غيبت يې وايي يعن "يحشرهم" او ضمير مستتر راجع و خداى ﷻ ته دى.

**فائده:** ظرف منصوب دى په فعل محذوف، وجه د حذف يې داده چي د سامع

ذهن هر فعل ممکن ته ولاړ یداي سي په ورځ د قیامت "یدهشون یوم، وتدنوا الشمس منهم یوم" او د هر سړي خوله د خولې واګه سي یوم، او د هر سړي خوله به اوویا باغه وبهېږي، وامثال ذالک ممایقع في هذا الیوم لکن درویش وایي چي تر ټولو اسهل او اشهر في امثاله دادی چي یوم منصوب په اذکر مقدر سره ای اذکر یا محمد للناس یوم آه.

**پوه سه:** چي "ثم نقول" عطف دی پر نحشر باندي او کلمه د "ثم" لپاره د تراخي ده د نقول وروسته تر حشر ډېره زمانه، وفي الحدیث قال رسول الله ﷺ کیف بکم ستاسي به څ حال وي اذا جمع کم الله چي ټاسي سره جمع کړي کما یجمع النبل في الکتانة لکه څوک چي جمع کوي غشي په بغل ځولی، کي خمسین الف سنة پنځوس زره کاله لا ینظر الیکم او خدای ﷻ تاسي ته نه ګوري یعني چي سوال درڅخه وکړي، رواه الحاکم. او له ابن عمر ﷺ څخه روایت دی چي پینځوس زره کاله به خلګ په تاریکه کي ولاړ وي لاتکلمون، رواه البیهقي.

لِلَّذِينَ أَشْرَكُوٓا۟ أَيْنَ شُرَكَآؤُكُمُ ٱلَّذِينَ كُنتُمْ تَزْعُمُونَ ﴿٢٢﴾

هغه کسانو ته چي شرک یې کړی و چېري دي هغه بتان چي د خدای ﷻ سره مو په عبادت ګډ کړي وه، هغه شرکا چي دا زعم باطل درلودی چي دا زموږ خدایان بتان د خدای ﷻ سره برابر دي په استحقاق کي د عبادت، او دا یې هم زعم ؤ چي بتان به شفعا وي زموږ په ورځ د قیامت.

**پوه سه:** چي مراد له دې استفهام څخه توبیخ او شرزنش د کافرانو.

ثُمَّ لَمْ تَكُن فِتْنَتُهُمْ إِلَّآ أَن قَالُوا۟ وَٱللَّهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِينَ ﴿٢٣﴾

**پوه سه:** چي ایراد د لفظ "ثم" دلیل ددې دی چي دوی ډېره زمانه په جواب کي د سوال د خدای ﷻ فکر وواهه چي څه جواب ورکوو، او مراد له فتنې څخه کفر د دوی دی، والمضاف محذوف ای عاقبة کفرهم.

**فائده:** لفظ د "فتنة" مرفوع دی چي اسم د "تکن" دی او خبر یې "الا ان قالوا" دی، او استثنا مفرغ ده یعني مستثنی منه یې محذوف دی ای شئ من الاشیا وقول من الاقوال الا ان قالوا والله ربنا آه، او له فتنې څخه مراد هغه کفر مستتر

ددوی دی چې دوی مدة اعمارهم في الدنيا مختار کړی و، او فخر به یې په کاوه لکن نن ورځ د قیامت په ځواب کې د سوال د خدای ﷻ له کفر څخه بېزاري ښکاره کړه بقولهم والله ربنا آه. او یا د فتنې جواب ددوی دی المذکور او تعبير چې د جواب څخه په فتنه وکړه لانه کذب بحت.

**سوال**: دوی ولې دا جواب انکاري ورکړی او دوی پوهېدله چې دا ځواب انکاري فائده نه کوي لعلمه تعالی بکفرهم؟

**ځواب**: له ډېره حيرته او د هشته څخه یې دا دا ځواب انکاري مختاره کړی لان الغريق يتشبثت بکل حشيش. بعض مفسران وايي چې مشرکان چې د قيامت په ورځ د خدای ﷻ مغفرت عامه و اهل توحيد ته وويني. نو دوی يو وبل ته وايي چې راځئ موږ به له شرک څخه انکار وکړو شايد چې موږ به هم د اهل توحيد په ډله کې تېر سو. نو ځکه دوی وايي والله ربنا ماکنا مشرکين، لکن خدای ددوی پر خولو مهر د سکوت ولګوي، نو اعضا او جوارح ددوی پر دوی شاهدي د کفر او شرک ادا کړي فلا ينفعهم الانکار.

انْظُرْ كَيْفَ كَذَبُوا عَلَىٰ أَنْفُسِهِمْ ۚ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴿٢٤﴾

وګوره ته اې محمد ﷺ او اې مخاطبه څرنګه دوی دروغ وويل پر خپلو ځانو حيث قالوا والله ربنا ماکنا مشرکين ففيه تعجب لکفرهم. او ورک سوه له دوی څخه هغه شی چې دوی يې افترا کول په حق کې د بتانو چې دوی به زموږ شفاعت کوي په نېز د خدای. نو هغه خبري ټولي باطلي او پوچ ولاړې.

**پوهنه**: چې "وضل" عطف دی پر "کذبوا" او تر انظر لاندې دی. او کلمه د ما يا موصوله ده او عائد محذوف دی اې مايفترونه. او يا مصدريه ده اې افترائهم.

**فائده**: کيف" حال دی له فاعل څخه د کذبوا دمخه يې کړی له دې سببه چې استفهام صدر د کلام غواړي، او مضمون د جملې مفعول دی د انظر، والمعنی انظر کذبهم علی انفسهم متکيفين بای کيفية حيث لايفيدهم.

**شان نزول**: پوهنه چې ابو سفيان بن حرب او ابو جهل بن هشام او وليد بن المغيرة او نضر بن الحارث وعتبة وشيبة چې دواړه زامن وه د بيعه او امته او أبی

چي دوا رد زامن وه د خلف او حارث بن عامر گردو شوه ونبوي وقرآن ته چي علیه الصلوٰة والسلام يې تلاوت کاوه، نو دوی ونظر ته وويل چي ما يقول محمد؟ هغه ورته وويل چي نه پوهېږم چي څه وايي، ژبه او شونډان خوځوي بنوري او زما خيال دی چي د پخوانيو خلکو دروغ وايي لکه ما چي به تاسي ته قصې د امور ماضيه کولې، او نظر به دېري قصې د اعاجمو و دوی ته کولې، ابو سفيان وويل چي زما په خيال بعض خبري د محمد حق دي، ابو جهل ورته وويل كلا لانقر بشيء من هذا، نو خدای پاک دا آيت نازل کړی.

وَمِنْهُمْ مَنْ يَسْتَمِعُ إِلَيْكَ ۚ وَجَعَلْنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ أَكِنَّةً أَنْ يَفْقَهُوهُ وَفِي آذَانِهِمْ وَقْرًا ۚ وَإِنْ يَرَوْا كُلَّ آيَةٍ لَا يُؤْمِنُوا بِهَا ۚ

بعض له دوی څخه هغه کسان دي چي تاته غوږ نسي چي قرآن وايي او موږ گرځولي دي پر زړو ددوی پردې كراهة ان يفقهوه او په غوږو کي ددوی ثقل او كڼوالی دی يعني ستا قرائت په سماع د قبول نه اوري او كه هره معجزه د معجزاتو څخه وويني ايمان نه پر راوړي، ولې چي سترگو ددوی غشاوت يعني پردې دي معنوي چي حق نه په ويني كما مر في اوائل سورة البقرة، چي ددې غشاوة څخه تعبير هوري کړی دی په غشاوة التعامي يعني قصداً وعناداً او تكبراً ځان ړوند نه گرځوي، او تقليد د اباؤ او اجدادو په بت پرستی کي يې تر ايمان بمحمد ﷺ غوره کړی دی.

حَتَّىٰ إِذَا جَاءُوكَ يُجَادِلُونَكَ

**یوه سه:** چي "حتی" له حروف عاطفه وو څخه دی چي پر جملو داخلېږي او "اذا" ظرف زمان دی متضمن دی معنا لره د شرط او "يجادلونک" جواب دی يعني چي دا کفار تاته درسي ستا سره بحث کوي.

**یوه سه:** چي جدال او مجادله ناحقه بحث ته وايي كما تقرر في كتب المنطق.

يَقُولُ الَّذِينَ كَفَرُوٓا إِنْ هٰذَآ إِلَّآ أَسَٰطِيرُ الْأَوَّلِينَ ﴿٢٥﴾

**پوه سه**: چي "يقول" تفسير دى د "يجادلونك" او "الذين كفروا" وضع د مظهر ده په ځاى كي د مضمر يعني "يقولون" نه دى دا قرآن مگر د دروغو قصې د پخوانيو خلگو.

**فائده**: "اساطير" جمع د اسطورة ده لكه اضاحيك جمع د اضحوكة ده يعني د خندا خبره، او اعاجيب جمع د اعجوبة يعني د تعجب وړ خبره.

وَهُمْ يَنْهَوْنَ عَنْهُ وَيَنْـَٔوْنَ عَنْهُ

**درويش وايي**: چي ددې آيت په تفسير كي د مفسرينو اختلاف دى، روح البيان خو فقط دومره ويلي دي چي كافران د مكې خلگ نهي كوي د قرآن او د عليه الصلوٰة والسلام له متابعت څخه، او دوى خپل ځانونه لېري ساتي اظهاراً لغاية نفرتهم من القرآن ومن عليه الصلوٰة والسلام. بعضې نورو مفسرينو هم ورته تفسير كړى دى، لكن مظهري رحمه الله له ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت كړى دى چي دا آيت په ابو طالب عم النبي ﷺ كي نازل سوى دى، والمعنى ابو طالب مشركين له دې څخه منع كول چي عليه الصلوٰة والسلام ته به ازار نه رسوي او په خپله ابو طالب له ايمان څخه پر نبي عليه السلام ځان لېري ساتى، نو پر دې تقدير ضمير د "هم" چي جمعه دى وه ابو طالب او دده و همكارانو ته راجع دى، او له سعيد بن ابي هلال څخه روايت دى نزلت في عمومة النبي ﷺ، نو پر دې تقدير ضمير د جمع پر خپل ظاهر دى، او دا اكاگان د عليه الصلوٰة والسلام بالذات او بالواسطة لس كسه وه چي دغه لس كسان په پټه او په ښكاره د عليه الصلوٰة والسلام له ازاره سخت مدافعان وه.

**درويش وايي**: چي بغوي داسي روايت راوړى دى چي رئيسان د مشركانو د مكې وه ابو طالب ته چي د عليه الصلوٰة والسلام سكه اكا وه، او د بني هاشم د قبيلې رئيس هم وه راغله او ابو طالب ته يې داسي وويل چي زموږ د قبائلو يو ځوان واخله موږ يې تاته دربخښو ته محمد ﷺ موږ ته په لاس راكړه چي موږ يې مړ كړو، ابو طالب ورته وويل چي دا خو د انصاف لار نه ده چي زه به خپل

زوی یعني محمد تاسي ته په لاس درکوم چي تاسي یې مړ کړئ، او ستاسي زوی چي د محمد په عوض کي یې راکړئ زه به یې درساتم.

په حدیث شریف کي راغلي دي چي علیه الصلوٰة والسلام خپل اکا ابو طالب ته دعوت د اسلام ورکړی، نو ابو طالب ورته وویل چي که ددې بیره نه وای چي قریش به ماته پېغور راکړي که زه ایمان راوړم ما به ایمان راوړی وای، او ستا سترګي به مي په خونګي کړي وای، لکن مدافعت دي کوم تر څو چي زه ژوندی یم، او دا څو اېره ابیات ابو طالب وویل.

| | |
|---|---|
| والله لن یصلوا الیک بجمعهم | حتی اوسیدوا في التراب دفینا |
| فاصدع بامرک ما علیک غضاضة | وابشر وقر بذاک عنک عیوناً |
| دعوت و عرفت انک ناصحي | لقد صدقت و کنت ثم امیناً |
| و عرضت دیناً قد علمت بانه | من خیر ادیان البریة دیناً |
| لولاً حذاز الملامة و مسبة | لوجدتني سمحاً بذاک مبیناً |

**تبصره**: درویش وایي: چي هر څو ازار چي د قریشو د مکي له خوا څخه و علیه الصلوٰة والسلام ته ورکړه سوی دی کما جا في الآحادیث الصحیحة هغه په داسي وخت کي ورکړه سوی دی چي ابو طالب وفات سو. ولي چي په ژوند کي د ابو طالب هیڅ چا توان او طاقت نه درلودی چي علیه الصلوٰة والسلام ته دي یو لږ ازار ورسوي، ځکه چي ابو طالب یې حامي او محافظ مطلق ؤ، او قریشو ټولو د ابو طالب چي د بني هاشم د قوم رئیس ؤ، مراعات کامل یې کاوه.

وَإِن يُهْلِكُونَ إِلَّا أَنفُسَهُمْ وَمَا يَشْعُرُونَ ﴿٢٦﴾

او دوی نه هلاکوي په عداوت سره د علیه الصلوٰة والسلام وعدم الایمان به وبالقرآن مګر خپل ځانونه هلاکوي. ولي ضرر ودوی ته راجع دی لا الی النبي ﷺ لانه تعالی یتم نوره ولو کره الکافرون او دوی په دغه نه پوهېږي چي ضرر مو ږ ته راجع دی.

وَلَوْ تَرَىٰ إِذْ وُقِفُوا عَلَى النَّارِ

که ته ووینې ای محمد ﷺ او یا هر لیدونکي چي کافران حاضر کړي اور ته یعني دوزخ او ددوی پر اور علم راسي او بیا هم ورداخل کړه سي.

**يوه سه:** چي ځواب د "لو" محذوف دی يعني لرئيت امراً فظيعاً عجيباً.

فَقَالُوا يٰلَيْتَنَا نُرَدُّ وَلَا نُكَذِّبَ بِاٰيٰتِ رَبِّنَا وَنَكُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۲۷﴾

نو دوی يعني دغه کسان چي اورته حاضر سوه او د اور شدت يې وليدی وايي به چي کاشکي موږ بيرته ګرځول سوي وای ودار الدنيا ته چي دار العمل وه، نو بيا به موږ تکذيب نه کولای په آياتو سره د خدای ﷻ يعني آيات القرآن الدالة على البعث بعد الموت، او موږ به له مؤمنينو څخه ګرځېدلي وای.

**يوه سه:** چي کلمه د "يا" لپاره د نداً ده او منادیٰ يې محذوفه ده ای يا قوم. او "ليت" لپاره د تمنيٰ دی او "نرد" جواب د تمنيٰ دی، منصوب دی په "ان" مقدره سره قبله او "لانکذب" پر عطف دی هم منصوب دی. او بعض قرأ دواړه يعني "ولا نکذب ونکون" په رفع سره وايي چي عطف يې بولي پر "نرد" باندي او يا يې حال بولي له فاعل څخه د "نرد" او يا واو په دواړو کي استينافي بولي.

بَلْ بَدَا لَهُمْ مَّا كَانُوْا يُخْفُوْنَ مِنْ قَبْلُ

**يوه سه:** چي بل اضراب دی له ارادې څخه د ايمان چي ددوی له تمنيٰ څخه وفهمېدی يعني داغسي نه ده بلکې زړونه يې له کفر څخه تنګ سوه يعني بلکي ښکاره سوه ودوی ته جزاً ده هغه شي چي دوی پټاوه دمخه يعني في الدنيا من النفاق کما في المنافقين، او يا اهل الکتاب يهودانو پټول نعوت د عليه الصلوٰة والسلام چي په تورات کي وه.

وَلَوْ رُدُّوْا لَعَادُوْا لِمَا نُهُوْا عَنْهُ وَاِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ ﴿۲۸﴾

او که دوی رد کړل سي ودنيا ته فرضاً دوی به بيا وګرځي وخپل کفر او معاصيو ته چي دوی ځني نهي سوي وه، او د اخيرت عذاب به يې بالکلية هېر سي. ولي چي جاهل سړی تر پښو لاندي مځکي ته ګوري، او دوی داسي قوم دی چي عادت ددوی درواغ دي. نو ددوی دا خبره هم درواغ ده چي موږ به تکذيب د آيتو د خدای ﷻ نه کوو، او ايمان به راوړو. وفي المثنوي.

آن ندامت از نتيجه رنج بود نه زعقل روشنی چون گنج بود
چونکه رنج شد آن ندامت شد عدم.

**يوه سه:** چي په دې بيت کي اول شد په معنا د رفت دی او دوهم شد په معنا د سو فافهم.

میکند اوتوبه وبخیرد بانگ لو ردوا لعادوا میزند

**درویش وايي:** چي ددې آيت مصداق په دنيا کي هم څرګند ستنه مثلاً يو سړی وي د زنی سره عادت لري بيا يو سخته ناجوړي پر راسي نو دی د ناجوړی په حال کي د خدای سره ټينګه وعده کوي چي خدايه که تا ماته صحت کامل راکړی زه به بيا زنی نه کوم، خير د ناجوړی په وخت کي ډاناري او زاری او بيا زنی نه کول پر خدای ﷻ ده ډيري ووهلې. هغه ؤچي خدای ﷻ دی جوړ کړی يو څو ورځي خو يې هغه زاری او توبه په ياد وه وروسته چي بنه کامل صحت ته ورسيږي او څه زمانه د صحت پر تيره سي بيرته هغه دی وي هغه زنی. وقس على الزنا ما كان من المعاصي المعتادة لشخص حين نزل عليه عذاب الدنيا فصدق الله تعالى لوردوا لعادوا وانهم لكاذبون.

وَقَالُوٓا۟ إِنْ هِىَ إِلَّا حَيَاتُنَا ٱلدُّنْيَا وَمَا نَحْنُ بِمَبْعُوثِينَ ﴿٢٩﴾

او دوی به ويل يعني منكري البعث من المشركين، په دنيا کي نه دي ژوندي ژموږ مګر دغه د دنيا ژوند دی او نه يو موږ مبعوثين بعد الموت.

**يوه سه:** چي ضمير د "هي" وحيوة ته راجع دی بقرينة مابعده.

**فائده:** وقالوا" عطف دی يا پر "لعادوا" يعني لردوا قالوا، او يا عطف دی پر "نهوا" باندي يعني "لو ردوا لعادوا لما نهوا عنه" او يا واو استينافي دی "وقالوا" جمله مستانفه ده بذكر ماقالوه في الدنيا.

**درويش وايي:** چي توجيه ډيره په زړه پوري او بې تكلفه ده.

وَلَوْ تَرَىٰٓ إِذْ وُقِفُوا۟ عَلَىٰ رَبِّهِمْ

که چيري ته ووينې اې محمد ﷺ هغه وخت چي كفار ودرول سي و خدای ﷻ ته.

**يوه سه:** چي وقوف و خدای ﷻ ته مجاز دی له حبس څخه ددوی لپاره د سوال او توبيخ او بعض مفسران وايي چي كلمه د "على" په معنی د لام ده ای لقضا ربهم وجزائه.



Scanned by CamScanner

**فائده**: جواب د "لو" دلته هم محذوف دی لکه دمخه ای لرئیت امراً فظیعا.

قَالَ أَلَيْسَ هَٰذَا بِالْحَقِّ ۚ قَالُوا بَلَىٰ وَرَبِّنَا ۚ قَالَ فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنتُمْ تَكْفُرُونَ

دا آیت جواب د سوال دی چي خدای پاک نو څه ورته وايي په دغه ورځ چي دوی وقفوا علی ربهم سوه، اول خدای پاک ورته وايي پر ژبو د ملکو د عذاب آیا نه دی دغه بعث بعد الموت او ثواب او عذاب په حق سره؟ دوی ورته وايي چي هو حق زموږ دی قسم دي په رب سره زموږ وي.

**درویش وايي**: چي دوی ته چونکه حال د بعث بعد الموت ښه واضح سو، نو ځکه یې ځواب مؤکد په قسم ورکړی، نو خدای پاک ورته ووايي تاسي نو اوس ورئ او برداشتوئ عذاب یعني د اور په سبب د هغه چي تاسي کفر کاوه، ولیس هذا في ذوق الفم بل بمعنی جربوا.

**پوه سه**: چي کلمه د ما مصدري ده ای بسبب کونکم تکفرون، او دا هم احتمال سته چي کلمه د ما موصوله وي، نو بیا عائد وما ته محذوف دی ای بالشئ الذي کنتم تکفرونه ای تنکرونه من البعث بعد الموت والثواب والعقاب.

قَدْ خَسِرَ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِلِقَاءِ اللَّهِ ۖ

په تحقیق تاوان وکړی هغو کسانو چي تکذیب یې کاوه په دنیا کي په ملاقات د خدای ﷻ چي مراد ځني بعث بعد الموت دی.

**پوه سه**: چي له بعث بعد الموت څخه یې تعبیر په ملاقات د خدای وکړی له دې سببه چي د بعض کسانو لپاره لکه مؤمنان دغه بعث بعد الموت سبب رؤیت د خدای ﷻ گرځي، لکن کافران چونکه بعث بعد الموت نه مانه او دغه رنگه د جنت او دوزخ څخه منکر وه، نو له دوی څخه فوت نعیم مقیم او ددوی په برخه سو عذاب الیم، وذالک هو الخسران العظیم.

**پوه سه**: چي چونکه معتزله له رؤیة څخه د خدای ﷻ منکر دي نو دوی ددې نعمت عظمی څخه محروم دي، او چونکه د گناه کبیره مرتکب چي بې توبې مړ سي له شفاعت او مغفرت څخه د خدای ﷻ هم منکر دوی له دوو عظیمو نعمتو څخه هم محروم دي، وعن ابي هریرة ﷺ قال الله تعالی انا عند ظن عبدي بي، له

ابراهیم ادهم رحمه الله څخه روایت دی مایسرني ان لي نصف الجنة بالرؤیة (مانه خوشحاله کوي دا چي ماته نیمی د جنتو راکړي په مقابل کي د رؤیت الهي، ولي چي خدای پاک د کفارو په باره کي وایي کلا انهم عن ربهم لمحجوبون، خامخا حجاب د خدای جل جلاله د کافرانو په برخه دی، نو د مؤمن په برخه ملاقات د خدای جل جلاله دی، اللهم ارزقنا رؤیتک في جنة النعیم بفضلک العظیم.

حَتّٰٓى اِذَا جَآءَتْهُمُ السَّاعَةُ بَغْتَةً

حتی چي دوی یعني کافرانو ته راسي قیامت ناببره.

**پوه سه:** چي قاضي ناصر الدین البیضاوي رحمه الله وایي چي حتی غایة یعني پای دی د کذبوا لا لخسروا، ولي خسران ددوی خو ابدي دی لا غایة له.

**سوال:** تکذیب د دوی خو تر پایه تر مرګ د دوی دی لا الی قیام الساعة.

**ځواب:** مراد له ساعت څخه دلته ساعت یعني قیامت صغری دی وهو ساعت موتهم فانه من مات قامت قیامته کما ورد في الحدیث الصحیح القبر روضة من ریاض الجنان او حفرة من حفرات النیران.

**پوه سه:** چي بخاري او مسلم روایت کړی دی له عائشې رضي الله عنها چي بعض کسان د اعرابو یعني صحرایي کسانو څخه به راتله و رسول الله ﷺ ته او له ده څخه به یې پوښتنه کول چي ساعت یعني قیامت کله دی. نو به علیه الصلوٰة والسلام وکتل چي په دغو سائلینو کي یو کشر هلک و، نو یې داسي وویل که دغه هلک ژوندی پاته سي تر زړوالي به نه ورسېږي حتی تقوم علیکم ساعتکم.

**درویش وایي:** چي ددې حدیث په معنا کي د دین خارج کسانو داسي سوال کړی دی، چي له ساعت څخه خو قیامت مراد دی نو قیامت په سوو کلونه دادی تېر سوي دي لکن قیامت تر اوسه نه دی قائم سوی؟

والجواب عن هذا السوال چي د علیه الصلوٰة والسلام مراد قیامت صغری دی وهو الموت کمامر او قرینه پر دې ارادې داده چي علیه الصلوٰة والسلام اضافت د وحاضرینو ته وکړی قال حتی تقوم علیکم ساعتکم، که مراد ساعت کبری وایي نو هغه په حاضرینو پوري څه کار نه لري، هغه د ټولو انسانانو شریکي ساعت دی.

وعلی تقدیر التسلیم یعني چې موږ ومنو چې مراد قیامت کبری دی. نو چونکه مرگ مقدمه د ساعت ده کمامر فکان الموت هي الساعة الکبری، نو پر دې تقدیر خلاف د رایې د بیضاوي هم ممکن دی یعني چې حتی دي غایت د خسران وي، ولې خسران د تجارت خو دادی چې سړی په تجارت راس المال هم د لاسه ورکړي، نو په وخت کې د مرگ د مړه په لاس کې راس المال نه سو پاته، ولې چې راس المال د گټو د اخیرت خو حیوة الدنیا ده، نو زمانه ددوی د خسران پای ته ورسېدله، ولې چې راس خلاص سو وروسته خو زمانه د مفلسی ده.

**پوه سه:** چې "بغتة" یا منصوب علی الحالیة یعني حال کون المجیٔ بغتة او یا مفعول مطلق دی ولې فجائة نوع د مجیٔ ده، والله اعلم بمراده في کتابه.

## قَالُوا يٰحَسْرَتَنَا عَلٰى مَا فَرَّطْنَا فِيهَا

**درویش وایي:** چې دا جمله د "اذا" جزا ده یعني پر دوی باندې چې ناببره قیامت راسي، نو دوی داسې ووایي اې زموږ غم پر هغه شي چې موږ تقصیر کړی په هغه کې، یعني ایمان په ژوند کې د دنیا.

**پوه سه:** چې دوی حسرت په صورت کې د ندا راوړی له جهته د شدت پښېماني ددوی پر تفریط، نو گویا دوی وایي چې حسرت ته چېري یې راځه چې اوس دي وخت دی، او "فرطنا" مشتق د تفریط څخه دی ومعناه التقصیر في الامر المهم ومرادهم الایمان والطاعة، او د "فیها" ضمیر راجع دی و "حیوة الدنیا" ته بلا ذکر المرجع صراحةً للعلم به من المقام او یا ضمیر راجع دی و ساعت ته یعني موږ تقصیر کړی ؤ په امر کې د قیامت چې د هغه لپاره مو ایمان او طاعت نه وکړی چې اوس زموږ د نجات سبب گرځېدلی وای.

**فائده:** حسرت سخت غم او پښېمانی ته وایي، او کلمه د "ما" مصدریه ده ای علی تفریطنا في امر الساعة.

## وَهُمْ يَحْمِلُونَ أَوْزَارَهُمْ عَلٰى ظُهُورِهِمْ

او دوی راخستي وه (چې له قبرو څخه راووزي) خپل اعمال قبیحه پر خپلو شاوو باندې.

**درویش وایي**: چي دا وه لفظي ترجمه د آیت لکن پوه سه! چي ددې آیت حل او کشف ومزید تحقیق ته ضرورت لري (۱) دا جمله یعني "وهم آه" حال ده له فاعل څخه د "قالوا (۲) اوزار جمع د وزر ده چي په لغت کي دروند بار ته وایي لکه په دې محاوره کي وزر ته اې حملته ثقیلاً او له دې سببه وزیر ته د مملکت وزیر وایي، ولي چي د وزیر پر غاړه د مملکت ډېر درانه کارونه پراته وي، او ګناه ته هم وزر وایي لغایة ثقله علی صاحبه (۳) حمل له صفاتو څخه د اجسامو دی لا من عوارض المعاني یعني لکه دلته چي مراد ګنهونه دي، نو کفر او معاصیو ته تشبیهاً او تمثیلاً حمل ویل کېږي (۴) ذکر د ظهور بناً پر غالب دی ولي چي دروند بار خلګ په شا وړي (۵) معنا د آیت: چي کافران حسرت کوي په ورځ د قیامت پر دې چي موږ په دنیا کي هیڅ عمل د حسناتو من الایمان والطاعات خو نه وکړی او حال هم دادی چي اوس مو درانه بارونه د کفر او سیئاتو په شا دي.

الا سآء مایزرون

آګاه اوسه چي بد شی دی هغه څه چي دوی یې حمل کوي یعني الکفر والمعاصي.

**درویش وایي**: چي له سدي او ابن ابي حاتم څخه روایت دی چي مؤمن چي په ورځ د قیامت له قبره راووزي یو ښائسته او ډېر خوشبو په صورت یې په مخه ورسي او هغه صورت ورته ووایي ته ما پېژنې؟ دی ورته ووایي لا. هغه ورته ووایي چي زه خو ستا عمل صالح یم یعني خدای ﷻ تا ته مصور کړم، نو ته زما په شا سه، ولي په دنیا کي زه ستا ډېر په شا سوی یم، په دې معنا چي سره له مشقته تا زه پاللی یم، لکه دروند بار چي دې په شا وي.

**درویش وایي**: چي بعض مفسران د خدای ﷻ ددې قول تاویل "یوم تحشر المتقین الی الرحمن وفداً، ای رکباناً" په دغه سپر تیا د عمل صالح کړی دی، او کافر چي له قبره راپاځي، یو ډېر بد مخه بدبو یه صورت په مخه ورسي او هغه صورت ووایي چي ته ما پېژنې؟ دی ورته ووایي یا، هغه صورت ورته ووایي چي ستا کفر او عمل خبیث یم، په دنیا کي ډېر ته پر ما سپور سوی یې یعني خپل

نفسي خواهشات دي په ما پر ځای کوله. نن بيا زه پر تا سپړېږم او د هغه آيت "وهم يحملون آه" په دغه سره بعض مفسرانو کړی دی.

**درويش وايي:** چي پر دې تقدير حمل پر خپل ظاهر دی يعني تمثيلات او تشبيهاتو گذشته وو ته ضرورت نسته. ولي کفر او معاصي که څه هم اعراض دي لکن په اخرت کي خدای ﷻ په صور حسنه وو او سيئه وو ښکاره کوي کمامر آنفاً.

**وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ اِلَّا لَعِبٌ وَّلَهْوٌ ۗ وَلَلدَّارُ الْاٰخِرَةُ خَيْرٌ لِّلَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ ۗ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ**

په حذف د مضاف ای ما اعمال الدنيا يعني هغه عملونه چي متعلق په دنيا پوري دي من حيث هي هي. د حيثيت فائده چي په ژوند کي د دنيا خو سړی عبادت هم کوي. وحاصل الجواب چي عبادات خو متعلق په دنيا من حيث هي پوري نه دي. بلکي دا خو متعلق په اخيرت پوري دي لان الدنيا مزرعة الآخرة کما ورد في الحديث الصحيح مگر نه لهو او لعب دی.

**پوه سه:** چي دا آيت جواب دی د هغه سوال د مشرکانو ان هي الا الحيوة الدنيا. او لهو هغه فعل ته وايي چي سړی له ماينفع له فعل څخه منع کوي لکه په وخت کي د لمانځه چي سړی گين کوي يا غېږ باسي يا تلوېږون ته ناست وي جماعت پرېږدي الی غير ذالک. واللعب فعل لايکون له غرض صحيح او نه منفعت پر مرتبېږي.

**درويش وايي:** چي فاللهو واللعب متقاربان في المعنى او هر آئينه دا آخيرت په حذف د مضاف ای الاعمال المتعلقة بنفع الآخرة کالعبادات المتوجه خير للذين يعني ښه دی لپاره د هغه چا چي له خدايه بيرېږي. ولي چي دا عملونه متقيان رسوي ورضی الهي ته او نعيم مقيم ته د جنت. آيا اې خلکو تاسي عقل نه لرئ چي لهو او لعب پرېږدئ او دا اعمال د متقينو نه سئ کولای حتٰی لار د متقينو مختاره کړئ.

**فائدة في جميع القرآن:** هر ځای چي تر همزه د استفهام فا يا واو يا ثم چي حروف عطف دي نو معطوف عليه وروسته تر همزه مقدر تا چي صدارت د

استفهام فوت نه سي لکن هر ځای معطوف علیه به مناسب د مقام سره محذوف بولي لکه دلته ای اتفعلون اللهو واللعب لا اعمال آخرة فلا تعقلون، ولي چي سړی تر قلیل فاني کثیر باقي مختار کړی هغه عاقل سړی دی.

**فائده**: دنیا چي دنیا بولي یا په سبب ددې ده چي تر اخیرت نژدې ده نو دنیا پر دې تقدیر مشتق ده له دنو څخه چي معنی یې قرب ده، او یا یې له دې سببه دنیا بولي چي ردي او خسیس شی دی، نو پر دې تقدیر مشتق ده له دنائت څخه په معنی د خسمت وعدم الحرمة لها.

**حکمت**: خدای ﷻ اخیرت یعني نعیم د اخیرت او الیم د اخیرت غائب وساتله له سترګو څخه، ولي که جنت او دوږخ په دنیا کي ظاهره کړی وای، نو به هیڅ کافر انکار نه کاوه او تکالیف الهیه به د خلګو څخه پوره سوي وای، ولي چي خلګو ټوله د جنت لار اختیارولـه، او د دوږخ لار یې پرېښوله، لکن خدای ﷻ حکمت الهي خو موږ ته اختیار راکړی دی که د جنت پر لار ځئ او که د دوږخ.

**پوه سه**: چي د عقل سالم چي په امورو کي د دنیا او اخیرت فکر ووهي چي کوم یو زما لپاره خیر دی، نو به کارونه د اخیرت مختاره کړي من الایمان والطاعات لانها قویة ابدیة خالصة من المضرات تر امور د دنیا لانها فانیة عنقریب مشوبة بالمصائب والافات والامراض والبلیات بداهة بدون الاستدلال.

**حکایت**: جعفر بن ابي سلیمان رحمه الله وایي چي زه او مالک بن دینار رحمه الله په بصره کي ګرځېدلو، نو موږ یوه کوڅه او بنګله ولیدله چي په تعمیر یې یو ځوان حسن الوجه اخته و، او پر بنایانو او مزدورانو یې امرونه کول چي دا ځای داسي جوړ کړئ او فلانی ځای داسي جوړ کړئ، نو موږ دغه قصر ته داخل سوو، او مالک د قصر چي په بنا د قصر مصروف و، سلام ورواچاوه او هغه د سلام ځواب راکړی، نو مالک بن دینار و ځوان ته وویل چي ته د څونده دراهمو مصرفول پر دې قصر لرې؟ ځوان ورته وویل سل زره درهمه، نو مالک بن دینار ورته وویله چي دا روپۍ ماته نه راکوې چي زه یې په حقه لار مصرف کړم یعني فقرا او مساکینو ته یې ورکړم، او ستا به زه ضامن سم پر خدای ﷻ باندي چي تاته به تر

دې قصر خیر درکوي سره د ولدانو او حورو او خادمانو چې په هغه قصر کې به خیمې ولاړې وي د سرو زرو ښائسته په جواهراتو او د خاورو په ځای بې زعفران او د چا لاس به نه وي وهلي بلکې په قدرت کامله د خدای ﷻ په جوړې سوي وي د مالک بن دینار رحمه الله خبرو په ځوان کې تاثیر وکړی، ځوان قلم او کاغذ راوغوښتل چې ماته ضمانت خط راکړه، نو مالک بن دینار نوشته کړه.

بسم الله الرحمن الرحيم

هذا ما ضمن مالك بن دينار لفلان بن فلان اني ضمنت لك عن الله قصراً في الجنة بدل قصرك هذا كما وصفته والزيادة على الله. اشتريت لكن بهذا المال اعني الدارهم التي اراد الشاب صرفها في قصر الدنيا قصراً في الجنة في ظل ظليل افسح من قصرك هذا بقرب العزيز الجليل ثم طوى الكتاب واعطاه الشاب" او مالک بن دینار هغه دراهم چې ځوان ورکړه په فقرا او مساکینو یې تول تقسیم کړه پر ځوان څلوېښت ورځې پوره نه سوې تېرې چې وفات سو. او اقرباؤ ته یې دا وصیت وکړی چې دا مکتوب د مالک بن دینار زما او د کفن په منځ کې کښېږدئ. قریبانو ځوان دفن کړی او مکتوب یې هم ورسره دفن کړی، او مالک بن دینار په شپه د وفات د ځوان یو کاغذ په محراب کې ولیدی پروت دی نو کاغذ یې راواخستی او خلاص یې کړی چې په هغه کې نوشته وه هذه برائة من العزيز الحكيم الى مالك بن دينار وفينا القصر الى الشاب الذي ضمنت له وزيادة سبعين ضعفاً.

**درویش وايي**: روى الترمذي والحاكم عن علي رضي الله عنه چې ابوجهل ونبي ﷺ ته وویل چې موږ ستا تکذیب نه کوو بلکې موږ د هغه کتاب چې تا راوړی دی یعني په هغه کې امر د توحید دی او زموږ د خدایانو سپکاوی سته تکذیب کوو، نو دا آیت نازل سو.

قَدْ نَعْلَمُ إِنَّهُ لَيَحْزُنُكَ الَّذِي يَقُولُونَ فَإِنَّهُمْ لَا يُكَذِّبُونَكَ وَلَٰكِنَّ الظَّالِمِينَ بِآيَاتِ اللَّهِ يَجْحَدُونَ ﴿٣٣﴾

موږ علم لرو چې په تحقیق شان دادی چې تا په غم کې اچوي هغه خبره چې دوی تاته وايي یعني ابوجهل کمامر، نو ته مه خوابدی کېږه ولې چې دوی خو

ستا تکذیب نه کوي لکن ظالمان زما د آیاتو قرآنیه وو څخه منکر دي یعني فعلینا حسابهم وجزائهم یوم الحساب. بیضاوي وایي چي "قد" لپاره د کثرت د فعل دی او د زیادت د فعل او ضمیر د انه لپاره د شان دی. له سدي رحمه الله څخه روایت دی چي اخنس بن شریف او ابو جهل سره یو ځای سوه نو اخنس وه ابو جهل ته وویل یا ابا الحکم چي د ابو جهل کنیت و په جاهلیت کي ته حال د محمد بن عبد الله راته ووایه چي دی صادق دی او که کاذب دی او دلته خو هیڅ څوک نسته چي زما او ستا خبري دي اوري. ابو جهل ورته وویل والله ان محمداً الصادق لکن زه چي یې نه منم سبب دادی چي بیرغ د قریشو د بنو قصی په لاس کي او سقایه د زمزم هم ددوی سوه او کلي د کعبې هم ددوی په لاس کي سوه او نبوت هم په ددوی کي سو. نو نورو قریشو ته څه شی پاته سو. فانزل هذه الآیة والله اعلم. شان نزول هذه الآیة.

**سوال**: په دې آیت کي ظالمین ذکر سوه آیا ضمیر کافي نه و؟

**ځواب**: ظالمین یې د دلالت او تنبیه پر ظلم ددوی وکړه په سبب د حجود د دوی.

وَلَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ مِّن قَبْلِكَ

او په تحقیق سره تکذیب کړه سوی دی د رسولانو له جانب څخه د قومو د دوی لکه ستا قوم چي ستا تکذیب وکړی.

**درویش وایي**: چي په دې کي تسلي ده و علیه الصلوٰة والسلام ته چي دا تکذیب عادت قدیمه دی په مطول کي وایي چي د رسل تنوین لپاره د تکثیر او تعظیم دی ای رسل ذو عدد کثیر وذو آیات ومعجزات عظام.

فَصَبَرُوا عَلَىٰ مَا كُذِّبُوا وَأُوذُوا حَتَّىٰ أَتَاهُمْ نَصْرُنَا

**پوه سه**: چي کلمه د ما مصدریه ده. والمعنی نورو رسولانو صبر وکړی پر تکذیب ددوی یعني د قوم له خوا او پر زهیرولو د دوی د قوم له خوا. وګرځول خدای جل جلاله غایت د صبر نصر. نو معنا داده چي ته هم صبر وکړه تاته به هم نصر د جانبه د خدای جل جلاله راسي. ولقد صدق الله وعده في البدر و فتح اطراف قری المدینة وبالآخیر فتح مکة.

وَلَا مُبَدِّلَ لِكَلِمٰتِ اللّٰهِ ۚ

بدلونکی نسته د مواعید د خدای ﷻ د رسولانو لکه د ابراهیم علیه السلام سره چي يې وعده کړې وه پر نصر د نمرود او د موسیٰ علیه السلام سره پر نصر د فرعون، او د عیسیٰ علیه السلام په نصر پر بني اسرائیلو الی غیر ذالک. قال الله تعالی "لقد سبقت کلمتنا لعبادنا المرسلین انهم لهم المنصورون وان جندنا لهم الغالبون" او په بل ځای کي یې داسي ویلي دي "انا لننصر رسلنا" وفي موضع آخر کتب الله لاغلبن انا ورسلي" او چي قانون الهي داسي دی چي رسولانو ته نصر ورکوي ولو بعد حین فلا فائدة في اضطراب الرسل بل علیهم الصبر حتی یجیئ النصر.

وَلَقَدْ جَآءَكَ مِنْ نَّبَاِی الْمُرْسَلِیْنَ

او په تحقیق تاته رسېدلی دی یعني په قرآن کریم کي بعض له خبرو څخه د رسولانو.

**یوه سه:** چي کلمه د "من" زائده ده په نېز د اخفش. او سیبویه وایي چي کلمه د "من" زائده ده په اثبات کي نه سي کېدای. ومعنی الآیة علیه الصلوٰة والسلام ته خدای پاک وایي چي ستا د تسلي لپاره کافي خبري د رسولانو تاته رسېدلی دي.

**فائده:** چونکه علیه الصلوٰة والسلام ډېر حریص وُ پر ایمان د قوم او هغو چي به یوه معجزه وغوښتل، د خدای له خوا څخه د علیه الصلوٰة والسلام به دا خوښه وه چي خدای ﷻ دا معجزه په دوی ليدلې وای طمعاً في ایمانهم. نو دا آیت نازل سو.

وَاِنْ كَانَ كَبُرَ عَلَيْكَ اِعْرَاضُهُمْ فَاِنِ اسْتَطَعْتَ اَنْ تَبْتَغِيَ نَفَقًا فِي الْاَرْضِ اَوْ سُلَّمًا فِي السَّمَآءِ فَتَاْتِيَهُمْ بِاٰيَةٍ ؕ

که چېري پر تا سخت پرېوزي روی گرداني ددوی ستا له ایمان څخه بما جئت به، نو که ستا له طاقته پوره وي چي ته طلب کړې یو ډېر زمین سوری او یا ځینه و اسمان ته، او ته ودوی ته راوړې یوه معجزه د ځمکي له نفق څخه او یا د اسمان له خوا څخه.

**یوه سه:** چي ځواب د شرط ثاني محذوف یعني فافعل او تولـه دوهمه جمله

جواب د شرط اول ده، والحاصل چې ستا د طاقته اتيان د آيت نه د ى پوره نو ځان په تكليف كې مه واقع كوه .كه څه هم اعراض ددوى پر تا سخت پرېږوې بلكې صبر وكړه الى ان ياتي الله بامره.

**پوهه**: چې نفق هغه زېر زمين سوري ته وايي چې بله خوا ته هم لار لري لكه نافقاتي د سمساري غار.

**وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَجَمَعَهُمْ عَلَى الْهُدٰى فَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْجٰهِلِيْنَ**

او كه د خداى ﷻ مشيت او اراده واى، نو به يې جمع كړي واى ټولـه پر هدايت په جمع د قسر او الجا لكن لم يشا ذالك. لحكم غامضة منها الفرق المؤمن بالاختيار والكافر باختياره والمطيع باختياره والعاصي بالاختيار فيتميز بها اهل الجنة والنار. ولي چې په صورت كې د مشيت القسر والالجا الى الايمان لا يتميز بين المستحق للجنة والمستحق للنار، والدخول في الجنة او النار بلا ايمان بالاختيار او الكفر بالاختيار خلاف حكمة العزيز الجبار ولا يفرق في صورة القسر الفرق بين الصديق الاكبر ابوبكر الصديق ﷺ وبين عدوالله ورسوله ابو جهل الزنديق في علمه الازلي وهكذا في الاشخاص الاخر. نو مطلب دادى چې عليه الصلوٰة والسلام ته تعليم د صبر كوي او منع كوي لـه تعب څخه په دې باره كې چې قريش ولي ايمان نـه راوړي؛ نو په اخير كې خداى ﷻ خپل حبيب ته سخت لفظ استعمال كړى او وه يې ويل فلاتكونن من الجاهلين تـه مـه ګرځه له ډلي څخه د جاهلانو كسانو. ولي چې تكليف ځان تـه وركول پـه هغه شي چې هغه فائده نه كوي چې ايمان د قريشو ټولو دى او جزع په ځاى كې صبر قانون د جاهلانو دى.

**پوهه**: چې مفعول د "شا" محذوف دى لدلالة الجواب عليه، والمعنى لو شا الله هدايتهم اجمعين.

**درويش وايي**: چې په منځ د مولى حق او د حبيب مطلق لپاره د نفع د حبيب چې لفظ استعمال سي هغه حق دى. نو داسي الفاظ لپاره د تربيې او د تاديب د عليه الصلوٰة والسلام دي كما ورد في الحديث النبوي ﷺ ان الله ادبني فاحسن تاديبي.

إِنَّمَا يَسْتَجِيبُ الَّذِينَ يَسْمَعُونَ ؕ

قبلونه د دعوت ستا نه کوي مګر هغه کسان چي دوی اوري ستا خبري په سماع د تدبر ستا په خبرو کي حتی چي قبول ستا د خبرو دي پر مرتب سي يعني الايمان او هغه کسان ستا دعوت نه قبلوي چي ستا خبري پر طريقه د استهزا اوري.

وَالْمَوْتَىٰ يَبْعَثُهُمُ اللَّهُ ثُمَّ إِلَيْهِ يُرْجَعُونَ ﴿٣٦﴾

**پوه سه**: چي مراد له موتٰی څخه کافران دي، خدای پاک ودوی ته موتٰی وويل ولي چي ددوی پر زړو مهرونه دي چي په حق کي فکر نه وهي، او په غوږو کانه دي او پر سترګو يې پردې دي، چي په غوږ حق نه اوري من حيث انه حق او په سترګو نه ويني معجزې من حيث انها معجزة لا سحر. نو مړي دغسي کسان وي چي عقل او حواس خمسه يې تبوله معطل وي. نعوذ بالله من ذالک. نو دا مړي ژوندي کوي په ورځ د قيامت او بيا به يې وخدای ته راجع کړي او خدای به لائق الحال ودوی ته جزا ورکړي.

وَقَالُوا لَوْلَا نُزِّلَ عَلَيْهِ آيَةٌ مِّن رَّبِّهِ ۚ

ويل به رؤساؤ د قريشو ولي نه نازلوي پرده يعني عليه الصلوٰة والسلام يوه معجزه د صدق دده په دعوه کي د رسالت له جانبه څخه د خدای ﷻ.

**پوښتنه**: معجزې د عليه الصلوٰة والسلام د صدق خو دوی ډيري ليدلي وې لکه شق القمر کما في قوله تعالی "اقتربت الساعة وانشق القمر ۞" او يا تسبيح د سنګريزو په لاس کي د ابوجهل چي دا دوې ډيري ستري معجزې وې. نو دوی بالا تر دې آيت د صدق له عليه الصلوٰة والسلام څخه غوښتی؟

**ځواب**: دوی د خپل تعنت او جهالت له سببه دا معجزه غوښتله چي د مکې مځکه ډيره تنګه ده په سبب د شاوخوا غرو ته دي خدای ﷻ ته ووايه چي دا غرونه لېري کړي، او دا غه رنګه د مکې مځکه بېله جاري اوبو ده ته دي خدای ته ووايه چي يوه جاري وياله د مکې په منځ کي جاري کړي. او د صفا غر د سرو زرو وګرځي الی غير ذالک مما اقترحوه تعنتاً.

قُلْ إِنَّ اللَّهَ قَادِرٌ عَلَىٰ أَنْ يُنَزِّلَ آيَةً وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ

ته ورته ووایه چې په تحقیق خدای ﷻ خو قادر دی پر دغو آیتو چې تاسې یې تعنتاً غواړئ لکن اکثره ددوی نه پوهېږي یعني که ددوی د غوښتنې سره موافق خدای پاک وکړي او بیا هم دوی ایمان رانه وړي، نو سبب د استیصال هلاک به ددوی وګرځي کما هو عادة الله لکه چې په ناقه کې د صالح ﷺ خدای پاک و هغو کافرانو ته جزاً د استیصال ورکړه او یا په غوښتنه د مائدې له اسمانه چې بني اسرائیلو له عیسی ﷺ څخه کړې وه، نو چې دوی ایمان رانه وړی نو له سرکوزان وګرځېدله او بیا هلاک سوه کما مر في سورة المائدة.

**فائده**: انسان څلور قسمه دی په باره کې د دین (۱) سعید بالنفس والروح في لباس السعادة وهم الانبیاء علیهم السلام واهل الطاعة بدون الریا والنفاق.

(۲) شقي بالنفس والروح في لباس الشقاوة وهم الکفار والمصرون على الکبائر بلا توبة (۳) شقي بالنفس والروح في لباس السعادة مثل بعلم بن باعور وبرصیصیا، او د اوسنی زماني کوډګران غیب ویونکي په نامه ملایان. او یا جمع کونکي د مالونو د تګی په لار په صرف نامه پیران (۴) سعید بالنفس والروح في لباس الشقاوة کبلال وصهیب وسلمان في اوائل امرهم ثم بدل الله لباسهم بلباس التقوی والهدایة الکاملة ﷺ.

وَمَا مِنْ دَابَّةٍ فِي الْأَرْضِ وَلَا طَائِرٍ يَطِيرُ بِجَنَاحَيْهِ إِلَّا أُمَمٌ أَمْثَالُكُمْ

نشته یو دابه په مځکه کې (والدابة مایدب في الارض) او نه یو مرغه چې الوځي په خپلو وزرو مګر هغه ټوله امتونه لکه تاسې انسانان په خلق کې او په مرګ کې او غذا کې او په طلب کې د رزق او په صحت کې او په مرض کې والبعث بعد الموت کې والمراد چې هیڅ فضیلت تاسې انسانان پر هغو نه لرئ الا بمعرفة الله تعالى بالتوحید وجمال صفاته وجلال اوصافه.

**یوه سه**: چې "یطیر بجناحیه" یې لپاره د تاکید او دفع د مجاز ووایه، ولې چې ډېر چابک سړي ته هم طائر ویل کېږي مجازاً واستعارة للاشتراک في السرعة فتامل.

مَا فَرَّطْنَا فِي الْكِتٰبِ مِنْ شَيْءٍ ثُمَّ إِلٰى رَبِّهِمْ يُحْشَرُوْنَ ﴿٣٨﴾

او مو ړ نه دی پرې ایښی په لوح محفوظ کې هیڅ یو شی.

**يوه سه**: چې "من" زائد دی لپاره د استغراق د نفي دی. او شئ که څه هم لفظاً مجرور دی لکن په محل کي د نصب دی مفعول مطلق دی د "فرطنا" ای شيئا من التفريط، او مفعول نه دی ولي چي فرط په خپله متعدي دی او يا مراد د کتاب څخه قرآن کريم دی، ولي چي پر قرآن کريم هر شی چي په دين کي حاجت ورته وي يا مجملاً يا مفصلاً موجود دی يا بعبارة النص او يا په اشارة النص او يا په دلالة النص او يا په اقتضا د نص كما تقرر في علم اصول الفقه، ونسب الى الامام الاعظم، شعر: جميع العلم في القرآن لكن... تقاصرت عنه افهام الرجال

ثم يعني بيا وروسته د قيامت په ورځ تاسي دا ټولـه امم خدای پاک ته حشر کبرې ليجازي الله كلاً بعلمه ان كان خيراً فخير، وان كان شراً فشراً.

**يوه سه**: چي لـه ابي هريرة رضي الله عنه څخه په صحيح سند ثابته ده. ده وويل چي يحشر الخق كلهم يوم القيامة حتى البهائم والدواب والطير فيبلغ من عدل الله تبارك وتعالى چي بې ښكر حيوان چي جما يې بولي به له ښكر والا څخه چي قرناً يې بولي كسات د ظلم ورواخلي، وروسته خدای پاک ټولو حيواناتو ته ووايي "كونوا تراباً" ټولـه خاوري سئ ولـي چي بهائم او حيواناتو ته جنت نشته، او نه دوږخ، نو کافران چي د حيواناتو دا حال ووينې، نو هر يو به ووايي ياليتني كنت تراباً" يعني کاشکي زه هم خاوري سوی وای يعني له دوږخ څخه خو به خلاص وای.

وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا صُمٌّ وَّبُكْمٌ فِي الظُّلُمٰتِ

او هغه کسان چي تکذيب کوي زما د آياتو يعني الآيات القرآنية بانها اساطير الاولين، او يا د معجزاتو زما چي عليه الصلوٰة والسلام ته مي ورکړي دي بانها سحر مبين کانه دي چي د آيات قرآنية په سماع د تدبر او قبول نه اوري جمع د اصم ده "بكم" جمع د ابكم ده يعني گونگيان دي چي په حق سره خبري نه کوي د توحيد، او يا کون القرآن من عند الله العزيز العلام. او په تاريکی کي د کفر او د جهل او د عناد دي او په تاريکه د تقليد د آبا.

**يوه سه**: چي "في الظلمات" خبر بعد الخبر د الذين دی.

مَن يَشَإِ اللَّهُ يُضْلِلْهُ وَمَن يَشَأْ يَجْعَلْهُ عَلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ۝

كه د خدای ﷻ مشيت او اراده سي د اضلال د يو چا هغه گمراه كوي او چي اراده يې سي د هدايت د يو چا هغه پر سمه لار گرځوي يعني دين الاسلام.

**يوه سه**: چي مفعول د يشأ دواړه ځايه محذوف دی. يعني اضلاله في الاول وهدايته في الثاني كما اشرنا الى ذالک في ترجمة الآية.

قُلْ أَرَءَيْتَكُمْ

ووايه ته اې محمده ودې مشركانو ته د مكې. تحقيق هذه اللفظة اى ارئيتكم. فرأ نحوي وايي چي عرب وايي ارئيتک وهم يريدون اخبرنا. او محقق تفتازاني وايي وانما وضعوا الاستفهام عن العلم. او رؤية البصر لطلب الخبر لان رؤية البصر سبب للعلم والعلم سبب للاخبار فوضع السبب موضع المسبب. والمعنى تاسي خبر راكړئ اې مشركانو د مكې چي ستاسي خدايان به تاسي ته فائده ورسوي چي تاسي رابولي په وخت د عذاب الله في الدنيا او يا چي پر تاسي قيامت راسي. او دا خو معلومه په تجربه ده چي د بتانو هيڅ فائده په دفع كي د عذاب نه رسېږي. نو ځكه بيضاوي وايي چي استفهام لپاره د تعجب دی يعني تاسي د داسي معبودانو ولي عبادت كوئ چي نفع او اميد مو ورته نسته.

**مزيد تحقيق**: يوه سه! چي كاف حرف خطاب دی چي د تاكيد لپاره د ضمير مخاطب فاعل راوړی دی لتاكيد الاسناد لامحل له من الاعراب كالكاف في اياک بلكي دا كاف پر احوال د مخاطب دلالت كوي من الافراد نحو اياک والتثنية والجمع نحو اياكم والتذكير نحو اياکَ بفتح الكاف والتانيث نحو اياکِ بكسر الكاف. نو حقيقت د لفظ خو طلب د خبر دی يعني الاستفهام لكن جرد عن معنى الطلب واستعمل في العرف في الاخبار عن شئ.

إِنْ أَتَاكُمْ عَذَابُ اللَّهِ أَوْ أَتَتْكُمُ السَّاعَةُ أَغَيْرَ اللَّهِ تَدْعُونَ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ۝

كه تاسي ته راسي عذاب د خدای ﷻ يعني په دنيا كي لكه نورو امتو ته چي

راغلی ؤ، او یا راسي وتاسي ته قیامت سره د خپلو اهوالو او مخاوفو، آیا د خدای څخه
به غیر تاسي بولئ یعني په دفع کي د عذاب استفهام انکاري دی که تاسي رشتیا
وایاست چي بتان آلهة دي نو خو هغه خواست وکړئ په دفع کي د عذاب د قیامت.

بَلْ اِيَّاهُ تَدْعُوْنَ فَيَكْشِفُ مَا تَدْعُوْنَ اِلَيْهِ اِنْ شَآءَ وَتَنْسَوْنَ مَا تُشْرِكُوْنَ ﴿٤١﴾

بلکي خاص الخاص تاسي خدای ﷻ ته خواست کوئ په دفع کي د عذاب
متوجه وتاسي ته، نو خدای پاک هم کشف کوي یعني لیري کوي هغه مصیبت
چي تاسي خواست کړی دی خدای ﷻ ته د کشف که اراده سره د خدای وکشف
ته هغه یعني په دنیا کي نه په اخیرت کي، ولي وما دعاء الکافرین الا في ضلال،
او ستاسي څخه هېر سي هغه بتان چي تاسي یې عبادت کاوه.

**پوه سه**: چي مراد نسیان حقیقةً نه ده بلکي لازم د نسیان وهو الترک ای تترکون
الهتکم في ذالک لانکم تعلمون ان القادر علی کشف الضر هو جل ذاته دی.

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا اِلٰى اُمَمٍ مِّنْ قَبْلِكَ فَاَخَذْنٰهُمْ بِالْبَاْسَآءِ وَالضَّرَّآءِ لَعَلَّهُمْ يَتَضَرَّعُوْنَ ﴿٤٢﴾

او قسم په خدای دی چي موږ استولي دي یعني رسولان و امتو ته تر تا د مخه
نو موږ ونیول چي دوی تکذیب د رسولانو وکړی په سختی او فقر سره او په
امراضو په افاتو سره یعني في الانفس والاموال والاولاد، ددې لپاره چي دوی به
تضرع او عجز وکړي یعني له کفره به توبه وکاږي په عجز سره او د رسولانو خبره
به ومني، او ډېر تذلل به بخښ وغواړي.

**پوه سه**: چي تنوین د امم لپاره د تکثیر دی ای الی امم کثیرة، او کلمه د من
په قبلک کي د ابتداً د غایت ده ای کائنة من قبل زمانک پر مذهب د کوفیانو کما
قولهم نمت من اول اللیل وصمت من اول الشهر، او مظهري او سنان چلپي هم
وایي چي من زائد دی په نېز د هغه چا چي زیادت د من په کلام موجب کي روا
بولي، واما عند غیره، نو کلمه د من په معنی د "في" ده کما في قوله تعالی "اذا
نودي للصلوة من یوم الجمعة ای في یوم الجمعة"

**پوه سه**: چي لفظ د "فا" په "فاخذناهم" کي فصیحیة ده یعني اظهار ددي
کوي چي کلام مبني دی پر محذوف باندي ای فکذبوا رسلهم فاخذناهم.

فَلَوْلَآ اِذْ جَآءَهُمْ بَاْسُنَا تَضَرَّعُوْا وَلٰكِنْ قَسَتْ قُلُوْبُهُمْ وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ

نو ولې چې دوی ته راغلی وای عذاب زمونږ دوی به تضرع کړې وای یعنې له کفر څخه به یې توبه کښلې وای، معنی دا چې تضرع یې ونه کړه او پښېمانه سوه، کلمه د "لكن" لپاره د استدراک ده یعنې څه سبب ؤ چې دوی تضرع او پښېماني ونه کړه یعنې ددوی زړونه سخت وه چې په هغه باساً د غفلت د خوابه بیداره نه سوه، او ښائسته کړی ؤ ددوی ته شیطان هغه څه چې دوی یې عمل کاوه من الكفر والمعاصي، نو دوی ښه ګڼل سیئات اعمالهم او په خپلو اعمالو خوشحاله وه په تزیین د شیطان.

فَلَمَّا نَسُوْا مَا ذُكِّرُوْا بِهٖ

څه وخت چې دوی هېر کړه "نسیان دلته په معنا د ترک دی" یعنې چې دوی پرېښو هغه شی چې دوی ته نصیحت په کړه سوی ؤ له رسولانو د خوا څخه او اوامر او نواهي راغلي وه او په باسا او ضراسره له خوبه څخه د کفر او عصیان نه سوه ویښ، او لار د تضرع او توبې یې نه کړه مختاره، بیت

چون فرود آید بلایی دافعی    جز تضرع نبود دیگر.

فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ اَبْوَابَ كُلِّ شَيْءٍ

موږ خلاصې کړې پر دوی دروازې د هر شي یعنې من انواع النعم استدراجاً لهم، په حدیث مرفوع کې د عقبه بن عامر ﷺ روایت دی چې علیه الصلوٰة والسلام وویل "اذا رئیت یعطي العبد في الدنیا وهو مقیم علی معاصیه مایحب فانما هو استدراج، ثم تلی علیه الصلوٰة والسلام هذه الآیة.

**ترجمه**: که تا ولیدی چې ورکړه کېده ویوه بنده ته په دنیا کې او دی پر خپلو معاصیو ټینګ ولاړ ؤ هغه شی چې دده په خوښ ؤ من نعم الدنیا، نو هغه نه دی مګر استدراج بیا علیه الصلوٰة والسلام دا آیت ووایه فلما نسوا ماذکروا به ﴿ الخ ﴾

حَتّٰۤى اِذَا فَرِحُوْا بِمَاۤ اُوْتُوْۤا اَخَذْنٰهُمْ بَغْتَةً فَاِذَا هُمْ مُّبْلِسُوْنَ

تر هغه وخته چې دوی به خوشحاله سوه په هغو نعمتو چې دوی ته د

خدای ﷻ له خوا څخه ورکړه سوی و مومن ته دوی ونیول یعني په نزول د عذاب الهي ناببره نو ناګاه دوی به نا امیده سوه له هره خیره څخه.

فَقُطِعَ دَابِرُ الْقَوْمِ الَّذِينَ ظَلَمُوا ۚ وَالْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿٤٥﴾

نو قطع سو، په قاموس کې وایي چي د ابر آخر کل شئ في الاصل والمعنی چي تیوله هلاک سوه چي بو یې هم نسو پاته چي له هغه څخه دي زېږېدل وسي. یعني نسل یې یو وار قطع سو.

**پوه سه**: چي په القوم الذین ظلموا کې وضع د اسم ده په ځای کې د ضمیر لبیان سبب قطع د ابرهم وهو ظلمهم وکفرهم او که یې داسي ویلای فقطع د ابرهم صحیح خو ؤ، لکن بیان د سبب نه وېکښېي. او حمد دی خدای ﷻ لره چي رب د عالمیانو دی.

**پوه سه**: چي خدای پاک په خپله حمد ووایه پر هلاک د ظالمانو ولي چي دا یو نعمت جلیله د خدای ﷻ دی خپل دوستان مومنان یې ددوی له شره وساتل او مځکه یې پاکه کړه له عقائدو فاسده وو څخه او اعمال خبیثه ؤ چي سبب د نزول د عذاب به ګرځېدای که ظالمان پر خپل حال پاته وای.

قُلْ أَرَأَيْتُمْ إِنْ أَخَذَ اللَّهُ سَمْعَكُمْ وَأَبْصَارَكُمْ وَخَتَمَ عَلَىٰ قُلُوبِكُم مَّنْ إِلَٰهٌ غَيْرُ اللَّهِ يَأْتِيكُم بِهِ ۗ

ته ورته ووایه و کفارو ته د مکې که خدای ﷻ ستاسي واخلي اورېده ستاسي یعني کاڼه مو کړي او سترګې درڅخه واخلي یعني ړانده مو کړي او مهر یعني معنوي واچوي پر زړونو ستاسي چي باره په هیڅ شي نه پوهېږئ، نو څوک دی معبود غیر د خدای ﷻ څخه چي ستاسي معبودان باطله دي چي تاته دي بیرته درکړي دغه حواس مسلوبه یعني هیڅ څوک یې نه سي ردولای.

**فائده**: ابصار او قلوب یې په صیغه د جمع راوړه او سمع یې مفرد ذکر کړی سبب یې دادی چي سمع په اصل کې مصدر دی یطلق علی الواحد والکثیر کما هو القانون الصرفي بخلاف الابصار لانه بمعنی العین ده وکذا القلوب.

**فائده**: ضمیر مفرد د به راجع وتیولو مذکوراتو ته به تاویل د ماذکر.

انْظُرْ كَيْفَ نُصَرِّفُ الْآيٰتِ ثُمَّ هُمْ يَصْدِفُوْنَ ﴿۴۶﴾

او گوره اې محمده څرنګه موږ تبیین د آیتو کوو. یعني وکافرانو ته وروسته دوی اعراض ځني کوي یعني عمل نه په کوي چي ایمان راوړي او کلمه د "ثم" لپاره د استبعاد د اعراض ددوی وروسته تر بیان واضح د خدای ﷻ ، بغوي رحمه الله وایي چي د آیاتو علامات داله دي پر توحید، او بیضاوي وایي چي تصریف څخه د آیاتو مراد ګاهي پر طریقه د ترغیب بیانول دي او ګاهي پر ډول د ترهیب بیانول دي وتارة بالتنبیه والتذکر باحوال المتقدمین وغیر ذالک من البیانات الالٰهیة بیا هم کفار اعراض او مخ له اسلامه اړوي.

قُلْ اَرَءَيْتَكُمْ اِنْ اَتٰىكُمْ عَذَابُ اللّٰهِ بَغْتَةً اَوْ جَهْرَةً هَلْ يُهْلَكُ اِلَّا الْقَوْمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿۴۷﴾

ته ورته ووایه اې محمده یعني مشرکانو ته د قوم یعني اهل مکه تاسي خبر راکړئ اې مشرکانو.

**درویش وایي:** چي وقد مر بیان ارئیتکم عنقریب که تاسي ته راسي عذاب د خدای ﷻ ناببره یعني دمخه تر ظهور د یوې علامې د عذاب، او یا ښکاره راسي یعني وروسته تر ظهور د علاماتو.

**پوه سه:** چي بغتةً او جهرةً دواړه منصوب دي چي مفعول مطلق دي د "آتاکم" یعني اتیاناً بغتة من تقدم امارة اتیانه او اتیاناً جهرةً ای ظاهرة بتقدم اماراته قبل وقوعه. ابن عباس رضي الله عنه او حسن بصري رحمه الله د "بغتةً تفسیر په لیلاً سره کوي او تفسیر د "جهرة" په نهاراً سره کوي، آیا هلاکېږي به.

**پوه سه:** چي "هل یهلک" استفهام انکاري دی یعني نه هلاکېږي له دې سببه استثنا د الاالقوم الظالمون صحیح سوه، فالتقدیر مایهلک الا القوم الظالمون یعني چي ظلم یې پر خپلو ځانو کړي وي په کفر سره.

**فائده:** پوه سه! چي د استخبار متعلق محذوف دی، یعني خبر راکړئ چي که عذاب د خدای ﷻ بغتةً یا جهرةً راسي لکه تر تاسي دمخه امتو باندي دغه ډول

عذاب نازل سوی دی. نو بہ ستاسي حال څه وي ثم بين الحال بقوله فهل يهلك اه.
يعني نو نه هلاکيږي مگر هغه چي ظالمان وي.

وَمَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِينَ إِلَّا مُبَشِّرِينَ وَمُنْذِرِينَ

موږ نه استوو رسولان مگر زیری کونکي وه مؤمنانو ته په جنت النعیم سره
او بېرونکي د کافرانو ته په دار البوار جهنم سره. ددې آیت مضمون دادی چي
رسولان قادر نه دي چي کفارو ته به دوی د زړه پر خوښه معجزه ښکاره کوي او
نه د چا پر هدایت قادران دي الا ان یشاء الله رب العالمین.

فَمَنْ آمَنَ وَأَصْلَحَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ۝٤٨

نو هغه څوک چي ایمان راوړي یعني پر رسولانو د خدای ﷻ او عمل هم
صالح وکړي یعني موافق د ماجاء به الرسول، نو بېره نسته پر دوی باندي له هغه
عذاب څخه چي رسولانو دوی په بېرولہ که د دنیا وي او که د آخیرت او نه به دوی
غمجن وي په فوات د مابشرهم الرسل به من الثواب العاجل والآجل.

وَالَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا يَمَسُّهُمُ الْعَذَابُ بِمَا كَانُوا يَفْسُقُونَ ۝٤٩

او هغه کسان چي تکذیب وکړي زموږ د آیتو یعني دروغ یې بولي دوی ته
به ورسېږي عذاب د دنیا او اخیرت لکه ابوجهل سره د اوویا کسانو ته چي
ورسېدی په بدر کي او عذاب د اخیرت خو متیقن دی په سبب د دوی د فسق
یعني خروج له ایمان او طاعت څخه.

**پوه سه:** چي کلمه د باء سببیه ده او کلمه د ما مصدري ده.

**پوه سه:** چي په حدیث شریف کي راغلي دي چي ملائکه یعني کرام
الکاتبین د یو چا سیئات د خپل صاحب پورته کړي اسمانو ته چي د لوح محفوظ
سره یې وګوري په ځای کي د سیئات حسنات نوشته وي، نو ملکي ؏ و خدای پاک
ته پر سجده سي او داووایي چي موږ په دې بنده پسي نه دي نوشته کړي مګر نه
هغه شی چي ده عمل په کړی دی، خدای پاک ورته ووایي صدقتم لکن دا بنده
پر ګناه پښېمانه سو، او توبه یې وکښل او ماته یې د سترګو اوښکي شفیع

کړي، نو ما یې ګناه وروبخښله او ما مهرباني پر وکړه په خپل کرم سره وانا اکرم الاکرمین، قال الشاعر

هر کجا ابر روان سبزه شود — هر کجا اشک روان رحمت شود
کاری کنیم ورنه خجالت برآورد — روزی که رخت جان بجهانی دیگر بریم

قُلْ لَّآ اَقُوْلُ لَكُمْ عِنْدِيْ خَزَآئِنُ اللّٰهِ

ته ورته ووایه اې محمده وکفارو ته د مکې چې زه دا نه وایم تاسي ته چې زما سره یعني زما په تصرف کې خزانې د رزق د خدای ﷻ دي حتی چې تاسي دا اعتراض وکړی چې ته د خدای رسول وایي نو تا ته به یې د خپلو خزانو څخه رزق درکولای او سره ددې چې ته لکه نور خلګ په نفقه پسي سرګردان یې.

وَلَآ اَعْلَمُ الْغَيْبَ

او زه په پټو شیانو هم نه یم خبر تر هغو چې ماته وحي ونه سي.

**پوه سه:** چې ولا اعلم الغیب عطف دی پر عندي خزائن الله باندي یعني دا هم نه در ته وایم چې زه په غیب خبریم او کلمه د لا زائده ده لپاره د تاکید د نفي ده.

وَلَآ اَقُوْلُ لَكُمْ اِنِّيْ مَلَكٌ ۚ اِنْ اَتَّبِعُ اِلَّا مَا يُوْحٰٓى اِلَيَّ ۚ

او دا هم نه وایم چې زه یو ملکه له ملائکو څخه د خدای ﷻ یم حتی تاسي دا اعتراض وکړی چې ته اکل او شرب او نکاح کوې او ملکي خو دا کارونه نه کوي، زه متابعت نه کوم په تعلیم کې د احکامو د دین مګر د هغه شي متابعت کوم چې ماته یې وحي کړه سوي وي یعني نبي یم لکه نور انبیاء او هغه کارونه چې نورو انبیاؤ به کوله من تعلیم التوحید والطاعات والمعاصي، په دې کې هیڅ استحالة نسته، پوه سه! چې دا رد دی ددې چې اهل مکه به بعیده بلل دعوه د نبوت دده.

**فائده:** په دې آیت کې "عندي خزائن الله" رد دی د هغه سوال د کفارو چې علیه الصلوٰة والسلام ته به یې ویل چې که ته نبي یې نو خدای ته ووایه چې موږ ته دي د صفا غر سره زر کړي الی غیر ذالک من اقوالهم النادرة.

**پوه سه:** چې وحي درې قسمه دي (۱) اول دا چې په قول د ملکي ثابت وي والقرآن من هذا القبیل (۲) چې په اشاره د ملکي ثابتي وي والی هذا الاشارة

بقوله عليه الصلوٰة والسلام ان روح القدس يعني جبرائيل نفث ي روحي ان نفساً لاتموت حتىٰ تستكمل رزقها (جبرائيل عليه السلام زما په زړه کي راواچول چي هيڅ نفس نه مري تر هغو چي خپل رزق پوره نه کړي. (۳) هغه چي وزړه ته د عليه الصلوٰة والسلام ښکاره سي په الهام د خدای له خوا څخه بلا شبه. كما اشير اليه بقوله تعالى "لتحكم بين الناس بما اراک الله"

**مسئله**: اشعريه او ډېر متکلمين په دغه آيت سره يعني ان اتبع الا يوحىٰ الي دليل وايي پر دې چي عليه الصلوٰة والسلام ته اجتهادي حکم نسته. ماتريديه وايي چي اجتهاد د عليه الصلوٰة والسلام په اخير لکه وحي ابتدائي ګرځي. ولي چي عليه الصلوٰة والسلام يو اجتهادي حکم وکړی او پر هغه حکم قرار وکړه سي. نو دا معلومه سوه چي داغه حکم د خدای جل جلاله دی والا لتنبه على الخطأ بخلاف سائر مجتهدي الامة المرحومة فتدبر في الفرق بين اجتهاد النبي ﷺ واجتهاد مجتهدي امته.

قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الْأَعْمَىٰ وَالْبَصِيرُ ۚ أَفَلَا تَتَفَكَّرُونَ ﴿٥٠﴾

ته وقوم ته ووايه آيا سره برابر دي ړوند او کتونکی.

**پوه سه**: چي مراد له ړانده څخه ړوند د سترګو نه دی بلکي اعمى القلب دي چي تمييز بين الحق والباطل نه سي کولای. نو له هغه شي څخه انکار کوي چي انکار يې نه وي روا او تصديق د هغه شي کوي چي تصديق نه وي روا وهم اهل مكة المشركين، او په سترګو ليدونکي چي تمييز د حق او باطل کولای سي او د هغه تصديق کوي چي شهادت د معجزاتو ورسره وي او د هغه چا تکذيب کوي چي وايي مع الله الهة اخرىٰ او ډيري چي بتان دي شفعاً عند الله بولي او ملائكه بنات الله الى غير ذالک چي دا بصير نو عبارت د مسلمان څخه دی. آيا تاسي فکر نه کوئ چي حق ته لار پيدا کړئ.

وَأَنذِرْ بِهِ الَّذِينَ يَخَافُونَ أَن يُحْشَرُوا إِلَىٰ رَبِّهِمْ

او ته ويېروه په ما يوحىٰ اليک سره يعني القرآن الكريم هغه کسان چي بېرېږي چي موږ په حشر سو يعني په ورځ د قيامت وخدای جل جلاله ته د دوی. قاضي

بیضاوي وايي چي په دې موصول کې هغه کسان داخل دي چي مؤمنان وي لکن په عمل کې يې تفريط کړی وي يا په ترک د واجباتو او يا په ارتکاب د منهياتو، او هغه کسان هم پکښې داخل دي چي مطلقاً حشر الى الله جائز بولي که مؤمن وي او که کافر من اهل الكتاب. ولي چي د بیرولو وه کسانو ته امکان د فائدې سته بخلاف الذين يستحيلون الحشر الى الله المنكرون للبعث بعد الموت، ولي چي هغو ته اندازه په مايوځی سره فائده نه کوي.

**درويش وايي:** چي پر بيضاوي باندي مظهري يو نامعقوله سوال کړی فارجع الى تفسيره.

لَيْسَ لَهُم مِّن دُونِهِۦ وَلِيٌّ وَلَا شَفِيعٌ لَّعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ ۝

نشته دوی لره ماسوی له خدایه څخه دوست او نه شفاعت کوونکی یعني بې له اجازې د خدای ﷻ ددې لپاره چي دوی به گوندې وبیرېږي او ایمان به راوړي.

**فائده:** د بیضاوي د دمخه آیت د تفسیر تائید مولی ابو السعود رحمه الله کړی دی.

**پوه سه:** چي په حدیث کې دي چي په مختلفو روایاتو سره راغلی دی چي حاصل د ټولو دادی چي رئیسان او مشران د قریشو و علیه الصلوٰة والسلام ته راغله او ورته وه یې ویل چي په مجلس کې فقراً د مؤمنانو لکه صُهیب او عمار بن یاسر او خباب او بلال او سلمان او نور رضي الله عنهم همیشه ناست وي چي اکثره یې مریان دي او یو ازې د ورېو چینې یې اغوستي وي چي په گرمی کې خوله وکړي د پر بد بوی یې ځني ولاړیږي، نو ته د خپل مجلسه څخه دغه کسان وشړه موږ به راځو او ستا سره به کښېنو. علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل ما انا بطارد المؤمنین. زه نه یم داسي چي شړم به مسلمانان له خپل مجلس څخه. نو رئیسانو د قریشو ورته وویل چي موږ راسو دوی ولاړ وه. ولي چي تاته له اطرافو څخه د عربو هیئتونه راځي. نو موږ نه غواړو چي وفود د عربو موږ ووېني د ورته فقراؤ په مجلس کې، نو بیا چي موږ ولاړ سو نو ته چي هرڅوک په مجلس کې کښېنوې کښېنوه یې. د علیه الصلوٰة والسلام په شریف زړه کې دا خبره ددوی خوښه سوه طمعاً في ايمان هؤلاء الرؤسا. فانزل الله تعالى هذه الآية.

وَلَا تَطْرُدِ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيْدُوْنَ وَجْهَهٗ

ته مه شړه له مجلس شریف څخه هغه کسان چي دوی عبادت او ذکر کوي د ربهم او دوی په اول کي د ورځي چي غدات يې بولي په عربي ژبه د ورځي له اول څخه بیا تر زوال پوري دی، او بیا تر غروب الشمس چي عشّی يې بولي دا ذکر او طاعت کوي او دوی په دې دوام داره طاعت سره اراده لري د وجه د خدای ﷻ يعني رضا د خدای ﷻ يعني لاشئ من اغراض الدنيا چي دې ته اخلاص وايي. او اخلاص محور د ټولو طاعاتو او اذکارو دی کما قال السعدي رحمه الله.

عبادت باخلاص نیت نکوست　　وگرنه چه می آید زبی مغز پوست

یو بل عارف وایي

بر زبانت یا صمد پیدا ودر دل یا صنم
ای بباطن کافر وظاهر مسلمانی چه سود

**پوه سه**: چي جمله د يريدون حال ده له فاعل څخه د يدعون.

**فائده**: مراد له ذکر د غدات او عشي څخه دوام دی پر ذکر ومن دام ذکره تعالی دام جلوسه معه تعالی کما ورد انا جليس من ذكرني.

مَا عَلَيْكَ مِنْ حِسَابِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ وَّمَا مِنْ حِسَابِكَ عَلَيْهِمْ مِّنْ شَيْءٍ

**پوه سه**: چي رئيسانو د قريشو خو اول ددوی پر فقر او مسکنت د علیه الصلوٰة والسلام څخه يې سوال د طرد وکړی هغه چي علیه الصلوٰة والسلام نه کړه قبوله په نزول د هغه آیت ولا تطرد الذین الآیة وروسته يې بیا دا خبره علیه الصلوٰة والسلام ته وکړه چي فقرا او مساکین چي پر تا ټول دي داسي نه ده چي دوی په اخلاص ستا دين قبول کړی بلکي ستا په مجلس کي دوی ته څه ناڅه ماکولات او مشروبات رسېږي، نو خدای ﷻ دا آیت نازل کړی چي نسته پر تا باندي له حساب څخه ددوی یو شی يعني دوی په اخلاص الایمان د تاسره جمع سوي او که څرنګه، او نسته له حساب څخه ستا پر دوی باندي یو شی.

فَتَطْرُدَهُمْ فَتَكُوْنَ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ ۝

چي ته وشړې دوی نو ته به وګرځې له ظالمانو څخه، ولي دي ناحقه وشړل

كما هو معنى الظلم.

**پوه سه:** چي "فتكون" منصوب دی جواب د نهي دی يعني لاتطرد الذين".

**فائده:** د نحوي په کتابو کي وايي چي يو سړی وبل ته ووايي ماتاتينا فتحدثنا. نو دا فتحدث منصوب دی جواب د نفي دی. والمعنى ان انتفا التحديث لانتفا سببه الذي هو الاتيان، والآية الكريمة من هذا القبيل يعني تطرد منصوب دی او ځواب دی يعني ما عليک من حسابهم آه. يعني که ضرر د حساب ددوی پر تا وای نو دا به سبب وای د طردد ددوی لکن هذا سبب غير واقع حتى يقع مسببه وهو الطردد.

**درويش وايي:** چي دا تحقيق د اعراب ددې آيت مطابق د اقوالو سره د مفسرينو.. ع.... قياس کن زگلستان من بهار مرا.

وَكَذَٰلِكَ فَتَنَّا بَعْضَهُم بِبَعْضٍ

**پوه سه:** چي کلمه د کاف زائده ده كما في قوله تعالى "ليس كمثله شئ" او مشار اليه په ذالک سره ضلال د قريشو دی "وکذالک" منصوب دی معفول مطلق دی د "فتنا" والمعنى اضللنا ذالک الضلال، او له بعضهم څخه مراد رئيسان د قريشو دي او د "ببعض" څخه مراد فقرا د مؤمنانو دي، ولي چي رئيسان د قريشو چي پر فتنه د کفر ټينګ سوه او له اسلام څخه يې منع وکړه په سبب د دغو فقراو چي په مجلس شريف کي به د عليه الصلوٰة والسلام ناست وه، او محقق بيضاوي کاف زائد نه بولي او تفسير د آيت يې داسي کړی دی مثل ذالک الفتن وهو اختلاف الناس في امور الدنيا بالفقر والغنا فتنا يعني ابتلينا بعضهم ببعض في امر الدين فقدمنا هؤلا الفقرا عن اشراف قريش بالسبق الى الايمان انتهى بعبارته.

لِّيَقُولُوا أَهَٰؤُلَاءِ مَنَّ اللَّهُ عَلَيْهِم مِّن بَيْنِنَا

چي ووايي دغه رؤسا او اغنيا، او لام لپاره د عاقبت دی كما قولهم لدوا للموت وابنوا للخراب، آيا دغه فقيران چي اکثره يې مريان دي او بې وزلي او بې چاره دي، خدای احسان وکړی پر دوی د نیک بختی او هدايت "من بيننا" ای من

دوتنا يعني مستحق د خداى ﷻ د احسان خو موږ ؤ چي رئيسان د قوم يو.

**پوه سه**: چي استفهام لپاره د انکار دی د تخصيص د فقرا د حق ورسهدو او وړاندي وايي يعني که اسلام کار د خير واى ماسبقونا اليه، ولي چي موږ په سبب د رياست او غنا مستحق د خير يو، نو ددوی زعم باطل دا ؤ چي اسلام د خير کارونه دي، نعوذ بالله من ذالک.

## أَلَيْسَ اللَّهُ بِأَعْلَمَ بِالشَّاكِرِينَ۝

آيا نه دی خداى ﷻ خبر په شاکرانو بندګانو.

**پوه سه**: چي استفهام لپاره د انکار دی او نفي د نفي اثبات دی يعني خداى ﷻ په خپلو شاکرانو بندګانو خبر دی چي هم دغه فقرا او مساکين بخلاف رؤسا القريش چي خداى ﷻ په خبر دی چي دوی شاکر بندګان نه دي بلکې منکر او متکبر بندګان دي، نو ځکه دغه فقرا په مجلس شريف سره د عليه الصلوٰة والسلام مختاره کړه او رئيسان او متکبران د قريشو له دې نعمت عظمیٰ څخه محرومه کړه. بيت

تکبر عزازيل راخوار کرد      بزندان لعنت گرفتار کرد

بغوي رحمه الله په خپل سند سره روايت کړی دی له ابي سعيد الخدري رضي الله عنه څخه چي زه کښېنستم په بعض نفرو کي د مهاجرينو او دوی يو په بل ځانونه پټول له سببه د لغ والي او يو قاري موږ ته قرآن وايه په دې وخت کي رسول الله ﷺ راغلی نو موږ ته ودرېدی، نو چي عليه الصلوٰة والسلام ودرېدی نو قاري قرائت بس کړی، نو عليه الصلوٰة والسلام موږ ته سلام واچاو، او وه يې ويل چي تاسي څه کوله موږ ورته وويل يا رسول الله موږ ته قاري قرآن وايه او موږ غوږ ورته نيولی ؤ، نو عليه الصلوٰة والسلام وويل الحمدلله الذي جعل من امتي من امرني ان اصبر نفسي معهم. وروسته عليه الصلوٰة والسلام زموږ په منځ کي تشريف فرما سو، او وروسته يې اشاره وکړه چي پر ما شاوخوا حلقه سئ، نو موږ هم شاوخوا پر راوګرځېدلو او زموږ ټولو مخان د عليه الصلوٰة والسلام ته ښکاره سوه. وروسته رسول الله ﷺ وويل خوشحاله اوسئ اې ډلي د مساکينو د

مهاجرينو بالنور التام يوم القيامة چي دوی به داخليږي وجنت ته دمخه تر اغنياؤ د خلگو په نيمه ورځ يعني د قيامت چې مقدار يې پينځه سوه کاله دي.

**وَإِذَا جَآءَكَ ٱلَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِـَٔايَـٰتِنَا فَقُلْ سَلَـٰمٌ عَلَيْكُمْ**

او هغه وخت چي تاته راسي اې محمده هغه کسان چي ايمان يې راوړی وي پر آيات زموږ چي قرآن کريم دی، نو ته ورته ووايه سلام عليکم.

**پوهه**: چي عکرمه رحمه الله وايي چي دا آيت په شان کي د هغو کسانو نازل سوی دی چي خدای پاک نهي کړی خپل نبي له طرد څخه د هغو لکه رئيسانو د قريشو ددوی د طرد مطالبه کړې وه له آنحضرت ﷺ څخه. نو هر وخت چي به دوی عليه الصلوٰة والسلام وليدی ابتداً د سلام به ده مبارک ورته کوله تعظيماً لامر الله ورغماً على انوف روسا قريش. او عطا رحمه الله وايي چي دا آيت په شان کي د ابي بکر، عمر، عثمان علي، بلال، سالم، ابو عبيدة، مصعب بن عمير، حمزه، جعفر، عثمان بن مظعون، عمار بن ياسر، ارقم بن الارقم او ابي سلمة رضي الله تعالى عليهم اجمعين چي دا کسان چي به اجتماعاً يا انفراداً و عليه الصلوٰة والسلام ته راغله ابتداً د سلام به ده مبارک ورته کوله.

**فائده**: اذا" ظرف دی متضمن معنا لره د شرط دی، او "يؤمنون" لپاره د استحضار د حالت ماضيه دی، او "بآياتنا" متعلق دی په يؤمنون سره، او "فقل" جواب د "اذا" دی او "سلام عليکم" جمله اسميه ده منصوب محلاً مقوله د قل ده.

**سوال**: سلام خو نکره مخصصه نه ده نو ابتدائيت يې څرنگه صحيح دی، ولي نحات وايي چي مبتدأ به يا معرفه وي او يا نکره مخصصه؟

**ځواب**: جامي رحمه الله په شرح کي د کافيې وايي چي "سلام" نکره مخصصه ده والمعنى سلام من قبلي عليکم وان شئت مزيد التفصيل فارجع الى شرح عبد الرحمن الجامي رحمه الله عليه.

**پوښتنه**: د سلام طريقه مسنونه خو داده چي جائي به ابتدأ بالسلام کوي، نو عليه الصلوٰة والسلام د څه حکمت لپاره خدای پاک امر کړی په ابتدأ سره د سلام و دوی ته؟

**خواب:** تا چي د علیه الصلوة والسلام له خوا پر دوی رعب او عظمت شان ده مبارک سام پر دوی پرېږ نه وځي، هذا هو السلام في الدنيا من جانب سيد المرسلين عليهم، واما في الآخرة كتسليم الملائكة على المؤمنين عند دخول الجنة بقولهم سلام عليكم طبتم فادخلوها خالدين. وعند الاستقرار في الجنة فيبتدئ على المؤمنين رب العالمين بالسلام بقوله "سلام قولاً من رب رحيم"

**پوه سه:** چي د سلام معنا سلامتيا ده له آفاتو څخه د دنيا او آخرت يا اخباراً او انشاً. فتفكر ايها العزيز.

كَتَبَ رَبُّكُمْ عَلَىٰ نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ أَنَّهُ مَنْ عَمِلَ مِنكُمْ سُوءًا بِجَهَالَةٍ

په حديث شريف كي راغلي دي چي يو څو كسه و عليه الصلوة والسلام ته راغله او ده مبارك ته يې وويل چي زموږ څخه ډېر ګنهونه سوي دي، نو موږ ته د بخښي لار سته، نو دا آيت نازل سو. او معنا د آيت داده چي قضاً كړې دی او واجب كړې دی ده پر خپل ذات مقدسه لا بالوجوب الشرعي ولا بالوجوب العقلي بلكي پر طريقه د تفضل او احسان او دا وجوب احساني ددې سره منافي نه دی چي خدای پاک خو فاعل مختار دی فكيف الوجوب، ولي چي د وجوب معنی ټينګ والی د احسان دی.

**پوه سه:** چي "انه" بدل دی له "رحمت" څخه والتقدير كتب على نفسه انه من عمل الخ. والضمير للشان يعني چي شان دادی كه څوك عمل وكړي د بد كار يعني معصيت او "بجهالة" حال دی له فاعل څخه د "عمل" ای عمل متلبساً بجهالة. يا حقيقةً جاهل وي يعني په دې نه پوهېږي چي پر دې كار به عقوبت د خدای ﷻ له خوا وي. او يا حكماً جاهل وي يعني عالم په بد والي د كار خو خبر وي بيا هم هغه بد كار كوي فان العالم بالسوء والجاهل بالسوء سواءً. بلكي جاهل خو كېدای سي چي معذور وګڼل سي. ولهذا ورد في الحديث الصحيح للجاهل ويل وللعالم سبعين ويلاً.

ثُمَّ تَابَ مِن بَعْدِهِ وَأَصْلَحَ فَأَنَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٥٤﴾

بيا رجوع وكړه وروسته تر عمل د ګناه او اصلاح د عمل وكړي يعني چي بيا نو عود و هغې ګناه ته ونه كړي وقيل بالابتهال والاستغفار. نو په تحقيق خدای

غفور او بخښونکی د هغې ګناه دی او مهربانه دی چې په ځای کې د هغې ګناه حسنه نوشته کړي، قال الشاعر.

درمندان ګناه را روز وشب شربتی بهترز استغفار نیست
آرزو مندان وصل یار را چاره غیر از نالها وزار نیست

ومعنی "زار" العجز والانکسار.

**پوه سه**: چې کلمه د "من" مبتدأ ده او جمله د "فانه غفور رحیم" خبر دی د مبتدأ محذوفي یعني فامره ان الله غفور رحیم. او ضمیر د فامره راجع ومن ته دی او دا تول لوبه جمله خبر د ان ده او ضمیر شان یې اسم دی.

مناجات

الهي عبدک العاصي اتاکا مقراً بالذنوب وقد دعاکا
فان ترحم فانت لذاک اهل وان تطرد فمن یرحم سواکا

**پوه سه**: چې الف د دعاکا او سواکا له اشباع څخه د ماقبل پیدا سو. او ضرورت یې وزن شعري دی فتامل.

وَكَذَٰلِكَ نُفَصِّلُ الْآيَاتِ وَلِتَسْتَبِينَ سَبِيلُ الْمُجْرِمِينَ ۝

دغه دول چې موږ تفصیل په دې سورت وکړی موږ تفصیل د آیاتو د قرآن کوو په داسې حق سره که کافران څندي منکره دي.

**پوه سه**: چې له بعض قراؤ سبعه وو څخه "لیستبین" په یا د غیبت وایي او فاعل یې سبیل بولي چې لفظ مذکر او مؤنث دواړه مستعملیږي، او دا جمله عطف ده پر مقدر والتقدیر لیظهر الصراط المستقیم ولیستبین سبیل المجرمین. او بعض قرأ "لتستبین" په تا د خطاب وایي چې و علیه الصلوٰة والسلام ته دی. یعني چې واضح کړی یا محمد سبیل المجرمین والسبیل علی هذا التقدیر منصوب علی المفعولیة هذا ماقاله المظهري رحمه الله. او صاحب د روح البیان یې داسې ترجمه کوي ای تظهر یعني چې ښکاره سي سبیل المجرمین یعني چې خلګ پرهیز څني وکړي، او دی وایي چې سبیل مرفوع دی د "تستبین" فاعل دی، ولې چې سبیل مذکر دی په لغت کې د تمیم، او مؤنث دی

په لغت کې د حجازيين، او دا استبانة ددې لپاره دی ليهلک من هلک عن بينة ويحي من حي عن بينة.

**درویش وايي**: چي والله درصاحب روح البيان. حيث اورد صيغة لتستبين على ماذكره اكثر القرا بالتا او فاعل يې سبيل گرځولی دی على طريقة اهل الحجاز او لتستبين معطوف دی پر مقدر يعني ليظهر الصراط المستقيم ولتستبين آه، او روح البيان وخطاب ته د عليه الصلوة والسلام او ونصب د سبيل هيڅ تعرض نه دی کړی.

**درویش وايي**: چي تفسير د روح البيان احرى و اولى واليق بالقبول. لانه خال عن تشويش اذهان المتعلمين.

قُلْ إِنِّي نُهِيتُ أَنْ أَعْبُدَ الَّذِينَ تَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ قُلْ لَا أَتَّبِعُ أَهْوَاءَكُمْ قَدْ ضَلَلْتُ إِذًا وَمَا أَنَا مِنَ الْمُهْتَدِينَ ۝

ته ورته ووايه وکفارو ته د مکې يعني لپاره د قطع د طمع ددوی چې زه نهي سوی يم يعني له طرفه څخه د خدای ﷻ چې زه عبادت وکړم د هغو بتانو چې تاسې عبادت کوئ ما سوی له خدای ﷻ څخه او ته ورته ووايه چي زه متابعت نه کوم ستاسي د خواهشاتو زائغه وو چې له حق څخه لېرې دي يعني عبادة الاصنام، نو زه به په تحقيق گمراه يم که داغسي وکړم او د مهتدين له ډلې به نه يم سره ددې چې زه خدای پاک را استولی يم چې زه کفار وهدايت ته راوغوارم نو زه به څرنگه ددوی لار خپله کوم او عبادت د بتانو به کوم، نو ستاسي طمع خيالست ومحال است وجنون.

قُلْ إِنِّي عَلَىٰ بَيِّنَةٍ مِنْ رَبِّي وَكَذَّبْتُمْ بِهِ ۚ مَا عِنْدِي مَا تَسْتَعْجِلُونَ بِهِ ۚ

ته ورته ووايه (کفارو ته) د مکې په تحقيق زه هم پر بيان حق يم له جانبه څخه د رب زما او بيان حق دادی انه لامعبود سواه.

**پوه سه**: چي "من ربي" صفت دی د "بينة" ای بينة كائنة من ربي او تاسي کفار تکذيب کوئ د هغې بينة.

**پوه سه:** چي ضمیر د "به" راجع دی و "بینة" ته په اعتبار د معنی ای البیان الحق او یا په تاویل د برهان تکذیب یې دادی چي تاسي خدای پاک لره شریکان وایاست چي دا خلاف ده له بیان حق څخه. نسته زما په نیز یعني زما په قدرت کي هغه عذاب چي تاسي یې ژر غواړئ، یعني هغه عذاب د خدای ﷻ په مشیت پوري مربوط دی، قریشو به ویل ان کان هذا هو الحق من عندک فامطر علینا حجارة من السماء او آتینا بعذاب الیم. یعني که دغه دین چي محمد یې دعوه کوي او موږ یې نه منو وهو قول لا اله الا الله نو موږ ته ډبري د اسمان له خوا راوه وروئ او یا یو بل عذاب الیم راکړه.

إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ يَقُصُّ الْحَقَّ وَهُوَ خَيْرُ الْفَاصِلِينَ ﴿٥٧﴾

نه دی حکم د تعجیل د عذاب یا د تاخیر د عذاب مگر خدای پاک لره یعني د خدای ﷻ په قدرت او اراده کي د خدای ﷻ حق بیان کوئ او خدای پاک ښه د فیصله کونکو دی، لانه لا یظلم الناس مثقال ذرة بل یعطي لکل مستحق حقه من الثواب والعقاب.

قُلْ لَوْ أَنَّ عِنْدِي مَا تَسْتَعْجِلُونَ بِهِ لَقُضِيَ الْأَمْرُ بَيْنِي وَبَيْنَكُمْ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِالظَّالِمِينَ ﴿٥٨﴾

ته ورته ووایه یعني که ما ته دا ثابته سي یعني که زما قدرت او توان کي سي هغه شی چي تاسي یې ژر غواړئ هغه شی یعني من العذاب کما مر عنقریب نو به فیصله سوې وای د کار زما او ستاسي تر منځ یعني عذاب به نازل سوی وای او تاسي به په عذاب د استیصال هلاک سوي وای او زما او ستاسي تر منځ به منازعه قطع سوې وای. او خدای ﷻ ښه علم لري پر ظالمانو. نو خدای ﷻ برابر له حکمت سره یې هلاکوي.

**پوه سه:** تر "لو" وروسته ثبت مقدر دی چي کلمه د "لو" فعل غواړي.

**پوه سه:** چي اسم ظاهر د "ظالمین" یې په ځای کي د ضمیر یعني "بکم" تنبیهاً علی ظلمهم العظیم حیث انکروا عذاب الجبار المتین.

**پوه سه**: چي دا سوال د استعجال د عذاب دوی استهزاً کاوه حتی نضر بن الحارث پر حطیم ودرېدی او هغه مذکوره سوال د استعجال العذاب يې وکړی وقد سبق عنقريب.

**حکایت**: یوه ډله له فقهاؤ څخه د یمن وشیخ کبیر ابي الغيث قدس سره ته دده د علم د امتحان لپاره چي دوی وشیخ مذکور ته رانږدې سوه، شیخ مذکور ورته وویل مرحبا بعبيد عبدي چونکه دا خبره په ظاهره کفر وه، نو دوی دا خبره و امام الفريقين يعني امام العلم الظاهر والباطن العالم العارف بالله ابا الذبيح اسماعيل بن محمد الحضرمي رحمه الله ته په طور د شکایت ورسول، نو شیخ مذکور وخندل او ورته وه يې ویل شیخ ابو الغيث رحمه الله تاسي ته ډېره ښه ستاسي د حال او دده د حال موافق خبره کړې ده. او دوی ته يې وویل انتم عبيد الهوٰی، تاسي د خپلو نفسانيه خواهشاتو بندگان یاست، والهوٰی عبده او خواهش نفسي د ابو الغيث رحمه الله بنده یعني تابع ده.

**فائده**: له هوٰی څخه سړی په تقوٰی سره خلاصېږي وبس، مثنوي وايي.

چونکه تقوٰی بست دودست هوا — حق کشاید هر دودست عقل را
پس حواس بیره محکوم توشد — چون خرد سالار ومخدوم تو شد

وَعِندَهُۥ مَفَاتِحُ ٱلۡغَيۡبِ لَا يَعۡلَمُهَآ إِلَّا هُوَ

او په نېز د خدای جل جلاله دي خزانې د غیب یا کلیاني د غیب، او مراد په مفاتح سره علوم د خدای جل جلاله دي چي پر ټولو شیانو يې لري.

**پوه سه**: چي اطلاق د مفاتح پر علومو د خدای تشبیهاً دي، او مراد له غیب څخه هغه شیان دي چي پر هغه باندي عقلي یا شرعي دلیل نه وي لکه تفاصیل د قیامت د ورځي، او داغه رنگه د غیب له قبیلې څخه دی دا چي باران به وسي او که نه او کله به وسي، او دغه رنگه د غیب له ډلي څخه دی چي زه به صبا کوم کوم کارونه وکړم او دغه رنگه د غیب له قسمه څخه دی چي زه به په کومه مځکه کي مرم، او یا موجود شی وي او کشف د علم يې خدای جل جلاله پر هيڅ چا نه وي کړی لکه مافي الارحام من انه ذکر او انثیٰ سعيد او شقي تام الاعضا او ناقصها

الی غیر ذالک، ومعنی عنده مفاتح الغیب احاطة علمه بجمیع ذالک تفصیلاً لکه و خدای ﷻ ته چي حاضر وي.

**فائده:** غیب په دغو شیانو کي ذکر سول حصر نه دی بلکې هغه شیان چي تر اوسه عالم الوجود ته نه وي راوتلي لکه زر کاله دمخه طیاره قسم قسم اتم بم قسم قسم آلات د جنگ رقم رقم چي په دا اوس کلو کي ښکاره سوي یا وروسته تر نني زماني یعني سنه ۱۴۲۷ ھ بیا تر نفخ الصور پوري عالم الوجود ته راځي.

**پوه سه:** چي "مفاتح" که جمع د مفتح سي بفتح المیم، نو ځای ته د خزانې وايي او که جمع د مفتح سي بکسر المیم، نو په معنی کلي ده چي مفتاح یې هم بولي چي قلف په خلاصوي قوله لایعلمها چي نه دی په خبر په هغو مفاتح بیله رب ﷻ لانه تعالی عالم الغیب والشهادة.

وَيَعْلَمُ مَا فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ

او خدای ﷻ په هغو شیانو چي په وچه کي حیوانات والنباتات والجمادات بجمیع انواعها المختلفة المختلفة الآثار، او چي په دریاب کي دي من حیوانات البحر کالسمک بجمیع انواعه والدرر والجواهرات وغیرها.

**پوه سه:** چي دا جمله یعني "ویعلم آه" خدای ﷻ ته علم د مشاهداتو ثابتوي، نو دا جمله عطف ده پر هغه جمله چي علم د مغیبات یې خدای ﷻ ثابت کړی دی

وَمَا تَسْقُطُ مِن وَرَقَةٍ إِلَّا يَعْلَمُهَا

**درویش وایي:** چي دا مبالغه په احاطې د علم د خدای ﷻ پر جزئیاتو باندي که څه هم له ماقبل څخه معلومه سوه، او کلمه د "من" لپاره د استغراق د نفي ده، والمعنی نه راشوه کېږي یو بلگ یعني د درختي چي وي مگر نه خدای ﷻ په خبر دی قبل السقوط وبعده.

وَلَا حَبَّةٍ فِي ظُلُمَاتِ الْأَرْضِ وَلَا رَطْبٍ وَلَا يَابِسٍ إِلَّا فِي كِتَابٍ مُّبِينٍ ﴿٥٩﴾

او نه یوه دانه سته یعني د یو شي تخم په تاریکیو کي د مځکي یعني چي په

ځکه کي پټ وي په هره اندازه چي پټ وي او نه لوند شی ستته او نه وچ.

**پوه سه:** چي ابن عباس رضي الله عنه وايي چي له رطب ځخه اوبه مراد دي اود يابس ځخه بيابان مراد دی. او بعض وايي چي ميت مراد دی. او صحيح داده چي هر شی مراد دی.

**پوه سه:** چي "حبة" سره د معطوفاتو عطف دی پر "ورقة" باندي مناسبت د عطف يې دادی چي ټوله په لايعلمها الا الله کي سره شريکان دي. مگر نه په کتاب مبين کي ثابت دي له کتاب مبين ځخه وايي چي لوح محفوظ مراد دی او بعض وايي چي علم د خدای جل جلاله مراد دی.

**درويش وايي:** والاول انسب بلفظ الکتاب لان الاکثر ارادة في القرآن الکريم من الکتاب المبين هو اللوح المحفوظ کما لايخفی.

**فائده:** که له "کتاب مبين" ځخه علم د خدای جل جلاله مراد سي، نو دا استثنا بدل کل عن الکل ده له استثنا اول ځخه. او که لوح محفوظ مراد سي، نو بيا دا استثنا بدل اشتمال ده له اولی ځخه.

وَهُوَ الَّذِي يَتَوَفَّاكُم بِاللَّيْلِ وَيَعْلَمُ مَا جَرَحْتُم بِالنَّهَارِ

او خدای جل جلاله هغه ذات مقتدر دی چي ستاسي روح قبض کوي، د شپې له خوا يعني په سبب د خوب فان النوم اخو الموت. او خدای جل جلاله خبر دی په هغه شي چي تاسي يې کسب کوئ په اندامو سره چي په عربي يې جوارح بولي د ورځي.

**درويش وايي:** چي چونکه اکثر خوبونه د شپې وي، نو ځکه يې تخصيص د ليل وکړی ورنه د ورځ خوب هم دغسي دی.

**درويش وايي:** چي تخصيص د کسب بالجوارح سره هم په اعتبار د غالب دی ورنه بعض خلگ د شپې له خوا کسب کونکي ستته.

ثُمَّ يَبْعَثُكُمْ فِيهِ

بيا مو بعث کوي په ورځ کي يعني وښوي مو په ورځ کي.

**درويش وايي:** چي په روح البيان کي وايي چي "بعثکم" عطف دی پر "يتوفاکم" باندي او دا جمله يعني "ويعلم ماجرحتم" چي يې په منځ کي د

معطوف او معطوف علیه راوړی ددې لپاره چې په دې بعث کې لوی احسان د خدای ﷻ دی ددوی سره چې تنبیه یې وکړه پر دې باندې چې خدای ﷻ سره ددې چې تاسې به څه کسب کوئ د سیئاتو چې تاسې راویښ کړې چې دا علم د خدای ﷻ خو موجب ددې و چې هغه باللیل باندې پرې ایښی وای بلکې باید هلاک کړی وای بالکلیة لکن بیا یې هم تاسې ته مهلت د حیوٰة یعنې د ویښې درکړی کما ینبغی، کلمة ثم التي لتراخي والمهلت انتهی.

**درویش وایي**: چې دا بیان د روح البیان ډېر په زړه پوری دی، لکن مظهري په تفسیر د "ثم" یبعثکم فیه داسې عبارت ویلی دی فیه تقدیم وتاخیر آه، دا لفظ د مظهري ﷫ هرڅه چې یې مراد وي نازیبا ده د قرآن په تفسیر کې. فافهم والله تعالی اعلم بمراده في کتابه.

لِيُقْضَىٰٓ أَجَلٌ مُّسَمًّى ۖ

مفسران د "یقضی" دوې ترجمې کوي، بعض وایي چې تر هغو پورې دا بعث نشور جاري وي چې وځندول هغه اجل چې مسمی او معین دی چې عبارت له اجل څخه د مرګ دی چې تعین په وخت کې د هغه سوی ؤ چې دی د مور په نس کې بلکې په ازل کړی سوی، او بعض مفسران وایي چې دا بعث او نشور به جاري وي تر څو چې ورسول سي اجل معین للموت، والمآل واحد "اجل" مدة معینه ته وایي.

ثُمَّ إِلَيْهِ مَرْجِعُكُمْ ثُمَّ يُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ۝

بیا وروسته تر مرګ رجوع ستاسې د خدای ﷻ ته ده یعنې الی حکمه تعالی یعنې په حال د قبر کې لانه ورد ان القبر روضة من ریاض الجنة او حفرة من حفرات النیران. وروسته بیا یعنې بعد النشور یوم القیامة په هغه شي سره به مو خبر کړې یعنې عمل سره چې تاسې عمل د هغه کاوه یعنې في الدنیا من الکفر والاسلام والمعاصي والطاعات، نو کلمه د ما موصوله ده او عائد یې محذوف دی کما اشرنا الیه في الترجمة، نو وروسته تر انبا به بیا مجازات درکړه سي، اما الجنة واما النار.

**بوه سه**: چې په دې آیتو خدای ﷻ تنبیه وکړه پر خپل کمال قدرت چې هغه

ذات چي قادر وي پر بعث بعد النوم هغه قادر دی پر بعث الموت هم لان النوم اخو الموت لکن دا قدر فرق يې سته چي په بعث بعد النوم کي لار د عمل د اسلام او طاعت او توبې خلاصه ده او وروسته تر بعث بعد الموت دا ټولي دروازې بند يږي.

وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهِ وَيُرْسِلُ عَلَيْكُمْ حَفَظَةً

او خدای ﷻ غالب دی په فوقيت د قدرت نه په فوقيت د مکان پر بندگانو خپل او خدای ﷻ مسلط کړي دي پر تاسي باندي حافظين د عملو ستاسي يعني ملکي چي دوی ساتي او نوشته کوي په عملنامو کي ستاسي او دا عملنامې بيا تاسي ته په ورځ د قيامت خلاصي درکول کېږي په حضور کي د لوی مجمعې د قيامت، مطيع مسلمان ته به په راسته لاس او عاصي بلا توبة مسلمان ته به چپه لاس او کافر ته د شا له خوا يعني چي لاس يې تر څيگرو باسي او عمل ورکړي كما ورد في الحديث النبوي ﷺ.

حَتَّىٰ إِذَا جَاءَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ تَوَفَّتْهُ رُسُلُنَا وَهُمْ لَا يُفَرِّطُونَ ﴿٦١﴾

**پوه سه:** چي "حتی" پای او غايت د ارسال الحفظة يعني دغه وخت نو ارسال الحفظة قطع سي يعني هغه وخت چي راسي ويوه ته ستاسي مرگ يعني زکندن، نو ده ته راسي د قبض روح لپاره زموږ رسولان چي مراد ځني اعوان د ملک الموت دي يعني ملکې او دغه رسل تفريط او تاخير نه کوي په قبض الروح کي وروسته تر امر د خدای ﷻ.

**ددې مقام تحقيق:** پوه سه! چي په دې آيت کي "توفته رسلنا" راغلی او په بل آيت کي "يتوفکم ملک الموت" راغلی دی او په بل آيت کي "الله يتوفى الانفس" امام قرطبي رحمه الله چي قديم لوی تفسير يې د قرآن کريم تصنيف کړی دی وايي چي ددې آيتو تر منځ منافات نسته، وخدای ﷻ ته يې نسبت له دې جهته دی چي فاعل حقيقي د هر کار خدای ﷻ دی او ملک الموت عني عزرائيل ته يې نسبت له دې سببه دی چي دی حاکم اعلی دی د محکمه د قبض الارواح او دده تر

حکم لاندي په لکو بلکې بالا ملکې د قبض الارواح کار کوي.

**درویش وایي**: چې د قبض الارواح په باره کې ډېر احادیث صحیحه راغلي دي، په بخاري او مسلم وغیرهما کې چې بیان د هغو ټولو به ډېر گران تمام سي.

**درویش وایي**: لکه چې دوی تفریط او تاخیر نه سئ کولای تر امر د خدای ﷻ وروسته دغه رنگه افراط هم نه سي کولای یعني چې تر امر د خدای ﷻ دمخه دي د چا روح قبض کړي.

**فوائد**: په حدیث صحیح کې راغلي دي چې خدای ﷻ پر هر سړي څلور ملکې مقرري کړي دي، دوې د ورځې د کتابة الاعمال لپاره او دوې د شپې د حفظ الاعمال لپاره، کاتب الحسنات ملکه پر راسته اوږه ده او کاتب السیئات پر چپه اوږه او صاحب الیمین ملکه امیر ده پر صاحب الیسار باندي، نو که بنده نېکي وکړي صاحب الیمین یې یو په لس نوشته کوي بلا مشورة صاحب الیسار، او که بنده گناه وکړي او صاحب الیسار یې د نوشتې اراده وکړي صاحب الیمین ورته ووایي امسک یعني ته یې اوس مه نوشته کوه تر شپږ یا تر اووه ساعته صبر ورته وکړه، که بنده عاصي توبه له هغه څخه وکړي او پښېماني یې ښکاره کړه او له خدایه یې مغفرت وغوښتی لم یکتب شیئاً، او که یې تر شپږ اووه ساعاته وروسته یې استغفار ونه غوښتی نو کاتب الیسار یوه گناه نوشته کړي.

**درویش وایي**: حسین کاشفي رحمه الله مصنف د تفسیر حسیني داسي ویلي دي.

نه اند یشی زان روزیکه دروی — جگرها خون ودلها ریش بینی
د هندت نامه اعمال وگو یند — بخوان تاکردهای خویش بینی
مکن ورمیکنی باری دران کوش — که اندر نامه نیکی بیش بینی

وفي حدیث اخرجه الطبراني وابو نعیم عن الحارث ابن الخزرج رضي الله عنه چې رسول الله ﷺ وملک الموت ته چې وسر ته د یو انصاري ناجوړي ناست ؤ وویل یا ملک الموت څه نرمي وکړه زما د صاحب سره فانه مؤمن، ملک الموت ورته وویل طب نفساً وقر عیناً خوشحاله اوسه از روی نفس یعني زړه او خونک اوسه از روی سترگې.

**درویش وایي**: چې علماً وایي چې قرة العین کنایه ده له ډېري خوشحالي

څخه او په دې پوه سه چې زه د هر مؤمن سره شفقت او رفق او نرمي لرم. واعلم یا محمد ﷺ زه چې د بني آدم روح قبض کوم او یو له قریبانو څخه د هغه بغاري کړي زه په هغه سرای کې ودریږم او ووایم یا هذا الصارخ یعني بغاري وهونکي قسم په خدای دی ما ظلم د تاسې سره نه دی کړی ولا سبقنا اجله او نه د مخه تر اجله ورته راغلی یم "وما لنا في قبضه من ذنب" او ما لره نسته په قبض کې روح دده. نو که تاسې راضي اوسئ په دې کار چې خدای ﷻ وکړی یعني ما په امر د خدای ﷻ وکړی تاسې ته به خدای پاک ثوابونه درکړي او که تاسې د خپل قریب په قبض الروح ناراض یاست، نو تاسې به ګناه کاره سئ. او ملک الموت ووایي "ان لنا عندکم عودةً بعد عودةٍ" ملک الملک ورته ووایي بیا راځم ستاسي عودة وروسته تر بل عودة یعني د نورو انسانانو د قبض روح لپاره چې ستاسي سره پاته دي الی اخیر الحدیث.

ثُمَّ رُدُّوٓا۟ إِلَى ٱللَّهِ مَوْلَىٰهُمُ ٱلْحَقِّ ۚ

بیا نو رد کړل سي دوی ومالک ته ددوی چې حق دی.

**پوه سه:** چې دا جمله عطف ده پر "توفته الملائکة" ومعنی الی الله الی حکمه وجزائه في موقف الحساب یوم القیامة.

**فائده:** دا رد پر خپل ظاهر نه دی ولې خدای ﷻ پاک دی له مکان او جهت څخه المتوهمین من لفظ ردوا الی الله بلکې معنا د آیت داده جعلهم منقادین لحکم الله مطیعین قضائه بحیث یساقون الی حیث لا مالک ولا حاکم فیه سواه. د مولا معنا هم داده چې مالک د امور ددوی علی الاطلاق.

**سوال:** په بل آیت کې راغلي دي وان الکافرین لا مولی لهم؟

**ځواب:** دلته مولا په معنا د ناصر دی فلا تناقض بین الآیتین لان المولی في هذه الآیت بمعنی مالک الامور وهو تعالی مالک امور الکفرة في یوم القیامة وفي الآیة الاخری بمعنی الناصر فشتان بینهما. ومعنی الحق الذي لا یقضی بین العباد الا بالعدل. نو حق صفت د مولا دی.

**درویش وایي:** چې امام مظهري رحمه الله وایي چې یا له رد څخه الی مولاهم

الحق رد ددوی او عرض و موقف ته د حساب یوم القیامة کما یدل علیه کلمة ثم التي للتراخي وهذا التوجیه صحیح موافق لما قاله اکثر المفسرین. وروسته مظهري ددې آیت یوه بله توجیه راوړې ده که څه هم صحیح في نفسه ده لکن ددې سره هیڅ تعلق او مناسبت نه لري کما لا یخفی علی من طالع تفسیره.

أَلَا لَهُ الْحُكْمُ وَهُوَ أَسْرَعُ الْحَاسِبِينَ ﴿٦٢﴾

آگاه اوسه خاص خدای ﷻ لره دي لا لغیره او خدای پاک ژر حساب کونکی دی. یعني سره سره د ډېر والي د انس او جن چي خدای ﷻ حساب ورسره کوي، ولي چي خدای پاک نه مشغوله کوي د یوه چا له حساب څخه د بل چا حساب: وفي الحدیث یحاسب الخلق کلهم في قدر نصف النهار من ایام الدنیا لانه تعالی لایتکلم بالة اللسان ولا یحتاج الی فکرة وروئة. او معناد محاسبة داده چي هغه شی چي هغه سړی یې مستحق وي په سبب د عمل في الدنیا من ثواب الخبة او عقاب الله.

**فائده:** حشر او حساب پر مخه د دغي موجودي مځکي نه دي بلکې داسي مځکه خندي پیدا کوي چي تکه سپینه به وي لکه سپین زر چي پر هغې مځکي به نه وینه توی سوې وي، او نه به هیڅ چا ظلم پر کړی وي کذا في روح البیان.

**درویش وایي:** چي داسي مځکه پیدا کول او پر هغې حساب کول و قدرت د خدای ﷻ لکه مشت نمونه خروار ده، ان الله علی کل شئ اراده قدیر والانکار عن ذالک کفر بواح ای ظاهر.

قُلْ مَن يُنَجِّيكُم مِّن ظُلُمَاتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ تَدْعُونَهُ تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً

ته ووایه اې محمده اهل مکه ته څوک دی چي نجات درکړي تاسي ته له تاریکیو څخه د مځکي یعني بیابان او دریاب چي تاسي خواست کوئ وهغه ته د نجات په عاجزۍ سره.

**یوه سه:** چي تضرع تذلل او مبالغه ده په دعا کي یعني په علانیه سره بقرینة التقابل او په پټه سره کما هو سنة الدعا والذکر.

**قرآآت:** ینجیکم" بعض له قرا سبعه وو څخه په تشدید د جیم وایي له بابه د

تفعیل، او بعض قرأ یې په تخفیف د جیم وایي من باب الافعال او لفظ د خفیة به قرأ په کسره د خا وایي او بعض قرأ یې په ضمه د خا وایي وهما لغتان معناهما واحد.

**پوه سه**: چي مراد له "ظلمات" څخه د بر او بحر ظاهري معنا نه ده باتفاق المفسرین علیهم رحمة رب العالمین، بلکې مراد هغه سختي ده چي په بر او بحر کي مسافرانو ته پېښېږي، وجه الاستعارة د ظلمات د لفظ وسختیو ته داده چي دواړه سړی په بېره او هول کي اچوي.

د مشرکانو دا عادت و چي په بر کي به یې سفر کاوه یا به لار ځني ورکه سوه او یا به باران پر شروع سو چي تالندي او برېښناوي به ورسره وې او د تکي بېره به لاهم وه، او یا به د دریاب په سفر کي کښتۍ طوفاني سوله او مخالف بادونه به راغله او د کښتۍ د غرقېدو بېره به هم وه، نو دوی به "دعوا الله مخلصین له الدین" یعني خواست او زاریٔ به یې یوازي وخدای ﷻ ته کولې هغه خپل معبودان بتان به یې هېر کړه حتٰی چي په کښتۍ کي به د دوی سره بت ورسره ؤ هغه به یې دریاب ته وغورځاوه، ولي چي دوی په دې پوهېدله چي بتان د برې دي چاته یې نفع او ضرر نه رسېږي.

**پوښتنه**: چي په دې پوهېدله نو یې د هغو عبادت ولي کاوه؟

**ځواب**: عبادت یې په تقلید د پلرو او نیکه ګانو کاوه، کما یدل علیه قولهم انا وجدنا اباءنا کذالک یفعلون.

**الاعراب**: تضرعاً مصدر دی په معنا د فاعل دی او حال له فاعل څخه د ضمیر تدعون ای متضرعین، وکذالک خفیة ای مسرین في الدعا، او دا ټوله جمله حال ده له مفعول څخه د "ینجیکم" ای حال کونکم تدعونه آه.

**فائده**: اسرار په دعا او ذکر سره ابعد دی له ریا څخه فلهذا عدوه من سنن الدعا والذکر عند النقشبندیین، په حدیث شریف کي راغلي دي چي په بعض اسفارو کي د علیه الصلوٰة والسلام بعض اصحابو الله اکبر په جهر وایه، علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل انکم لاتدعون اصم ولاغائباً انه معکم، رسول الله ﷺ وویل چي تاسي بلنه او دعا نه کوئ وکانه ته او نه غائب ته خدای ﷻ ستاسي ملګری دی یعني په علم سره.

لَئِنْ أَنجَانَا مِنْ هَٰذِهِ لَنَكُونَنَّ مِنَ الشَّاكِرِينَ ﴿٦٣﴾

**پوه سه**: چې دا آیت د "تدعونه" بیان دی ای تقولون که تا نجات راکړی یا خدایه موږ ته هذه اشارة الی شدة وظلمة. نو هر آئینه موږ گرځوو د شکر ویونکو څخه ستا.

**پوه سه**: چې شکر معرفه ده نعمت سره د حق ادا کولو د نعمت یعني چې په رضا کي د منعم حقیقي یې صرف کړي لکن قال الله تعالی وقلیل من عبادي الشکور.

قُلِ اللَّهُ يُنَجِّيكُم مِّنْهَا وَمِن كُلِّ كَرْبٍ ثُمَّ أَنتُمْ تُشْرِكُونَ ﴿٦٤﴾

ته ورته ووایه اې محمد چې الله ﷻ نجات درکوي وتاسي ته د هغه ظلمت او شدت څخه او له هر سخت غم څخه چې د کرب معنا ده وروسته تر نجات تاسي شرک کوئ یعني بیرته عود وشرک ته کوئ، او وفا په وعده نه کوئ او په دې هم تاسي پوه سوي است چې نجات موږ ته خدای ﷻ راکړی او بیا هم بتان په عبادت کي د خدای ﷻ شریک بولئ او په دې هم تاسي پوهېږئ چې بتان لاتنفع ولا تضر، ولي که نه پوهېدای نو ولي مو د شدت او ظلمت په وخت کي هغو ته درخواست نه کاوه.

**پوښتنه**: مشرکانو خو د شکر وعده کړې وه نو د هغې وعدې موافق به لاتشکرون نه وای، او خدای ﷻ په ځای د هغه تشرکون ووایه؟

**ځواب**: نعم! لکن په تشرکون کي په ځای کي د تشکرون کمال توبیخ د مشرکانو دی.

**پوه سه**: چې کلمه د "ثم" لپاره د تراخي في الزمان نه ده بلکې د کمال بعد بین الاحسان من الله والاشراک من العبد، بیت.

بنده را هر وقت چاره از الله نیست
خدای را هیچ وقت احتیاج بشکر آنان نیست

قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلَىٰ أَن يَبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِّن فَوْقِكُمْ أَوْ مِن تَحْتِ أَرْجُلِكُمْ

ته ورته ووایه مشرکانو ته د مکې چې هغه یعني خدای ﷻ قادر دی چې پر تاسي عذاب راواستوي له لوړې خوا یعني د اسمانو له خوا لکه پر قوم نوح چې

يې طوفان راواستاوه، او پر قوم لوط يې د ډبرو باران وکړی او پر اصحاب الفيل باندې يې د ابابيلو د ډبرو باران وکړی، او يا راواستوي عذاب تر پښو لاندې ستاسې، يعني د مځکې له خوا لکه اغراق د فرعون او خسف د قارون. او دغه رنګه لکه له اسمانه څخه چې طوفان نوح شروع کړي د مځکې له خوا هم اوبه را شروع سوې، او ابن عباس رضي الله عنه او مجاهد رحمه الله وايي چې مراد له من فوقکم باچهان ظالمان دي او د من تحت ارجلکم څخه مراد مريان دي نافرمانه. او بعض کسان وايي چې من فوقکم حبس المطر مراد دی. او له من تحت ارجلکم حبس النباتات مراد دی، وقيل غير ذالک.

## اَوۡ يَلۡبِسَكُمۡ شِيَعًا وَّيُذِيۡقَ بَعۡضَكُمۡ بَاۡسَ بَعۡضٍ

او يا تاسې سره ګډوډ متفرق الرائ ډلې وګرځوي چې د هرې ډلې جلا جلا مذهب او مسلک وي چې اخير الامر دا ګډوډې مفضي وقتال او جنګ ته وګرځي او خدای جل جلاله وڅکي يعني ورسوي بعضو ته ستاسې عذاب د بعض آخر چې مراد ځنې شدت د جنګ يعني يو له بله به سره وژنئ. له جابر بن عبد الله رضي الله عنه څخه روايت دی چې دا آيت چې نازل سو چې عذاباً من فوقکم پکښې مذکور و رسول الله صلی الله علیه وسلم وويل اعوذ بوجهک الکريم، او چې من تحت ارجلکم ذکر سو عليه الصلوٰة والسلام وويل اعوذ بوجهک الکريم او چې يلبسکم آه وويل سو رسول الله صلی الله علیه وسلم وويل هذا اهون او هذا اليسر يعني دا آسانه دی. والحديث المذکور رواه البخاري وغيره ايضاً.

**فائده:** ددې اخيرې آيت مصداق وروسته تر پيغمبر د ډېر کاله ښکاره سو، حين قاتل المؤمنون فيما بينهم في واقعة الجمل ووقعة صفين وغير ذالک وتفصيل هذا القصص في الآحاديث الشريفة په حديث شريف کې چې سعد بن ابي وقاص يې روايت کړی دی راغلي دي "قال اقبلنا مع رسول الله صلی الله علیه وسلم حتى مررنا على مسجد بني معاوية (سعد رضي الله عنه وايي چې موږ راروان وو د عليه الصلوٰة والسلام سره حتی چې موږ تېر بدلو پر مسجد د بني معاوية) فدخل فصلى رکعتين فصلينا معه فناجى ربه طويلاً (نو عليه الصلوٰة والسلام داخل سو دغه

مسجد ته د بني معاويه ؤ، نو دوه رکعته نفل يې وکړه موږ هم ورسره وکړه نو مناجات او دعا يې وخدای ﷻ ته شروع کړه ډېره زمانه.

**سوال:** فقهاءٔ وايي چي نفل په جماعت سره مکروه دي بې له تراويح. نو دوی څرنګه نفل په جماعت سره وکړه؟

**ځواب:** نفل په جماعت سره بې له تراويح هلته ناجائز دي يعني مکروه دي چي پر سبيل د تداعي يعني د خلګو په رابولنه سره وي لکه بعض جاهل پيران چي مريدانو ته دعوت ورکړي چي مثلاً د برات پر پنځلس راسئ چي د ليلة البرات لمونځ په جماعت وکړو، د عليه الصلوٰة والسلام او د اصحابو ﷺ دغه نفل په جماعت اتفاقي ډول دي دې ته تداعي نه وايي "ثم قال سئلت ربي ثلثة سئالته ان لايهلک امتي بالغرق "يعني لکه فرعونيان" فاعطانيها. وسئالت ربي ان لايهلک امتي بالسنة ای القحط فاعطانيها، وسئالته ان لايجعل بأسهم بينهم فمنعنيها (وروسته عليه الصلوٰة والسلام وويل چي ما سوال وکړی چي زما امت په غرق مه وژنئ نو دا مسئله خدای ﷻ ماته راکړه يعني په غرق يې نه وژنم. بيا مي سوال وکړی ددې چي زما امت په کاختی مه وژنئ دا مسئله يې هم ماته راکړه بيا مي سوال وکړی له خدای ﷻ څخه چي زما د امت جنګ په خپل منځ کي مه ګرځوئ. نو دا مسئله يې را څخه منع کړه يعني اجابت ددې سوال يې نه وکړی.

**درويش وايي:** چي دا سبب دی چي د امت محمدي ﷺ تر خپل منځ جنګ سبب د جاه او جلال او مملکت غوښتولو او يا په سبب د اختلاف د مذاهبو به جاري وي الی يوم القيامة، امام بخاري رحمه الله هم ورته روايت کړی دی لکن اول سوال يې دا ذکر کړی دی چي مه مسلطوئ زما پر امت دښمن من غيرهم چي زما پر امت غالب وګرځي يعني پر ټوله امت دا سوال هم خدای ﷻ ماته راکړی. هغه نور دوه سواله د بخاري د روايت هم هغه دي چي په دمخه حديث کي تېر سوه.

**پوه سه:** چي درويش قيد د ټوله امت ووايه چي څوک سوال ددې ونه کړي چي امريکايان پر عراق غالبه سوه او هم داغه امريکايان پر افغانستان غالبه سوه او تر اوسه هم دا غلبه جاري ده، وجه الدفع چي دا خو غلبه پر ټوله امت نه ده والله اعلم بالصواب.

**پوښتنه**: علیه الصلوٰة والسلام په وړاندې حدیث کې وویل چې "باسهم بینهم سهل" او سوال د استعاذه یې هم نه وکړی او په دې حدیث کې یې وکړی وجه یې څه ده؟

**ځواب**: علیه الصلوٰة والسلام چې سهل وباله نظر وعذاب ته من فوقکم او من تحت ارجلکم چې په ایت شریف کې مذکور وه، ولې چې دا دوه عذابونه سبب د استیصال ګرځي، او وروسته چې سوال د استعاذې ونه کړی ادباً مع الله عزوجل لکن چونکه رحمت د خدای ﷻ عام ؤ او شفقت د علیه الصلوٰة والسلام عام ؤ، نو ځکه یې په دې نژدې حدیث سوال وکړی مګر د خدای ﷻ له خوا یې اجابت ونه سو کمامر.

انْظُرْ كَيْفَ نُصَرِّفُ الْآيٰتِ لَعَلَّهُمْ يَفْقَهُوْنَ ﴿۶۵﴾

وګوره ته اې محمده ﷺ چې موږ آیات د وعد او وعید په بار بار ذکر کوو ددې لپاره چې دوی یعنې کفار مکه وغیرهم به پوه سي یعنې حق او باطل به سره وپېژني یا په امید د جنت او یا د بېرې د عذاب النار به ایمان راوړي.

وَكَذَّبَ بِهٖ قَوْمُكَ وَهُوَ الْحَقُّ ۚ قُلْ لَّسْتُ عَلَيْكُمْ بِوَكِيْلٍ ﴿۶۶﴾

او تکذیب وکړی په قرآن سره او یا په عذاب سره که چېرې ایمان نه راوړي ستا قوم یعنې کفار د قریشو او حال دادی چې دغه قرآن یا عذاب حق دی یعنې قرآن صادق یا عذاب حتماً واقع کېږي که دوی ایمان نه راوړي. ته ورته ووایه چې زه نه یم پر تاسې د خدای ﷻ له جانبه وکیل یعنې مسلط د خدای له خوا چې تاسې به زه خامخا مسلمانان کوم، او یا که تاسې منع د اسلام او له قرآن څخه وکړئ نو زه به عذاب پر تاسې نازلوم، ولې چې د رسول شان او کار صرف او صرف تبلیغ او دعوت اسلام ته او بشارت او انذار دی وبس، نور کار ونه لکه د عذاب نازلول د خدای پاک په مشیت او قدرت پورې اړه لري.

لِكُلِّ نَبَاٍ مُّسْتَقَرٌّ ۫ وَّسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ﴿۶۷﴾

هرې خبرې لره د قرآن که عذاب الکفار وي او که بل شی وخت د قرار او وقوع سته په علم کې د خدای ﷻ چې نه دمخه تر میعاد مقرر نازلېږي او نه هم

خند پرې او ژر دی چې تاسي ته به علم راسي په نيږدو وقوع د عذاب اما في الدنيا کما في يوم بدر او يا په ورځ د آخرت او هغه بيا تاسي ته فائده نه کوي، سعدي شيرازي قدس سره وايي.

تو پیش از عقوبت درعفو کوب      که سودی ندارد فغان زیرچوب

وَإِذَا رَأَيْتَ الَّذِينَ يَخُوضُونَ فِي آيَاتِنَا فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ حَتَّى يَخُوضُوا فِي حَدِيثٍ غَيْرِهِ

او کله تا وليدل هغه کسان چې بحث بالباطل يې کاوه په آياتو کې زمونږ يعني تکذيب يې کاوه يا يې پسخند واهه په قرآن سره او يا په عيب پر قرآن وايه لکه قريش چې په خپلو مجلسو کې دغه کارونه کول، نو ته اعراض وکړه له دوی څخه يعني ځني ولاړ سه او مه ورسره کښېنه، ولې چې ستا خو له وسه او طاقته نه ده پوره چې دوی منع کړې له دغو کارو څخه نو اوره يې هم مه تر هغو پورې دا غايت ده فاعرض عنهم چې دوی په نورو خبرو ګډ پرې غير د استهزا بالآيات.

**بوه سه:** چې ضمير د غيره خو راجع و آياتو ته دی په تاويل د قرآن فلا يرد مايترهم فافهم.

**فائده:** ددې آيت مضمون د هغه حديث سره ډېر موافق دی چې عليه الصلوٰة والسلام ويلي دي چې که چا منکر يعني له شرعي شريفي څخه مخالف کار وليدی نو دي تغيير ورکړي په لاس سره يعني که هغه فاعل دده تر چيلاخه لاندې وي، نو ددې بد کار په کولو سره دې ووهي "فان لم يستطع فبلسانه" که يې تغيير د يد له لاسه نه وه پوره يعني بېګانه سړی وُ نو دي په ژبه تغيير ورکړي يعني نصيحت دي ورته وکړي فان لم يستطع فبقلبه وذالک اضعف الايمان" او که يې د ژبې نصيحت هم له وسه نه وُ پوره يعني يو جبار ظالم سړی وُ، نو په زړه سره دي تغيير ورکړي يعني محبت قلبي دي نه ورسره کوي او دا اضعف ايمان دی، او کما قال رسول الله ﷺ، نو په دې آيت کې چې خدای پاک و عليه الصلوٰة والسلام ته وويل "فاعرض عنهم" دا د بغض قلبي يو ښاخ دی، او دا اضعف الايمان نه دی بلکې اقوی الايمان دی چې ځني ولاړسي، او اضعف ايمان چې په

حدیث شریف کي راغلی دی، هغه هغه دی چي ورسره ناست خو وي لکن په زړه کي یې بد ښني کیږي.

**درویش وایي:** چي دا ۆ تطبیق د آیت او د حدیث المذکورین او دغه رنګه دفع د بعض خلګو د توهم وکړه سوه.

**وَإِمَّا يُنسِيَنَّكَ الشَّيْطَٰنُ فَلَا تَقْعُدْ بَعْدَ الذِّكْرَىٰ مَعَ الْقَوْمِ الظَّٰلِمِينَ ﴿٦٨﴾**

**پوه سه:** چي اصل د "اما" ان ما ۆ نون یې په میم سره بدل کړی او بیا یې په میم کي مدغم کړی او ان شرطیه چي فلا تقعد جزاً او ما زائد دی، والمعنی که چېري هېر کړي شیطان له تا څخه ای محمد ﷺ هغه څه چي ته په امر سوی یې په مخني آیت کي فاعرض عنهم، یعني یو وخت په هېره سره ددغو مستهزئنو بالقرآن سره نو بیا کښېنستی نو وروسته تر پیاد بدلو د امر الاعراض مه کښېنه سره د هغه قوم چي ظالمان دي بلکي ځني ولاړېږه مراد د ظالمانو هم هغه کسان دي چي دوی دین لهو ولعب ګرځاوه یعني پسخند یې په واهه.

**پوه سه:** که څه هم ځای خو د ضمیر ۆ ای فلا تقعد معهم لکن خدای ﷻ اسم ظاهر په ځای کي د ضمیر راوړی لپاره د تنبیه پر ظلم ددوی چي دوی کفر او انکار او استهزاً په ځای کي تصدیق او د ایمان ګرځولي وه کما هو معنی الظلم ای وضع الشئ في غیر محله، یعني ځای خو د تصدیق او ایمان و دوی په ځای کي د کفر او استهزاً وګرځوله.

**پوه سه:** چي بغوي ﷫ له ابن عباس ﷠ څخه روایت کړی دی چي هغه فوق الذکر آیت چي نازل سو نو مسلمانانو د علیه الصلوٰة والسلام ته شکایت وکړی چي موږ په څرنګه په مسجد حرام کي کښېنو او یا څرنګه به طواف کوو، ولي چي کفار قریش خو همېشه استهزاً بالقرآن او په دین د اسلام کوي نو دا آیت نازل سو.

**وَمَا عَلَى الَّذِينَ يَتَّقُونَ مِنْ حِسَابِهِم مِّن شَيْءٍ وَلَٰكِن ذِكْرَىٰ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ ﴿٦٩﴾**

نسته پر هغو کسانو چي له خدای ﷻ څخه بېرېږي یعني محمد ﷺ واصحابه ﷡ له حسابه څخه ددوی یعني المستهزئین بالقرآن من زائده دی لپاره د استغراق د نفي هیڅ شی یعني ګناه، لکن پر متقین دا لازمه ده چي ذکري

يعني تذكير او نصيحت به ورته مستهزئين ته كوي چي دا استهزأ او انكار او كفر پرېږدي ددې لپاره چي دوی به هم د خدای ﷻ وېرېږي او ايمان به راوړي.

وَذَرِ الَّذِينَ اتَّخَذُوا دِينَهُمْ لَعِبًا

پرېږده ته يا محمد يعني معاشرة ام ملاطفه مه ورسره كوه او په استهزأ ددوی پاک مه کوه او زړه په مشغوله کوه. او دا مراد نه دی چي تبليغ او انذار او وعظ مه ورته کوه لان ذالک خلاف فائدة الرسالة.

**يوه سه**: چي لهو عبارت ده چي د فائده مند شي څخه د سړي نفرت پيدا كوي كنفرة الكفار عن دين الاسلام. او لهو صرف دی نفس له جد، څخه وهزل او مسخروا ته.

وَلَهْوًا وَغَرَّتْهُمُ الْحَيَوٰةُ الدُّنْيَا

او دوی غولولي دي ژوند ناقص حتی چي ددوی زعم باطل دادی چي وروسته تر دې ژوند بل ژوند نشته. نو حاصل د آيت دادی چي مراد له موصوله څخه يعني الذين هغه کفار دي چي خوض في آيات الله بالاستهزأ کوي. او مراد له دينهم څخه ددوی خپل دين شرک دی چي دوی ته فائده نه کوي نه عاجلاً او نه آجلاً لکه عبادت د بتانو آه.

**دروېش وايي**: چي دا توجيه كه څه هم في نفسه صحيح ده لكن له سياق سره مناسبت نه لري فافهم. او وروسته مظهري رحمه الله په قيل سره داسي يو د تعجب وړ تفسير د آيت کړی دی چي مراد له دين څخه د اخترو ورځي دي. نو داسي عبارت يې راوړی دی يعني هر قوم ته خدای ﷻ عيد او اخترونه ورکړي دي او کفار په خپلو اخترو کي لهو ولعب کوي الا المسلمون فان في عيدهم الصلوٰة للعيدين والنحر وصدقة الفطر والخطبة آه.

**دروېش وايي**: چي استعيذ بالله من هذا التفسير لهذه الآية.

وَذَكِّرْ بِهِ أَن تُبْسَلَ نَفْسٌ بِمَا كَسَبَتْ

او ته نصيحت كوه په قرآن سره و كافرانو ته "ان تبسل" په حذف د مضاف اى كراهة ان تبسل نفس اى تحبس بما كسبت من المعاصي والسيئات يعني چي ددې كارو په بند كي د اسلام او طاعاتو څخه محبوس پاته نه سي چي هم داد تذكير فائده سنيه ده.

لَيْسَ لَهَا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيٌّ وَّلَا شَفِيْعٌ

دا جمله صفت د نفس ده یعني هغه نفس چي نشته ده لره ماسوی له خدای ﷻ څخه ولي یعني کومک والا چي عذاب د خدای له ده څخه په زور دفع کړي او نه شفاعت کونکی چي په شفاعت دي عذاب د خدای ﷻ څني لیري کړي. ولي چي شفاعت خو د مسلمانانو لپاره کېږي نه د کافرانو لپاره وثبت ذالک بآیات کثیرة من القرآن وبآحادیث متواترة المعنی وباجماع الامة المرحومة.

**فائده**: من دون الله" حال دی له "ولي" څخه قدم علیه لان ذي الحال نکرة کما ثبت في کتب النحو.

وَاِنْ تَعْدِلْ كُلَّ عَدْلٍ لَّا يُؤْخَذْ مِنْهَا

او که دا نفس کافره فدیه ورکوي هره فدیه چي وي ولو کانت جمیع مافي الارض لپاره د خلاص د عذاب الٰهي نه څني اخستل کېږي د نفس کافره څخه.

**پوهه**: چي "کل" چي عدل ته مضاف دی منصوب دی مفعول دی د تعدل.

**فائده**: فعل مجهول د "یؤخذ" مفعول مالم یسم فاعله یې منها دی ولیس کما توهم بعض چي مفعول مالم یسم فاعله یې ضمیر دی چي راجع وعدل ته دی. ولي چي عدل کما عرفت ههنا مصدر دی فلا یسند الیه الاخذ لان الاخذ مختص بالاعیان والمعاني بخلاف قوله تعالی "لا یؤخذ منها عدل" ولي چي هغه په معنی د مفدي به دی وهو من الاعیان.

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ اُبْسِلُوْا بِمَا كَسَبُوْا لَهُمْ شَرَابٌ مِّنْ حَمِيْمٍ وَّعَذَابٌ اَلِيْمٌۢ بِمَا كَانُوْا يَكْفُرُوْنَ ﴿۷۰﴾

دغه کسان چي دین مامور به چي اسلام لهو ولعب گرځولی ؤ وغرتهم الحیوٰة الدنیا. هغه کسان دي چي دوی سپارل کېږي وعذاب النار ته. په سبب د کسب د دوی چي استهزاً بالقرآن وه. دوی لره د اوبو دي د ایشولو اوبو څخه چي په نس کي کولمې غوټې غوټې ورېږېکوي او عذاب دی او په دوزخ کي په سبب د کفر چي دوی کاوه په دنیا کي.

**بوه سه:** چي په "بما کسبوا" کي کلمه د با سببي ده او کلمه ما مصدري ده ای بسبب اعمالهم القبیحة من الکفر والمعاصي

**بوه سه:** چي مضارع لپاره د استمرار ده یعني کفر مستمر او همېشه ۋ تر وخت پوري د مرگ ددوی.

**بوه سه:** چي استهزا په آیاتو د خدای ﷻ کفر دی که عمداً وي او که د ساتېري لپاره وي او عاقبت د کفر عذاب الیم دی، او داغه رنگه اصرار او همېشه توب کول پر کبائرو گنهو د بر خله بعض مؤمنان وکفر ته رسوي العیاذ بالله من ذالک. حافظ شیرازي قدس سره وایي

یارب زابر هدایت برسان بارانی پیشتر زانکه چو گردی زمیان برخیزم

**درویش وایي:** چي ددې آیت له فائدو څخه یوه داده چي سړی د هغه چاسره ناسته ولاړه نه کوي چي په باطلو کارو او په عقائدو باطله و اخته وي، قال الشاعر

نفس ازهم نفس گیرد خوی پر حذر باش از لقای خبیث
باد چون بر فضای بد گذرد بوی بد گیرد از هوائی خبیث

قُلْ أَنَدْعُوا مِنْ دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَنْفَعُنَا وَلَا يَضُرُّنَا

ته ورته ووایه وکفارو ته د قریش چي آیا موږ به عبادت کوو الاستفهام للانکار ای لانعبد ماسوی له خدایه د هغه شیانو یعني چي بتان دي چي موږ ته یې نفع نه رسېږي یعني چي موږ یې عبادت وکړو او موږ ته یې ضرر نه رسېږي یعني که یې موږ عبادت ونه کړو او ددوی له معبودیت څخه انکار وکړو، یعني نفع او ضرر ددوی په طاقت کي نه دي لانها جمادات محضة.

وَنُرَدُّ عَلَىٰ أَعْقَابِنَا بَعْدَ إِذْ هَدَانَا اللَّهُ

او موږ رد سوو تر شا یعني الی الشرک الذي کان الناس علیه في الجاهلیة وروسته تر دې چي موږ ته خدای ﷻ هدایت وکړی ودین صحیح ته د اسلام.

**بوه سه:** چي "نرد" عطف دی پر "ندعوا" او په حیز کي د استفهام داخله ده یعني داسي هم نه سوو کولای چي تر هدایت الهي وروسته دي موږ تر شا وگرځېږو وشرک ته.

**پوه سه:** چي "اعقاب" جمع د عقب ده بفتح العین وکسر القاف مونخر القدم ته وایي.

كَالَّذِي اسْتَهْوَتْهُ الشَّيَاطِينُ فِي الْأَرْضِ حَيْرَانَ

**پوه سه:** چي "استهوته" باب د استفعال دی مجرد په هوی یهوي دی په معنی د ذهب او مراد له شیاطینو څخه سرکښه د پېرانانو دي او کاف د کالذي په محل کي د نصب دی علی المفعول المطلق، والمعنی رداً مثل رد الذي استهوته الشیاطین او یا منصوب علی الحالیة دی، والتقدیر او نرد مشبهین بالذي استهوته الشیاطین "في الارض" یعني په یو بیابان کي چي د هلاک ځای وي "حیران" حال دی له مفعول څخه د استهویته یعني ورک وي متحیر وي نه پوهېږي چي پر کومه خوا ولاړ سم او څه وکړم.

لَهُ أَصْحَابٌ يَدْعُونَهُ إِلَى الْهُدَى ائْتِنَا

او دغه ورک سړي لره چي پېرانانو په مخه پسي اخستی وي نور ملګري وي چي ورک را وبولي و هدی ته یعني طریق مستقیم ته سماه هدی مجازاً مبالغةً "ائتنا" تفسیر د "یدعونه" دی په تقدیر د ای یقولون چي موږ ته راسه چي پر سمه لار دي بوزو او هغه مستهوي د پېرانانو یې په خوله نه کوي.

**پوه سه:** چي جمله د "له اصحاب" په محل کي د نصب ده حال ده له مفعول څخه د استهویته، حاصل دادی چي خدای پاک مشابه کړی هغه سړی چي له لاري څخه د اسلام ګمراه وي یعني کافر وي او نور دده ملګري مسلمانان وي، نو دده ملګري دی اسلام ته چي صراط مستقیم ده رابولي او دی یې په خوله نه کوي او پر خپله ګمراهي ټینګ وي، او ددوی خبرو ته التفات هم نه کوي، ولي چي دی شیطان په مخ اخستی وي او د کفر او ضلال په بیاناتو کي یې روان کړی وي.

**پوه سه:** چي جمله د "کالذي آه" حال دی له ضمیر څخه د "نرد" هذا بیان هذا التشبه المشکل حرفاً حرفاً کلمةً کلمةً.

قُلْ إِنَّ هُدَى اللَّهِ هُوَ الْهُدَى ۖ وَأُمِرْنَا لِنُسْلِمَ لِرَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿٧١﴾

ته ورته ووایه یا محمد ﷺ دوی ته چي په تحقیق هدایت د خدای ﷻ چي دین د اسلام دی "هو" ضمیر فصل دی لپاره د حصر یعني هدایت د خدای ﷻ حصر

دی په اسلام کي او ماسوای له هغه څخه کفر او ضلال دی او موږ امر سوي یو.
**بوه سه:** چي دا جمله عطف ده پر محل د ان هدی الله باندي او منصوب ده محلاً مفعول د "قل" ده، یعني قل هذا القول لنسلم کلمة اللام بمعنی الباء، او فعل منصوب دی په ان مقدره ناصبه مصدریه ولي چي په قانون د نحو حرف جر پر فعل نه داخلیږي ای امرنا بان نسلم ورب العالمین ته، ولي چي رضا د خدای ﷻ حصر ده په تسلیم کي و اوامر ته د خدای ﷻ او دغه رنګه په متابعت کي د رسول الله ﷺ.

وَاَنْ اَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاتَّقُوْهُ ۚ وَهُوَ الَّذِيْٓ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ﴿۷۲﴾

او دغه رنګه موږ امر سوي یو په دې سره چي لمونځ یعني پینځه وخته پر صحیح ډول ادا کوئ او له خدایه بېرېږئ، او خدای ﷻ هغه واحد ذات دی چي تاسي به یعني په ورځ د قیامت لپاره د مجازات وه ده ته حشر کېږئ.
**بوه سه:** چي اسلام رئیس د طاعات روحانیه ؤ دی او لمونځ رئیس د طاعات جسمانیة ؤ دی، او بېره د خدای ﷻ رئیس ده د هغه شیانو چي ترک یې لازم وي یعني المعاصي.

وَهُوَ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ؕ

او خدای پاک هغه ذات دی چي پیدا کړي یې دي اسمانونه یعني سره د مافیها من الملائكة والشمس والقمر والنجوم وغيرها او مځکه یعني سره د مافیها من الخزائن والمعادن والحیوانات والنباتات وغیرها بالحق ای متلبساً بالحق یعني الحکمة او یا دا مخلوقات متلبسات بالحق یعني دلالت پر قدرت عظیمه د خدای ﷻ کوي.

وَيَوْمَ يَقُوْلُ كُنْ فَيَكُوْنُ ۚ قَوْلُهُ الْحَقُّ ؕ

**بوه سه:** چي بعض مفسرین وایي چي لفظ د "یوم" منصوب دی په اذکر مقدر سره والمعنی یقول الله تعالی قوموا من القبور مثلاً فیقومون.
**بوه سه:** چي "یکون" مرفوع دی جواب د امر د کن نه دی بلکې اخبار دی او

"قوله" مبتدأ ده والحق يې خبر دی، جلا مستانف كلام دی يعني قول د خدای ﷻ صادق دی لامحالة. او دا هم روا ده چي قوله الحق دي صفت او موصوف وي او فاعل د يكون دي وي، والتقدير يوم يقول لشئ كن فيكون ای يوجد قوله الحق ولا يتخلف الخلائق عن قوله فتدبر غاية التدبر.

وَلَهُ الْمُلْكُ يَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ عٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ وَهُوَ الْحَكِيْمُ الْخَبِيْرُ ﴿۷۳﴾

خاص خدای ﷻ لره ده هغه ورځ چي پوه كړل سي په قرن كي چي پوه كونكی يې اسرافيل دی او خدای ﷻ عالم دی د غيب يعني د هغو شيانو چي عالم الوجود نه وي راوتلی يعني وروسته به راوځي او عالم د هغو شيانو چي عالم او حضور ته راوتلي وي او خدای پاک حكيم دی چي بې فائدې كار نه كوي او ښه خبر دی په هر شي لانه لا يعزب عنه مثقال ذرة في السموات ولا في الارض كما نطق به القرآن.

**پوه سه**: چي "له" خبر مقدم د الملك قدمه للاختصاص او لفظ د يوم ظرف دی د مضمون د له الملك او عالم الغيب سره د معطوف خبر د مبتدأ محذوفي دی ای هو.

**تحقيق الصور**: په حديث صحيح كي راغلي دي چي خدای ﷻ چي له خلق څخه د اسمانو او مځكي فارغه سو، نو صور يې پيدا كړی او اسرافيل عليه السلام ته يې وركړی، نو اسرافيل عليه السلام په خول كي صور نيولی دی او سترګي يې د عرش ته جګي نيولي دي چي كله به زه د خدای ﷻ له خوا امر كېږم په نفخ سره ددې صور. او بو هريره رضي الله عنه وايي چي ما عليه الصلوٰة والسلام ته وويل چي يا رسول الله ﷺ ما الصور؟ قال القرن. ما ورته وويل چي دا قرن څرنګه شی دی؟ عليه الصلوٰة والسلام وويل چي يو ډېر غټ شی دی، او عليه الصلوٰة والسلام راته زياته كړه چي زما دي قسم وي په هغه ذات چي زما روح دده په قدرت كي دی چي لوی والی د صور د دائرې لكه عرض د اسمان او مځكي دی. او دا هم ويل سوي دي چي په دې صور كي دومره سوري دي چي په عدد د ارواحو د خلكو دي علما د امت مرحومه وايي چي نفخ درې واره ده اول يې نفخة الفزع

بولي يعني د خلګو د بيرلو لپاره هغه چي خلګ واوري نو علم يقيني ورته حاصل سي چي اوس وخت د مرګ رانژدې سو، او مور مره کيږو، او دا يې يقين سي چي د دنيا له ورڅو څخه لږ پاته دي، نو بيره د حساب او بيره د عذاب پر دوی غلبه وکړي. او دويمه نفخه نفخة الصعق ده وهو موت الخلائق الموجودين في زمان هذا النفخ موت نفس واحدة حتى لايبقى الا الله ﷻ كما قال الله تعالى "كل شئ هالك الا وجهه" ويقول الجبار المتعال "من الملك اليوم فلا يجيبه احد ثم قال لله الواحد القهار" والنفخة الثالثة نفخة الاحياً والبعث من القبور او في اى موضوع كان من البر والبحر ومن نفخة الموت الى نفخة الاحياً اربعون سنة.

علماً وايي چي د انسانانو ماسوى د انبيا عليهم الصلوة والسلام ټوله اجزا او غوښي او هډوکي خاوري کيږي يو هډوکی يې پاتيږي چي مځکه يې نه خوري چي هغه ته عجب الذنب وايي چي د کلمې په پای کي يې يو کډی دی. او هر هغه هډوکی ترکيب دی د خلق يوم القيامة. نو دغه هډوکي د مخلوق که په نسو کي د درندګانو وي او که په نسو کي د حيوانات البحر وي او که د مځکي په نس کي وي او که په اور سوی وي لکه د هندوانو يا په درياب کي غرق سوی وي او دا وروسته تر دې چي خدای ﷻ له لاندي څخه د عرش يو باران شروع کړي چي هغه ته ما الحيوة وايي او څټه اوبه وي لکه د انسان نطفه څلويښت کاله دا باران دوام ولري چي دوولس ګزه سربيره پر مځکه ودريږي وروسته په امر د خدای ﷻ ټوله اجساد پر هغه عجب الذنب ير تخم راپورته سي، لکه د نباتاتو تخمونه چي راشنه کيږي، نو چي ټوله بدنونه پوره سي بې له روحانو بل شی نه وي پاته. اول خدای ﷻ حملة العرش ملکي راژوندی کړي بيا جبرائيل او ميکائيل او بيا اسرافيل. نو اسرافيل ته خدای ﷻ امر د نفخ الصور ورکړي، نو ټوله روحان تر سوريو د صور راووځي لکه مچ مچی چي خپلي ځالي ته الوزي، نو د اسمان او مځکي منځ ټوله په روحانو ډک سي، نو خدای پاک امر وکړي ليرجعن كل روح الى جسده. وروسته بيا مځکه وچوي فاول من يخرج منها رسول الله ﷺ ثم امته. دا وخت ټوله ځوانان وي د دري ديرش (۳۳) کالو په عمر

كي په تلوار تلوار خداى ﷻ ته روان وي يعني محشرگاه ته.

**درويش وايي:** چي دا ؤ تفصيل د صور او د نفخ الصور اوس نو تاسي رجوع وكړئ و تفسير مظهري ته هغه وايي چي نافخ الصور دوه دي يعني دوې ملكي دي. او سره ددې چي مظهري دمخه هغه حديث هم راوړى دى په روايت د زيد بن الارقم ؓ چي عليه الصلوٰة والسلام وويل كيف انعم وصاحب الصور قد التقم القرن الى اخير الحديث. نو په حديث مذكور كي خو صاحب الصور مفرد راغلى دى او فعل مسند وده ته هم مفرد دى. او بيا يې دا قول د ابن حجر هم رانقل كړى دى چي نافخ الصور غير د اسرافيل څخه دى.

**درويش وايي:** چي نه پوهېږم چي مظهري رحمه الله يې څرنگه تطبيق د يوه نافخ الصور او د دوو سره كوي صرف متعلمين په اضطراب كي اچول دي بله فائده د نقل د اقوالو متضاده وو نه رائحي. بلكي مفسر لره په كار ده چي هغه قول چي دده په عقيده صحيح وي هغه راوړي او نور په قيل سره راوړي او يا تصريح په صحت سره د يو قول وكړي.

## وَإِذْ قَالَ إِبْرَٰهِيمُ لِأَبِيهِ ءَازَرَ

او ته يا محمد ﷺ ذكر كړه وكفارو ته د مكې وخت د قول د ابراهيم عليه السلام وخپل پلار ته چي آزر نومېده د توبيخ پر شكل چي ده عبادت د اصنامو كاوه. او آذر عطف بيان دى د ابيه. او د آذر اصل نوم تارخ ؤ بفتح الراءٔ وسكون الخاءٔ المعجمة. نو د ابراهيم عليه السلام د پلار دوه نومه وه لكه يعقوب او اسرائيل. تارخ يې نوم ؤ او آزر يې لقب ؤ او دى اوسېدونكى د كوفې په اطرافو كي د يو قريې ؤ چي نوم يې كوثى وه.

**درويش وايي:** چي د آزر پلار والى ابراهيم عليه السلام لره داسي مشهور دى لكه لمر پر ځلورم آسمان حتى اشتهر غاية الاشتهار "گل از خاراست، ابراهيم ز آذر". روح البيان مع زيادة ج۷/ص۵۴) ويؤيد هذا يعني آذر د ابراهيم پلار ؤ. حديث البخاري عن ابي هريرة ؓ عن النبي ﷺ چي ابراهيم عليه السلام د خپل پلار آذر سره ملاقي سي په ورځ د قيامت او د آذر پر مخ به تور والى وي او گرد آلوده به وي.

نو ابراهیم علیه السلام به وپلار ته ووایي چي ما تا ته وویل چي ته زما عصیان مه کوه یعني په شرک، نو پلار یې ورته ووایي چي نن یعني په ورځ د قیامت دي عصیان نه کوم، نو ابراهیم علیه السلام خدای پاک ته په مناجات کي ووایي چي تا زما سره وعده نه وه کړې چي زه تا ته رسوا کوم یوم یبعثون فاي خزي من ابي الابعد نو تر دې یوم رسوایي چېري ده چي زما پلار به دوږخ ته استوې؟ خدای پاک به ورته ووایي اني حرمت الجنة علی الکافرین" یعني ستا پلار خو کافر ؤ، پر کفارو ما جنت ته تګ حرام ګرځولی دی، بیا خدای جل جلاله ابراهیم علیه السلام ته ووایي چي ستا تر پښو لاندي وګوره، ابراهیم علیه السلام چي ورته وګوري یو بږ ولاړ وي په مرداریو ککړ یعني د پلار شکل یې خدای جل جلاله ور بدل کړي، نو ابراهیم علیه السلام یې تر پښو ونسي پخپله یې اور ته یعني دوږخ ته وغورځوي.

**درویش وایي**: چي چي دا حدیث ښځي اصرح دی چي آزر د ابراهیم علیه السلام پلار و.

**فائده**: د اعراب له لاري آذر غیر منصرف دی للعلمیة ووزن الفعل، په روح المعاني جلد ۷ ص ۱۹۴" کي وایي چي د آزر معنی شیخ هرم ده خو په هر حال نوم یې تارخ بالخاء او بالحاء ؤ، او روح المعاني نور ډېر تفصیل کړی چي زموږ د تفسیر میدان کوتاه دی د ټولو اقوالو د نقل ګنجائش نه لري.

**درویش وایي**: چي د ټوله بیان سره مظهري رحمه الله وایي کان آذر علی الصحیح عماً لابراهیم، دی وایي چي عرب واکا ته هم اب وایي، زه وایم چي زه دا منم چي دا اطلاق د اب پر عم روا دی ضرورت څه شی دی مع ما سمعت من اقوال الاعلام، او مظهري رحمه الله دا آیت نقل کړی دی نعبد الهک واله آبائک ابراهیم واسماعیل واسحاق آیت"

**درویش وایي**: چي په دې آیت کي خو ضرورت ؤ چي اکا ته اب وویل سو چي اسماعیل ؤ په مانحن فیه کي څه ضرورت سته، بیا مظهري دا قول د سیوطي رانقل کړی دی چي آذر د ابراهیم علیه السلام د پلار نوم نه ؤ بلکې د پلار نوم یې تارخ ؤ، نو موږ منو چي نوم خو یې تارخ ؤ لکن آذر خو یې اسم لقب و د

ابراهیم ﷺ د پلار کمـامر عنقریب، حاصل دادی چي امام مظهري په کلکه ودي ته ولاړ دی چي آذر د ابراهیم ﷺ اکا ؤ.

**درویش وایي:** چي اوس نو فیصله تاسي وکړئ چي د مظهري رحمه الله قول تر کومي اندازې صحیح دی چي آذر ته یې په قرآن کي هم پلار د ابراهیم ویلی دی او په حدیث کي د بخاري یې هم آذر ته د ابراهیم ﷺ پلار ویلی دی، او روح البیان او روح المعاني یې هم پلار بللی دی، والله اعلم بالصواب والیه المرجع والمآب.

**پوښتنه:** علیه الصلوٰة والسلام ولي خدای ﷻ امر کړی چي ته قریشو ته د مکې د ابراهیم ﷺ او دده د پلار قصه ذکر کړه؟

**ځواب:** یو خو دا سبب ؤ چي قریشو هم د ملت ابراهیم دعوه کوله او دا به یې ویله چي بت پرستي موږ ته میراث ابراهیمي راپاته دی، نو خدای پاک ددوی تکذیب وکړی چي ابراهیم ﷺ خپل پلار آذر چي بت پرسته ؤ، له بت پرستی څخه یې منع کړی، او بل دا سبب دی چي ابوجهل او نور رئیسانو د قریشو له دې څخه کبر کاوه چي موږ به د ابو طالب د کشر وراره متابعت کوو، حتی چي دوی به ویله "لو لا نزل هذا القرآن علی رجل من القریتین عظیم" نو خدای ﷻ رد پر وکړی چي شرک یو داسي مسلک دی چي هر څوک چي له طرفه د خدای ﷻ مامور وي که څه هم کشر وي و مشرک ته نصیحت وکړي او له شرک څخه یې منع کړي نه وینئ چي ابراهیم ﷺ خپل پلار له شرکه منع کړی.

**پوښتنه:** د ابراهیم ﷺ ددې دومره مقبولیت سبب څه دی؟

**ځـواب:** ابراهیم ﷺ زړه د خدای ﷻ و معرفت تـه سپارلی ؤ او ژبه یې مسلطه کړې وه پر بیان د فساد د لارې د اهل الشرک والطغیان او خپل ځان یې و اور ته د نمرود په کمال رضا تسلیم کړی او زوی یې و قربان ته وسپاری او مال یې وضیفان یعني مېلمنو ته وقف کړی ؤ، او بیا یې خدای ﷻ ته دا سوال وکړی واجعل لي لسان صدق في الآخرین" نو د خدای ﷻ له کرمه لیري نه ده چي ده ته یې دومره مقبولیت عامه ورکړی چي ټوله طوائف او ټوله اهل ادیان والملل دده په فضل اقرار کوي حتی مشرکینو د مکې د ابراهیم ﷺ تعظیم کاوه او په دې

به یې فخر کاوه چې مونږ د ابراهیم علیه السلام اولاد یو. نو خدای جل جلاله د ابراهیم علیه السلام مناظره د مشرکینو سره د قوم دده حجت وګرځاوه پر مشرکینو د قریشو چې تاسي و خپلو ځانو ته متابعان د ملت ابراهیمي وایاست او شرک هم کوئ. او ابراهیم علیه السلام سرسخته دښمن د بت پرستی او شرک ؤ. کما قال لابیه.

**اَتَتَّخِذُ اَصْنَامًا اٰلِهَةً ۚ اِنِّیْۤ اَرٰىكَ وَقَوْمَكَ فِیْ ضَلٰلٍ مُّبِیْنٍ**

آیا ته ګرځوې بتان معبودان یعني ته عبادت د بتانو کوې دون الله. زه تا بولم او قوم ستا یعنې ستا چې ستا پر دین دي په ضلال کي له حق څخه چې ښکاره ضلالت دی.

**پوښتنه**: جلال الدین سیوطي رحمه الله په اثبات کي د اسلام د آباؤ النبي علیه السلام تر آدم علیه السلام پوري ډېري رسالې جوړې کړي دي، چې آیا آذر د ابراهیم علیه السلام پلار سي ونسب ته د علیه الصلوٰة والسلام تاوان ونه لري او سره ددې چې علیه الصلوٰة والسلام ویلي دي "لم ازل انقل من اصلاب الطاهرین الی احام الطاهرات؟

**ځواب**: صاحب د روح البیان وایي چې دا حدیث محمول دی پر دې باندي انه ماوقع من ولد من الزنی او نکاح د اهل جاهلیت چې په ایجاب او قبول په حضور کي د شهود او په مهر سره کېدل صحیح ده، ویدل علی ماقلنا هغه حدیث چې علیه الصلوٰة والسلام وایي ولدت من نکاح لامن سفاح ای الزنی.

**مسئله**: که کافر نر او کافري ښځې په جاهلیت کي نکاح سره کړې وي، او دواړه یو ځای مسلمانان سي، نو تجدید د نکاح نه غواړي.

**وَكَذٰلِكَ نُرِیْۤ اِبْرٰهِیْمَ مَلَكُوْتَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ**

دغسي لکه مونږ چې ده ته پر خلاف د قوم، عظیم مملکت د اسمانو او د ځمکي.

**پوه سه**: چې "نري" خو مضارع ده لکن مراد ځني ماضي ده چې داسي عبارت حکایت د ماضیه په نحو کي وایي حال حاضر فرض کړي، او تعبیر په مضارع سره ځني وکړي سبب ددې تاویل دادی چې ارائة د لاري حق خو و ابراهیم علیه السلام ته دمخه واقع سوی و نه في الحال او نه په استقبال کي لکه چې معنا د مضارع ده

**پوه سه**: چي "ملکوت" پر وزن د فعلوت دی او هر ځای چي وزن د فعلوت وي لپاره د مبالغې وي، نو ځکه درېش ترجمه په عظیم مملکت سره وکړه، نو ملکوت جوړ له ملک څخه دی لپاره د مبالغې ومثله رهبوت چي لپاره د مبالغې دی په رهبت کي وکذالک رحموت الی غیر ذالک.

**فائده**: اضافت د ملکوت وسموات والارض ته اضافت دی د مصدر ومفعول ته یعني سلطانه تعالی وربوبیته السموات والارض دی هغه داسي چي ابراهیم ته خدای ﷻ امر وکړی چي ته پر یوه غره ودرېږه، ابراهیم ﷺ چي ودرېدی خدای ﷻ اسمانونه او مځکه تولهورته کشف کړه حتی العرش و اسفل الارضین او خپل ځای یې په جنت کي هم په ولیدی، او له علي او سلمان فارسي رضي الله تعالی عنهما څخه مرفوع حدیث راغلی دی چي ابراهیم ﷺ ته خدای پاک دا کشف ورکړی یو سړی یې یو ځای پر زنا ولیدی ښېرا یې ورته وکړه هغه هلاک سو بیا یې یو بل سړی پر یو غیر مشروع کار ولیدی هغه ته یې هم ښېرا وکړه هغه هم مړ سو، بیا چي دریم سړی یې پر یوې ګناه ولیدی چي ده به ښېرا ورته کول خدای ﷻ ورته وویل چي ته اې ابراهیمه مستجاب الدعوة یې زما په نېز نو آینده هیڅ چاته ښېرا مه کوه او ما وزما بندګان سره پرېږده زما او د بندګانو تر منځ درې حاله دي (۱) چي ګناه وکړي بیا توبه وکاږي زه یې توبه قبلوم (۲) یا به زه له هغه ګناه کاره څخه یو بل ځوک پیدا کوم چي هغه به زما عبادت کوي (۳) او یا به په ورځ د قیامت داغسي ګناه کاره په ورځ د قیامت ژوندی کوم بیا نو که زما اراده وه زه به عفوه ورته وکړم او که زما خوښه وه عذاب به ورکړم فان جهنم من ورائه.

وَلِيَكُونَ مِنَ الْمُوقِنِينَ

**پوه سه**: چي دا فعل معطوف دی پر مقدر چي سابق کلام دلالت پر کوي یعني لیستدل ولیکون له یقین درلودونکو څخه پر قدرت زما عیناً ومشاهدة.

**درویش وایي**: چي مظهري رحمه الله وایي چي "نري ابراهیم آه" له باب څخه د افعال دی مجرد رؤیت یې پر رؤیت بصري حمل کړی دی کمامر تفصیله. او صاحب د روح البیان وایي وهذه الاراثة مشتق ده له رؤیة څخه اصل یې رؤیت د

سترګو دی مګر دلته مستعار دی ومعرفت ته چي نظر البصیرة یې بولي، او بیا یې سوال کړی دی چي نظر د بصیرت خو و هر مؤمن ته حاصل دی چي خدای ﷻ واحد او لا شریک بولي او قادر مطلق یې بولي الی غیر ذالک من الصفات الجمالیة والجلالیة لکه رؤیة البصر چي وتولو ته حاصل دی. نو په دې معرفت وجه د امتنان پر ابراهیم ﷺ څه ده؟

بیا یې ځواب ورکړی دی چي اصل اطلاع پر ربوبیت د خدای ﷻ که څه هم تولو مؤمنانو ته حاصل ده لکن اطلاع پر ربوبیت د خدای ﷻ په اجناسو کي د عالم او په انواعو کي د عالم او په اشخاصو کي او په احوالو کي د تولو نه حاصلېږي مګر اکابرو ته انبیاً علیهم السلام نو خدای پاک ابراهیم ﷺ په دغسي معرفت سره سر شاله کړی ؤ. ولهذا کان النبي ﷺ یقول في دعائه اللهم ارنا الاشیاً کماهي، اشارة الی تلک المعرفة الابراهیمیة فافهم.

**درویش وایي:** چي صاحب د روح المعاني د اوومي پارې په تفسیر کي ص۱۹۷ کي دواړي لاري یعني اول رؤیت په معنی د معرفت راوړی ده او وروسته لار د رؤیت بصري راوړې ده وقد مر تفصیله کل واحد من تلک الرؤیتین في تفسیري هذا والارجح والاعجب عند الفقیر الرؤیة البصریة والله تعالی اعلم بمراده في کتابه، وقد قیل ونسب الی الامام الاعظم سید الائمة ابو حنیفة قدس سره هذا البیت.... جمیع العلم في القرآن ،،،، ولکن تقاصرت عنه افهام الرجال.

**درویش وایي:** چي د وروسته آیتو په تفسیر ملایان یعني قصې کونکي داسي بیانونه کوي چي نه یې عقل مني او نه یې نقل، نو ددې زه فقیر دا تمهید کوم چي قوم د ابراهیم ﷺ د بتانو او د ستورو عبادت کاوه او د دنیا تول امور یې ددوی په قدرت کي بلل، پاره اذا سمعوا ص۲۵۸ تفسیر مظهري. ومثل هذا في تفسیر روح المعاني ج۷ ص۱۹۸. وکان ابوه ای ابراهیم وقومه یعبدون الاصنام والکواکب، روح البیان ج۷ ص۵۶.

فَلَمَّا جَنَّ عَلَيْهِ الَّيْلُ رَاٰ كَوْكَبًا قَالَ هٰذَا رَبِّيْ

چي تاریکه سوه پر ابراهیم ﷺ شپه یعني د لمر له غروب څخه وروسته

تېر سو، ولي ستوري چي افق د مغرب هنوز ژړي نه معلومېږي نو ابراهيم عليه السلام ولیدی یو ستوری چي مشتري و یا زهره چي دواړه له کواکب سبعه سیاره څخه دي كما تقرر في كتب الرياضي، ابراهيم عليه السلام وويل چي دا ستوری زما رب دی، مظهري رحمه الله وايي چي دا ويينا د ابراهيم عليه السلام بناً پر زعم د قوم وه او يا على سبيل الفرض، ولي يو څوک چي چا ته الزام ورکوي يو وار به د هغه د قول حكايت كوي وروسته به يې په دليل ورباطلوي انتهى.

او روح المعاني وايي والمستدل على فساد قول يحكيه على رأى خصمه وروسته به رجوع پر كوي په ابطال سره انتهىٰ، او روح المعاني وايي وهذا (دا خبره) منه عليه الصلوٰة والسلام على سبيل الفرض، او واګي د دليل يې ورسره سستي كړې يعني د دوى د قوم د زعم سره موافق ورسره وكړه ودې ته په عربي كي ارخا العنان وايي او مجارات د پلار او قوم سره او روح المعاني وايي چي بعض مفسران همزه د استفهام ورسره محذوفي بولي، يعني اهذا ربي نزعمكم او روح المعاني وايي چي حذف د استفهام ډېر دی په كلام كي د عربو. بيا يې عربي شعر په مثال كي راوی دی.

**درويش وايي**: چي دا قولونه د مفسرينو په شمول د مظهري تاسي واورېدل لكن وروسته مظهري په درو صفحو كي يو داسي قصې او عجائبي كړي دي كه عقل سليم له منلو څخه انكار كوي تاسي يې په غور سره مطالعه كړئ.

فَلَمَّآ أَفَلَ قَالَ لَآ أُحِبُّ ٱلۡأٓفِلِينَ ﴿٧٦﴾

**درويش وايي**: چي دا شروع ده په رد كي د قول د ابراهيم عليه السلام د قوم چي ستوري يې خدايان او متصرف بلل من دون الله او بطلان دی د اعتقاد ددوی وروسته تر تسليم فرضي د ابراهيم عليه السلام له خوا څخه.

**ترجمه**: پس هغه وخت چي غروب وكړی هغه ستوري، ابراهيم وويل زما نه دي خوښ عبادت (په حذف د مضاف) د داسي شيانو چي هغه تغير له يوه حاله څخه وبل حال ته كوي. ولي چي تغيير علامه بينه ده د حدوث والحدوث ينافي الالوهية. قالوا العالم متغير وكل متغير حادث فالعالم حادث ثم يجعل هذه

النتيجة صغرى ويضم اليها بان كبرى سالبة كلية بان تقول العالم حادث ولا شئ من الحادث بمستحق للمعبودية فينتج لاشئ من العالم بمستحق للمعبودية والكواكب من انواع العالم فلا تستحق للمعبودية.

فَلَمَّا رَاَ الْقَمَرَ بَازِغًا قَالَ هٰذَا رَبِّيْ

وروسته چې يې وليده سپوږمۍ په ابتدا کې د طلوع ابراهيم عليه السلام وويل چې دغه سپوږمۍ زما خدای دی يعني على الفرض وعلى زعمكم ايها القوم.

فَلَمَّآ اَفَلَ قَالَ لَئِنْ لَّمْ يَهْدِنِيْ رَبِّيْ لَاَكُوْنَنَّ مِنَ الْقَوْمِ الضَّآلِّيْنَ

بيا چې سپوږمۍ هم غروب وکړی ابراهيم وويل که ماته هدايت ونه کړی خدای زه به وګرځم له قوم ګمراه څخه. دا خبره ابراهيم عليه السلام لپاره د شکر پر هدايت د خدای جل جلاله وکړه وده ته.

**پوه سه:** چې ابراهيم عليه السلام وقوم ته تنبيه ورکړه او ضمناً نصيحت يې ورته وکړی چې سپوږمۍ خو هم په سبب د تغير حال د معبوديت ور نه ده، نو تاسي د قوم ضالينو څخه ياست چې مطلق کواکب معبود بولي.

فَلَمَّا رَاَ الشَّمْسَ بَازِغَةً قَالَ هٰذَا رَبِّيْ هٰذَآ اَكْبَرُ

بيا چې وليدی ابراهيم عليه السلام لمر چې راوختی نو ابراهيم وويل چې دا زما رب دی يعني بالفرض او على زعمكم ايها القوم.

**پوښتنه:** شمس خو مؤنث سماعي دی څکه يې بازغة چې حال دی له شمس څخه مؤنث راوړی. نو اشاره د هذا خو هم ولمر ته ده هغه يې ولي مذکر راوړی؟

**ځواب:** مفسرين ددې تذکير څو وجهې وايي بعض وايي چې تذکير يې په اعتبار د خبر دی چې "ربي" دی لکه نحات په ضمير کې وايي چې ضمير چې دائر سي په منځ کې مرجع او خبر يعني يو مذکر وي او بل مؤنث رعايت د خبر يې اولی دی، او بعض وايي چې تذکير د اسم الاشارة مبني دی پر تاويل د شمس په طالع سره او يا په تاويل د ضياً او نور.

**درويش وايي:** چې امام مظهري د ځان له خوا يوه داسې توجيه کړې ده چې

هيڅ عقل يې تعقل نه سي كولاى، ولهذا قال وعندي فارجع الى تفسيره ان فهمة فبها ونعمت "هذا اكبر" يعني شمس خو تر ستورو او تر سپوږمۍ ډېر غټ دى او هم له دې سببه چي لمر را وخېژي او راپورته سي نور د ټولو ستورو او سپوږمۍ ورک سي كه څه هم په اسمان كي خو د ورځي او د شپې ستوري سته او سپوږمۍ كه څه هم په اسمان كي موجوده وي په ارتفاع د شمس كي يې نورانيت ولاړ سي يعني مځكي ته رڼا نه سي وركولاى كما لايخفى.

فَلَمَّآ اَفَلَتْ قَالَ يٰقَوْمِ اِنِّىْ بَرِىْٓءٌ مِّمَّا تُشْرِكُوْنَ

نو چي لمر هم غروب وكړى، نو ابراهيم ﷺ وويل اې زما قومه زه بېزاره يم د هغو شيانو يعني ستورو او سپوږمۍ او لمر چي تاسي يې د خداى ﷻ شريكوئ په معبوديت كي.

**درويش وايي:** چي تر دې ځايه پوري دلائل د ابراهيم عليه السلام پر قوم باندي په نهايت تفصيل او ښوونه او تعريضاتو او رد د مذهب ددوى چي كواكب معبودات دي وړاى ته ورسېدل اللهم صل وسلم وبارك على سيدنا محمد وعلى آل سيدنا محمد كما صليت وسلمت وباركت على سيدنا ابراهيم وعلى آل سيدنا ابراهيم انك حميد مجيد من جانب الفقير محمد عبيدالله غفرله. قال جلال الدين الرومي قدس سره في المثنوي:

آفتاب از امر حق طباخ ماست — ابلهي باشد كه گويم او خداست
گر كشندت نيم شب خورشيد كو — تا بنالي يا امان خواهي ازو
حادثات اغلب به شب واقع شود — وان زمان معبود تو غائب شود
سوى حق گر راستانه خم شوى — وارهي از اختران محرم شوى

اِنِّىْ وَجَّهْتُ وَجْهِىَ

**پوه سه:** چي مفسرين ددې آتي ترجمه داسي كوي اخلصت ديني وعبادتي وجعلت قصدي.

**درويش وايي:** چي دا خو بيان د معنا دى چي مراد وي لكن موږ په دې پوهېږو چي وجه مخ ته وايي او توجيه مخ وچاته اړول، نو هغه معنا چي مفسرين

بیان کړې ده اصل حقیقت د هغه دی چې امام رازي رحمه الله په تفسیر کې خپل بیان دی څوک چې د بل چا غایت اخلاص لري او ملاقات د هغه یې خوښ وي نو په تولـه مخ وهغه متوجه کېږي او خبري ورسره کوي، نو حاصل د معنا یې هغه دی چې مفسرینو بیان کړی یعني ابراهیم وایي چې زه په تولـه عبادت او اخلاص یم.

لِلَّذِیْ فَطَرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ حَنِیْفًا وَّمَاۤ اَنَا مِنَ الْمُشْرِكِیْنَ ۝ وَحَآجَّهٗ قَوْمُهٗ

وهغه خدای ﷻ واجب الوجود خالق العالم ته چې پیدا کړي یې دي تولـه اسمانونه یعني سره د مافیها من الکواکب والشمس والقمر چې معبود زما د قوم دي "والارض" او چې مځکه یې پیدا کړې ده چې بتان زما د قوم د هغې مځکې له جنس څخه دي چې ډېري دي.

او زه نه یم د مشرکانو له قسم څخه چې د مخلوق عبادت وکړم چې مستحق د هغه خالق المخلوقات دی، او د ابراهیم سره دلیل ویل شروع کړه قوم دده.

**پوه سه**: چې دوی دا ورته وویل چې زموږ د خدایانو څخه وېرېږه چې ضرر به درورسوي او له نمروده وېرېږه چې مړ به دي کړي.

**درویش وایي**: چې دا خبري خو صرف ددوی مجادله وه حجت خو نه ؤ، نو اطلاق د حجت ددوی پر دغه مجادله باندي مبني پر زعم ددوی چې دوی دا حجت باله وروسته تر دې چې ابراهیم په دلائلو صحیحه وو سره وحدانیت د خدای او استحقاق د عبادت د خدای ورته ثابت کړی کمامرت، نو ددوی خبري د هغه چا دي چې له استدلال څخه عاجزه سي، نو هر څه چې پر خولـه ورغله وایي چې دې ته کلام د مبهوت وایي او په عربي کتابو کې یې مجادله محضه بولي.

قَالَ اَتُحَآجُّوْٓنِّیْ فِی اللّٰهِ وَقَدْ هَدٰىنِ ؕ

یعني تر تمام د استدلال صحیح په وجوه مختلفه وو سره پر وجود د خدای پاک او پر توحید دده تاسي لاهنوز زما سره مجادله کوئ او ما بېروئ په بتانو یا په نمرود سره چې ستاسي په زعم باطل سره خدایان دي، او په تحقیق سره خدای پاک ماته صحیح لار ښوولې ده.

**پوه سه**: چې کسره د نون دال ده پر یا محذوفه باندي په نېز د اکثرو قراؤ

صرف ابو عمر یې په وصل کې په یا سره وایي.

**وَلَآ اَخَافُ مَا تُشْرِكُوْنَ بِهٖ**

او زه نه بېرېږم له هغو شیانو څخه چې تاسې یې شریکوئ د خدای ﷻ سره یعني په عبادت کې چې بتان دي یا نمرود دی چې د خدایي دعوه یې کړې وه. نو هغه فلکي شیان دي لکه کواکب، لمر او سپوږمۍ. او که د ذوی العقول د عنصریاتو وي لکه نمرود ملعون او که له جماداتو څخه وي لکه ستاسې معبودان بتان، ولې سړی خو د هغه چا څخه بېرېږي چې په قدر تر ده بالا وي او دا مذکوره شیان هیڅ قدرت نه لري پر نفع او ضرر باندې او که نمرود قدرت لري هغه هم اقتدار د خدای ﷻ دی امتحاناً للعباد.

**پوه سه:** چې آذر یعني د ابراهیم علیه السلام پلار چې نوم یې تارخ و بتان جوړول او د ابراهیم علیه السلام په لاس به یې ورکړه چې دا را خرڅ کړه. نو ابراهیم علیه السلام به ناري وهلې چې رانسئ هغه شی چې نه ضرر لري او نه نفع بل ضرره اقرب من نفعه، نو هیڅ چا نه رانیول. نو چې ماښام به سو یوې ولې ته به یې بتان وروړه او سرونه به یې په اوبو ورچخ کړه او ورته وه به یې ویل اشربي اوبه وڅښئ د استهزا په توګه.

**اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ رَبِّيْ شَيْـًٔا ؕ**

مګر نه هغه وخت د خدای ﷻ اراده سوه چې د مخلوق له خوا ماته ضرر ورسوي لکه د نمرود له خوا بالضرب والحبس وبالاخیر في القائه في النار، یعني په اراده د خدای ﷻ دی لانه لایجری في ملکه الا مایشاً.

**وَسِعَ رَبِّيْ كُلَّ شَيْءٍ عِلْمًا ؕ اَفَلَا تَتَذَكَّرُوْنَ ﴿٨٠﴾**

او فراخ دی خدای ﷻ هر شي ته ازروی علم، آیا تاسې پند نه اخلئ چې د قادر علی الاطلاق او د عاجزي مطلق فرق وپېژنئ.

**پوه سه:** چې علماً تمییز محول دی له فاعل څخه والتقدیر وسع علم ربي کل شئ.

وَكَيْفَ أَخَافُ مَا أَشْرَكْتُمْ وَلَا تَخَافُونَ أَنَّكُمْ أَشْرَكْتُمْ بِاللَّهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهِ عَلَيْكُمْ سُلْطَانًا

او زه به څرنګه وېرېږم له هغه شيانو څخه چي تاسي د خداى ﷻ شريکان کړي دي په عبادت چي بتان دي چي نه يې نفع په طاقت کي ده او نه يې ضرر ولي چي جمادات دي، او استفهام لپاره د انکار دی يعني بېرېږم او تاسي نه بېرېږئ چي تاسي شريکان ګرځولي دي د خداى ﷻ سره هغه اصنام چي نه دي نازل سوي د هغو په شراکت سره د خداى ﷻ سره په عبادت پر تاسي باندي يو دليل، او سره ددې چي خداى پاک قادر مطلق دی پر عذاب. نو تاسي بايد وبېرېږئ د خداى ﷻ له عذاب څخه يعني بايد ايمان راوړئ.

**پوه سه**: چي واو د حال دی په "لاتخافون" کي.

فَأَيُّ الْفَرِيقَيْنِ أَحَقُّ بِالْأَمْنِ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ

نو کوم يو ددغو دوو ډلو ډېر حق داره دی په امن سره له عذاب څخه د خداى که تاسي پوهېږئ يعني نحن احق بالامن لانا نعبد المعبود بالحق القادر المطلق وانتم تعبدون الآلهة الباطلة التي لاتقدر على شئ من النفع والضرر اصلاً.

الَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُمْ بِظُلْمٍ أُولَٰئِكَ لَهُمُ الْأَمْنُ وَهُمْ مُهْتَدُونَ

**پوه سه**: چي "الذين" سره د صلې مبتدأ ده او جمله د "اولئک آه" يې خبر دی او "هم مهتدون" پر خبر معطوف دی او "لم يلبسوا" عطف دی پر "آمنوا"

**ترجمه**: هغه کسان چي ايمان يې راوړی وي يعني پر خداى ﷻ په وحدانيت سره او نه يې وي ګډ کړی خپل ايمان په ظلم سره يعني الشرک لکه مشرکين د مکې خداى ﷻ خالق السموات وغيرها من المخلوقات بولي، او ددې ايمان شرک ګډ کړی دی يعني عبادت د اصنامو، نو هم دغو کسانو لره امن له عذابه د خداى ﷻ يعني د قيامت په ورځ او دوی دي چي وحق او جنت ته يې لار پيدا کړې ده. اللهم اجعلنا منهم برحمتک يا ارحم الراحمين.

**درويش وايي**: چي له عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روايت دی چي بخاري او مسلم دواړو راوړی دی چي دا آيت چي نازل سو "الذين آمنوا ولم يلبسوا" پر

مسلمانانو د عصر نبوي ډېر سخت تاثیر وکړی، نو دوی وویل یا رسول الله ﷺ څوک به وي زموږ څخه چي ایمان دې په ظلم سره نه وي گډ کړی یعني ددوی خیال دا ؤ چي له ظلم څخه مراد نفس گناه ده، نو علیه الصلوٰة والسلام ودوی ته اطمنان ورکړی چي مراد په دې آیت سره له ظلم څخه شرک دی، آیا تاسي نه دي اورېدلی قول د لقمان و خپل زوی ته په داسي حال کي چي لقمان وخپل زوی ته نصیحت کاوه یابني لاتشرک بالله ان الشرک لظلم عظیم.

**پوه سه**: چي دا آیت الذين آمنوا جمله مستانفه ده یعني مستقله جمله ده له جانبه د خدای ﷻ.

**تنبیه**: درویش وایي چي بعض معلوم الحال ډلي بې له نوم اخستلو هر سړی یې پېژني پر دې عقیده دي چي وروسته تر سني شپږ سوه د هجرت ټوله امت محمدیه تر علماً او تر جهالو او تر نر او ښځو پوري هغه کسان دي چي ایمان یې په شرک سره کړی دی لکه د مشرکینو د مکې، ولي چي دوی وایي که څوک سفر وکړي په نیت د قبر نبوي ﷺ فقط هغه مشرک دی، حتّی چي د درویش په زمانه کي یو ملا ؤ له دغو ډلو څخه چي څو کسان هم عقیده یې پیدا کړي وه، نو یو نفر په هغو کي چي حج یې کړی و، دې ملا پوښتنه ځني کړې وه چي ته وروسته تر حج مدیني منورې ته په څه نیت سفر کړی ؤ هغه حاجي ورته ویلي وه چي په نیت د زیارت د قبر انور نبوي ﷺ مي سفر کړی ؤ، نو ملا مذکور ورته ویلي وه چي ته خو په نیت سره مشرک سوې بل حج به کوې او د ماینې سره به نوې نکاح کوي او هر څو لمونځونه چي دي وروسته تر حج کړي دي هغه تا په حالت کي د شرک کړي دي هغه هیڅ اعتبار نه لري، او دغه رنگه دوی وایي چي که یو څوک د یو ولي الله قبر ته سفر وکړي هغه مشرک دی او استمداد غوښتل له اهل قبور څخه شرک دی الی غیر ذالک من خرافاتهم.

**درویش وایي**: چي څو کاله دمخه دا ډله په یوه نامه یادېدله چي د خلگو به نفرت ځني کېدی او په اوسني زمانه کي ورته عقیده والا څو ډلي سوي دي اللهم صبراً.... بیت..... چو بینم دین احمد درغریبی... دلم سوزان وزچشم خون جاری

ددوی یو ملا ماته وویل چي ته چي له اهل قبر څخه مدد غواړې ایا ته په دې خبر یې چي دا اهل قبر پر ایمان مړ دی یا پر کفر، العیاذ بالله، ما ورته وویل چي زه خو پر حسن ظن د صاحب القبر څخه کومک غواړم یعني د شفاعت په توګه الی الله ﷻ لا باستقلاله بالمدد مګر زه ستا څخه یوه پوښتنه کوم چي ستا مور او پلار ژوندي دي او که مړه ده راته وویل چي مړه دي، ما ورته وویل چي ته ګاهي دوی ته دعا کوې. ده راته وویل ولي نه زه همېشه وایم اللهم اغفرلي ولوالدي" نو ما ورته وویل چي ته په دې خبر یې چي ستا مور او پلار پر اسلام مړه دي او که پر کفر او وکافر ته خو د بخښي دعا نه ده روا، نو دی حیران لاجوابه سو، خبر تیا درویش په دې باره کي دوې مستقلي رسالې جوړي کړي او تصنیف کړي دي چي عنقریب به له مکتبة اهل السنة والجماعة یا مکتبه القرآئت څخه ستاسي ولاس ته درسي ان شآ الله تعالی.

**درویش وایي:** چي دا ټولي خبري په طور د جمله معترضه منځ ته راغلې اوس بیرته د قرآن کریم د تفسیر پر لور.

## وَتِلْكَ حُجَّتُنَآ ءَاتَيْنَٰهَآ إِبْرَٰهِيمَ عَلَىٰ قَوْمِهِۦ

**یوه سه:** چي "تلک" اشاره الی مامر من قوله تعالی فلما جن اللیل الی قوله تعالی وهم معتدون"

**فائده:** مظهري رحمه الله وایي چي دا آیت اصرح دلیل پر دې دی چي هغه خبري او دلائل احتجاج ؤ پر قوم باندي لاتفکراً واستدلالاً لنفسه. مظهري رحمه الله زیاته کړې ده کیف والنفوس القدسیة لا یحتاجون الی تبحشم الاستدلال.

**درویش وایي:** چي مظهري رحمه الله هغه دري دمخه قصې کړي په باره کي د ابراهیم علیه السلام او درویش دمخه هم رد کړه اوس مظهري په خپله پر قصه پښېمانه سو او حکم د بعید جداً یې پر کړی دی الحمد لله الذي الهمني رد القصة المذکورة.

**یوه سه:** چي "تلک" مبتدا ده او "حجتنا" یې خبر دی والمعنی دغه مذکوره في الآیات السابقة زموږ حجت او دلیل دی چي موږ ورکړی ؤ وه ابراهیم علیه السلام ته پر خپل قوم باندي یعني نمرود ومن بعث الیهم.

نَرْفَعُ دَرَجٰتٍ مَّنْ نَّشَآءُ ۭ اِنَّ رَبَّكَ حَكِيْمٌ عَلِيْمٌ

موږ پورته کوو ولوړو درجو ته په علم او حکمت او د کافرانو په الزام کي هغه څوک چي زموږ اراده ورته وسي، لکه په مانحن فیه ابراهیم ﷺ په تحقیق ستا خدای یا محمد ﷺ څښتن د حکمت دی چي بې فائدې کار نه څني صادرېږي او په حال د خپل مخلوق ښه خبر دی.

وَوَهَبْنَا لَهٗٓ اِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ ۭ كُلًّا هَدَيْنَا

او موږ ور کړی و ابراهیم ﷺ ته اسحٰق و یعقوب موږ هدایت ورته کړی و.

**پوه سه**: چي "کلا" منصوب په هدینا متاخر دی.

**فائده**: اسحٰق خو د ابراهیم ﷺ زوی و او یعقوب د ابراهیم ﷺ لمسی و و د اسحٰق ﷺ زوی و.

**درویش وایي**: چي هغه حکایت نادره د مظهري رحمه الله صاحب د روح البیان ددې آیت په تفسیر کي راوړی دی والله اعلم بالصواب.

وَنُوْحًا هَدَيْنَا مِنْ قَبْلُ

او نوح ﷺ ته موږ هدایت کړی دی یعني نبوت مو ورکړی و دمخه تر ابراهیم ﷺ.

**پوه سه**: چي د نوح هدایت او نبوت یې پر ابراهیم ﷺ نعمت وشمیره لان نوح من ابائه.

**مسئله**: شرف د ولد شرف د زوی ګڼل کېږي په شرط ددې چي داسي زوی نه وي لکه کنعان د نوح ﷺ زوی، او شرف د زوی شرف د پلار ګڼل کېږي په شرط ددې چي آذر خوندي پلار نه وي لکه د ابراهیم ﷺ.

وَمِنْ ذُرِّيَّتِهٖ دَاوٗدَ وَسُلَيْمٰنَ وَاَيُّوْبَ وَيُوْسُفَ وَمُوْسٰى وَهٰرُوْنَ

بعض مفسران وایي چي ضمیر د "ذریته" راجع دی و ابراهیم ته ولي چي کلام په ده کي و، او بعض وایي چي ضمیر راجع دی و نوح ته، ولي دا مرجع اقرب ده لکن صحیح دادی چي ضمیر دي نوح ته راجع سي ولي چي یونس او

لوط له اولاد څخه د ابراهیم نه وه "داؤد" بن الیشا "وسلیمان" بن داؤد "وایوب" بن ابنوس بن رازخ بن روم بن عیس بن اسحاق بن ابراهیم "ویوسف" بن یعقوب بن اسحاق "وموسٰی وهارون" چي هارون مشر ورور د موسٰی او دواړه زامن د عمران بن یصهر بن قاهت بن لاوی بن یعقوب وه.

وَكَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ۝ وَزَكَرِيَّا وَيَحْيَىٰ وَعِيسَىٰ وَإِلْيَاسَ ۖ كُلٌّ مِّنَ الصَّالِحِينَ ۝

او داغه رنګه موږ جزا ورکوو علی احسانه یرفع درجاته ودرجات ابنائه. والاحسان علی ماجاء في حدیث البخاري ان تعبد الله کانه تراه فان لم تکن تراه فانه یراک.

**یوه سه:** چي "کذالک" منصوب دی علی المصدریة په "نجزٰی" سره ای جزاً مثل ابراهیم.

"وزکریا" بن اذن "ویحیٰ" بن زکریا عیسی بن مریم بنت عمران "والیاس" بن متی بن فحاض بن غیرار بن هارون، او ابن عباس ﷺ وایي چي الیاس هو ادریس او د دوه نومان لکه یعقوب او اسرائیل چي یو نبي دوه نومه وه لکن پر دې دا سوال وارديږي چي ادریس ؑ له ذریه څخه د نوح ؑ نه دی بلکي جد ابي نوح "کل" ای کل واحد من هؤلاء من الصالحین ای المعصومین من الصغائر والکبائر فان من اتی بما نهی الله عنه او ترک ما امر الله به فهو من المفسدین وان قل فساده واطلاق الصالح علی غیر المعصوم اضافي، لکن اطلاق د صالح علی من عصی ثم تاب عنه واستغفر عنه صحیح بالحقیقة لان التائب من الذنب کمن لا ذنب له لکن کامل في الصلاح هو المعصوم.

وَإِسْمَاعِيلَ وَالْيَسَعَ وَيُونُسَ وَلُوطًا ۚ وَكُلًّا فَضَّلْنَا عَلَى الْعَالَمِينَ ۝

واسمٰعیل" بن ابراهیم جد النبي علیه الصلوٰة والسلام "والیسع" بن اخطوب بن العجوز "ویونس" بن متٰی "ولوطا" بن هارون بن اخي ابراهیم علیه وعلیهم السلام.

او هر یوه ته ددوی ما فضیلت ورکړی دی علی العالمین ای عالمي زمانهم.

**یوه سه:** چي "کلا" منصوب دی مفعول مقدم د فضلنا دی.

وَمِنْ آبَائِهِمْ وَذُرِّيَّاتِهِمْ وَإِخْوَانِهِمْ ۖ

عطف دی پر "كلا" يعني فضلنا كلا منهم وبعض ابائهم وبعض وبعض ذرياتهم وبعض اخوانهم يعني ټوله آبا او ټوله اولاد د دوی او ټوله ورڼه ددوی خو ټو انبيا نه وه او نه هدايت کونکي د خلګو وه.

وَاجْتَبَيْنٰهُمْ وَهَدَيْنٰهُمْ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۸۷﴾

او دوی ما برګزيده او مختاره کړي او ما هدايت ورته کړي ؤ ولاري سمي او حق ته. دا عطف دی پر "فضلنا" باندي.

ذٰلِكَ هُدَى اللّٰهِ يَهْدِيْ بِهٖ مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ ط

دغه چي انبيا عليهم السلام راتګ په کړی و، من توحيد الله واستحقاقه العبادة هدايت د خدای ﷻ چي په هغه سره هدايت وهغه چاته چي د خدای ﷻ خوښه وي له بندګانو څخه د خدای ﷻ.

**فوائد شتی**: عيسی ﷺ خو کمامر ابن مريم بنت عمران من بني ماثان الذين ملوک بني اسرائيل د عيسی ﷺ په ذکر کي دليل پر دې دی چي ذرية اولاد البنت ته هم شامل دی، نو پر دې بنا امام الحسن وامام الحسين رضي الله عنهما له ذرية څخه د سيد المرسلين ﷺ دي مع انتسابهما اليه ﷺ بالام اعني فاطمة ﷺ. که څوک حسن او حسين رضي الله عنهما ته آزار ورسوي فقد آذی ذريته ﷺ.

**درويش وايي**: چي دا سلسله جاري ده په ټوله سادات کرامو کي الی يوم القيامة.

**مسئله**: د چا پلار چي سيد وي، نو مور چي يې هر څوک وي هغه سيد دی او له ذرية څخه د رسول الله ﷺ دی لکن په غير کي د فاطمي ﷺ طرف د مور اعتبار نه لري مثلاً يو سړی په قوم بل شی ؤ مګر ماينه يې سيده وه هغه له ذرية څخه د عليه الصلوٰة والسلام نه دی يعني ددې ښځي اولاد چي سيده ده او مېړه يې نه دی سيد سيدان نه دي کذا في رد المحتار.

**پوښتنه**: اسماعيل ﷺ خو هم له ذرية څخه د ابراهيم ﷺ ؤ، نو څه حکمت دی چي دی يې جلا راوړی؟

**ځواب**: چونکه محمد المصطفی ﷺ له اولاد څخه د اسماعيل ﷺ ؤ يعني

بالواسطة او ټوله کائنات طبع دي د رسول اللهﷺ کما ثبت في الاحاديث الشريفة، نو خدای پاک وجود د اسماعیل طبع د وجود د ابراهیم علیه السلام نه وګرځاوه، نه يې هدايت د اسماعيل علیه السلام طبع د هدايت د ابراهيم وګرځاوه لشرف محمدﷺ فلذا افرده بالذکر واخره في الذکر ایضاً کذا في روح البیان.

**وَلَوْ أَشْرَكُوا لَحَبِطَ عَنْهُم مَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ**

که چېرې شرک کړی وای دغو انبیاً علیهم السلام فرضاً مع علوشانهم وفضیلتهم خدای پاک به ناکره کړي وای هغه څه له دوی څخه چې دوی یې عمل کاوه، نو کلمه د ما موصوله ده او په صله کې یې محذوف دی یعنې یعملونه او دا احتمال لري چې ما دي مصدریه وي ای عملهم.

**أُولَٰئِكَ الَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ**

دغه انبیاً علیهم السلام چې ذکر سوه هغه کسان دي چې موږ ورکړی ؤ دوی ته کتاب. لام په "الکتاب" کې لپاره د جنس دی، ولې چې د ټولو خو یو کتاب نه ؤ بلکې کتب متعدده وه.

**تنبیه**: مراد له اتيان څخه د کتاب عام دی که پر هغه نبي نازل وي او که دی مامور په تبلیغ د احکامو د هغه کتاب وي، ولې چې دې مذکورو انبیاؤ هر یوه ته جلاجلا کتاب خدای ﷻ نه دی نازل کړی مثلاً انبیاً د بني اسرائیلو ټوله مامور په تبلیغ د احکامو د تورات وه چې نزول یې پر موسیٰ علیه السلام ؤ.

**فائده**: مراد له حکم څخه حکمت او فقه ده، او یا فیصله ده خصوصات بین الناس في زمانهم.

**فَإِن يَكْفُرْ بِهَا هَٰؤُلَاءِ فَقَدْ وَكَّلْنَا بِهَا قَوْمًا لَّيْسُوا بِهَا بِكَافِرِينَ**

که چېرې کفر کوي په کتاب او حکم او نبوت دغه کسان یعنې کفار قریش، نو موږ وکیلان په دغو درو شیانو، یو قوم ګرځولی دی چې هغه قوم نه دی په دغو درو شیانو سره کافران. والباً زائدة.

**یوه سه**: چې مراد له وکالت څخه توفیق دی د عمل او مراعات دی احکامو د هغو، ابن عباس او مجاهد وایي چې له دې قوم څخه انصار د مدنې مراد دي،

لکن اولی داده چې مراد ترې ټوله صحابه دي که مهاجر دي که انصار ﷺ، او بعض کسان چې ددوی متابعت کوي کالتابعين وتبعهم ثم وثم.

## أُولَٰئِكَ الَّذِينَ هَدَى اللَّهُ

دغه مذکورون د انبياً عليهم السلام، هدايت کړی دی دوی ته د اصول د دين چې په ټولو اديانو کې شريک کالتوحيد والبعث بعد الموت والجنة والنار وغيرها من الاصول المشترکة بين الاديان والانبياً والکتب الالهية. او يا امر کول د خلګو په هغه څه چې خدای ﷻ امر په کړی او منع کول د هغو افعالو څخه خدای ﷻ نهي ځني کړې کما هو وظيفة جميع الانبياً والمرسلين صلوات الله وتسليماته عليهم اجمعين.

## فَبِهُدَاهُمُ اقْتَدِهْ

نو ته اې محمد ﷺ ددوی په لار تلونه و خلګو ته اقتدا وکړه.

**يوه سه:** چې "تقديم" د ظرف يعني بهداهم پر عامل باندي يعني اقتده لپاره د حصر ده يعني لا تقتد الا بهداهم په دې جمله کې رد دی پر مشرکانو چې دوی اقتدا کوي بآبائهم الضالين.

**فائده:** مراد له اقتدا څخه په طريقې پوري د انبياً مذکورين صرف ددوی پر طريقه عمل کول دی لا تقليدهم، ولي چې تقليد خو شان د اهل اجتهاد دی من الامة وبس فکيف يليق التقليد بالانبياً سيما بسيد الانبياً محمد ﷺ. والمعنى اسلک يا محمد على طريق الهداية الى الناس واتباع شرعک المؤيد بالعقل السليم کما سلکوا. نو په دې کي تنبيه ده پر دې چې طريقه د انبياً هو الحق الموافق للدليل السمعي والعقلي. محقق بيضاوي وايي چې مراد د هداهم څخه هغه شيان دي چې د ټولو انبياً پر هغه اتفاق دی من التوحيد واصول الدين. دون الفروع المختلف فيها کالصلوة والزکوة والحج وغيرها. ولي چې فروع الدين خو د ټولو انبياً ؑ سره يو نه دی او نه دا ممکنه ده چې عليه الصلوة والسلام دې د ټولو مختلف فيها مراعات وکړي. بيضاوي په اخير کې وايي ليس فيه دليل

على انه ﷺ كان متعبداً بشرائع من قبله كما قال بعض من لا دراية له ولا مراعات منصبه الجليل.

**فائده**: تعبد" په شرائعو سره د "من قبلنا" چي حكايت يې په قرآن كي وسي او انكار نه پر وكړه او يا يې حكايت عليه الصلوٰة والسلام وكړي او انكار يې نه پر وكړي. او هغه احكام سابقه چي نسخ يې ثابتوي زمور په شريعت كي په هغو سره عمل نه دى روا.

**فائده**: هاً د اقتده هاً السكت بولي چي بعض قراً يې وايي او بعض يې ساقطوي، والتفصيل في كتب القرائة، وتفصيل الفائدة السابقة في كتب اصول الفقه.

**فائده** سنية: خاتمة المفسرين قدوة ارباب الحقيقة واليقين شيخ اسماعيل حقي بروسى المتوفي سنه ۱۱۳۷ ھ قدس سره العالي په خپل تفسير كي وايي چي علماً محققين د امت محمدي په دې آيت سره اعني فبهداهم آه دليل وايي چي آنحضرت ﷺ افضل تر ټولو انبياو عليهم السلام دى كما ورد في الحديث انا سيد اولاد آدم ولا فخر الى اخير الحديث لان خصال الكمال والشرف كانت متفرقة في الانبياً السابقين، فداؤد وسليمان كانا من اصحاب الشكر على نعمه تعالى التي اعطاهما وايوب من اصحاب الصبر على بلا يائه تعالى، ويوسف كان بين البلية في الاول وبين العظيمة في الآخير فصبر على البلايا وشكر على النعماً وموسى عليه السلام كان صاحب المعجزات الباهرة، وزكرياً ويحيٰى وعيسىٰ والياس عليهم السلام كانوا اصحاب الزهد في الدنيا، واسماعيل عليه السلام كان صاحب الصدق فكل من غلب فيه صفة من صفات جميع الله تعالى جميعه في حبيبه وصفيه ﷺ لانه كان ماموراً بالاقتداً بهم.

هرچه بخوبان جهان داده اند قسم تو نيكو تر ازان داده اند
هر چه بنازند بدان دلبران جمله تراهست زيادت بران

قُلْ لَّآ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ اَجْرًا ۗ اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٰى لِلْعٰلَمِيْنَ ۟

ته ورته ووايه كفارو ته د مكې چي زه نه غوارم له تاسي څخه پر تبليغ يا پر قرآن مزدوري، نه دى قرآن يا تبليغ مگر وعظ دى وعالمينو ته اعني الانس والجن على

العموم لانه نبي الثقلين لاتخصيص بالعرب ولا بالعجم ولا بالانس ولا بالجن.

**پوه سه**: چي عليه الصلوٰة والسلام مامور سو په نه غوښتنه د اجر ستاسي ولي چي اجر الهي خو جاري ده لکه نور انبياءٔ عليهم السلام چي په اول کي د تبليغ به يې د نه غوښتلو اعلان کاوه كما ورد في عدة مواضع من القرآن في تبليغ الانبياءٔ نو په دې کي هم عليه الصلوٰة والسلام مامور دی بالاقتداءٔ بهم.

**مسئله**: ددې آيت څخه دا معلومه سوه چي تنخواه غوښتل پر تعليم القرآن يا پر تعليم الفقه يا پر تعليم الحديث وقس عليها الامامة والاذان نه ده روا.

**درويش وايي**: چي دا قول د متقدمينو د فقهاؤ دی او متاخرينو تولو فتوٰی د جواز ورکړی ده لظهور التواني في امور الدين كما في شرح الوقاية لکن سره د فتوی د متاخرينو عدم اشتراط الاجر في الامور المذكور افضل دی. په حديث کي د ابي حاتم بن جبير څخه راغلي دي چي يوه ډله د يهودانو په مشری د يو عالم د يهودانو چي د هر چاغ او ښېتور ؤ. او نوم يې مالک بن الضيف ؤ د بحث او مناظرې لپاره عليه الصلوٰة والسلام ته راغلی. نو عليه الصلوٰة والسلام ورته وويل چي زه قسم درکوم چي تورات يې پر موسٰی عليه السلام نازل کړی دی په هغه کي تا نه دي ليدلي چي د خدای مبغوض چاغ حبر دی يعني عالم ته درد ورغلی نو يې وويل والله ما انزل الله على بشر من شئ نو ملگرو يې ورته وويل ويحک ولا على موسٰی التوراة. نو دی د چاغ والي د پېغوره د تولو کتابو څخه منکر سو حتٰی التوراة چي کتاب د يهودانو ؤ نو آيت نازل سو.

## وَمَا قَدَرُوا اللَّهَ حَقَّ قَدْرِهِ

يعني دوی خدای جل جلاله په حق پېژندلو سره نه دی پېژندلی. ولي که يې پېژندلی وای نو د تولو کتابو څخه يې څه رنگه انکار کاوه په شمول د خپل كتاب تورات. بغوي رحمه الله وايي چي يهودانو ددې مقالې دده له حبريت څخه سبکدوش کړی. او دده پر ځای يې کعب بن الاشرف نامزد کړی. او سدي رحمه الله وايي چي دا آيت په حق کي د فخاص بن عازورا نال سوی دی او قائل قول هم دغه فخاص و والله اعلم.

إِذْ قَالُوا مَا أَنزَلَ اللَّهُ عَلَىٰ بَشَرٍ مِّن شَيْءٍ ۗ قُلْ مَنْ أَنزَلَ الْكِتَابَ الَّذِي جَاءَ بِهِ مُوسَىٰ نُورًا وَهُدًى لِّلنَّاسِ

**پوه سه:** چي "اذ" ظرف دی د ما قدر الله حق قدره چي دوی وويل يعني مالک الضيف، وجمع ضمير قالوا مع ان القائل واحد لرضا غيره بقوله مثل بنوا فلان قتلوا والقائل واحد منهم، چي نه دی نازل کړی خدای ﷻ پر هيڅ بشر.

**پوه سه:** چي دی منکر سو د بعثت د ټولو انبياؤ پر طريقه د سلب کلي هيڅ شی يعني هيڅ کتاب.

**پوه سه:** چي دا انکار دی د ټولو کتب الٰهيه وو څخه پر طريقه د سلب کلي.

**درويش وايي:** چي د دوو سالبتينو کليتنو دعوه نو په جواب کي ايجاب جزی د بعث د موسیٰ عليه السلام او ايجاب جزي د نزول د تورات کافي دی لانهم قالوا ان الموجبة الجزئية نقيض السالبة الکلية، نو ته يا محمد ﷺ په ابطال د دوو سلب کلي چي دوی دعوه کړې وه چي چا نزل کړی دی هغه کتاب يعني تورات چي راتګ په کړی دی موسیٰ چي کان بشراً رسولاً چي هغه کتاب نور معنوي و د خلګو لپاره يعني بني اسرائيلو لپاره.

**پوه سه:** چي "نوراً" حال دی له کتاب څخه او حمل يې مبالغةً دی وکذا هدیً او هغه کتاب هدايت د خلګو لپاره يعني د بني اسرائيلو لپاره.

تَجْعَلُونَهُ قَرَاطِيسَ تُبْدُونَهَا وَتُخْفُونَ كَثِيرًا ۖ

چي تاسي ګرځولی دی هغه کتاب تورات جلا جلا دفترونه چي تاسي ښکاره کوئ يعني بعض د هغو قراطيس يعني چي ستاسي نفع پکښې وي کالزکوٰة للعلماء والصدقات والاحترام للعلماء، او تاسي پټوئ ډېر د هغو قراطيس له عوامو څخه کنعوت النبي عليه السلام وآية الرجم وغير ذالک.

**درويش وايي:** چي په دې آيت نهايت ذم او توبيخ د علماء د بني اسرائيلو، ولي چي دوی تورات مطابق د شهواتو سره استعمالوي.

وَعُلِّمْتُم مَّا لَمْ تَعْلَمُوٓا أَنتُمْ وَلَآ ءَابَآؤُكُمْ

او تاسي ته يې دروښوول هغه احکام چي نه تاسي په خبر واست او نه ستاسي پلرونه، ولي ستاسي ملايانو يا ستاسي څخه پټ کړي وه او يا تغيير او تبديل پکښي کړي وه.

**بوه سه:** چي اکثر مفسرين او علما پر دې دي چي دا خطاب خو يهودانو ته دی لکن تعليم پر لسان د محمد ﷺ دی، يو هغه پټ کړي احکام د تورات کمامر او بل علی في التورات من الاحکام الآلهية في القرآن النازل علی محمد ﷺ او يا بيان د هغو آياتو چي پر تاسي او ستاسي پر پلرو به شکل يعني نه به په هدايت عليه الصلوٰة والسلام د هغو مشکلاتو د تورات د آيتو حل او کشف ورته وکړی چي دا مشکلات به د دوی د ملايانو د خوا په لاس وهونکي د تورات په آيتو پيدا سوي وه کما قال الله ﷻ ان هذا القرآن يقص علی بني اسرائيل اکثر الذي هم فيه يختلفون، او مجاهد وايي چي دا خطاب دی وه مسلمانانو ته ودوی ته ورښيي هغه نعمت د علم چي په بعثت د رسول الله ﷺ ودوی ته حاصل سو.

قُلِ ٱللَّهُ ثُمَّ ذَرْهُمْ فِى خَوْضِهِمْ يَلْعَبُونَ ﴿٩١﴾

ته ورته وايه چي خدای ﷻ نازل کړی دی هغه کتاب چي موسیٰ ﷺ راتګ په کړی دی يعني تورات بيا نو دوی پر پرېږده چي په باطلو خبرو کي سات تېروي.

**بوه سه:** چي "قل" جواب د هغه استفهام چي من انزل الکتاب الذي جاء به موسیٰ يعني نو عليه الصلوٰة والسلام خدای ﷻ امر کړی چي ته جواب د استفهام ورکړه دوی که وايي او که نه اذ لاجواب غيره او يلعبون حال دی د مفعول څخه د ذرهم او في خوضهم په يلعبون پوري.

وَهَٰذَا كِتَٰبٌ أَنزَلْنَٰهُ مُبَارَكٌ مُّصَدِّقُ ٱلَّذِى بَيْنَ يَدَيْهِ

او دا قرآن کتاب دی چي موږ نازل کړی دی يعني پر محمد ﷺ چي کثير البرکة والخير والنفع دی او تصديق کونکی د هغو کتابو دی چي تر ده دمخه نازل سو يوه کتوراة موسیٰ وانجيل عيسیٰ وغيرهما.

وَلِتُنذِرَ أُمَّ الْقُرَىٰ وَمَنْ حَوْلَهَا

**پوه سه:** چي "ولتنذر" عطف دی پر ما يفهم من مبارک يعني لتنفع به ولتنذر آه يعني ته فائده پر واخلې او ته وبېروې په قرآن سره اهل د ام القرٰی چي مکه مکرمه ده يعني مشرکان د مکې او د شاوخوا خلگ د ام القرٰی.

**پوه سه:** چي مکه مکرمه چي ام القرٰی يې بولي له دې سببه چي ټول ه ځمکه تر دې لاندي غوړول سوې ده، نو دا لکه اصل د ټولي ځمکي او بل په دې سبب چي قبله د اهل القرٰی من المسلمين. او د من حولها څخه مراد تر شرق او غرب او جنوب او شمال پوري ټوله ځمکه ده.

وَالَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ يُؤْمِنُونَ بِهِ وَهُمْ عَلَىٰ صَلَاتِهِمْ يُحَافِظُونَ

او هغه کسان چي ايمان لري پر ورځي د اخرت هغه ايمان لري پر قرآن او هغه کسان پر لمانځه باندي دوام کوي سره د اداء د ټولو حقوقو د لمانځه.

**پوه سه:** چي مراد له صلوٰة څخه جنس دی چي پنځو سرو لمونځو ته شامل سي. ووجه ذالک چي هغه کسان چي پر اخرت ايمان لري، نو د هغې ورځي د حساب او عذابه څخه بېرېږي، نو به دی د ځان سره غور او فکر وکړي، نو به يې دا يقين سي چي سبب د خلاصون زما به ايمان گرځي پر نبي ﷺ او پر قرآن.

**پوه سه:** چي ضمير د به احتمال د دواړو لري يعني القرآن او عليه الصلوٰة والسلام او د ايمان صادق له لوازمو څخه دی محافظت د ارکانو د اسلام وخص الصلوة من بين الطاعات لانها عماد الدين کما ورد في الحديث الصحيح.

**پوه سه:** چي په دې آيت تعريض پر يهودانو چي دوی قرآن او عليه الصلوٰة والسلام نه مني، نو دا له دې سببه چي دوی اخرت نه مني او پر تورات ايمان هم نه لري للتلازم بين الايمان بالآخرة والايمان بالتوراة والايمان بالقرآن.

وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا

**پوه سه:** چي استفهام د "من" انکاري دی ای لا احد اظلم تر هغه چا دروغ وايي پر خدای ﷻ باندي.

**یوه سه**: چي افترى مشتق ده له فرية څخه وهو الكذب، نو بناً عليه كذباً مفعول مطلق دی د افترى چي لفظ هم نه دی سره موافق مثل قعدت جلوساً وفيه شئ.

**یوه سه**: چي مراد د مفترى على الله مثل مالک بن الضيف دی چي ده وويل چي ما انزل الله على بشر من شئ او بعض مفسران وايي چي مراد له مفترى څخه په دې آيت کي مسيلمة كذاب او اسود عنسي دی چي دواړه دعوې د نبوت کړي وې په حيوة کي د رسول الله ﷺ، او بعض وايي چي مراد ددې مفترى څخه عمر بن لحي دی چي اول سړی دی چي دين د اسماعيل عليه السلام يې بدل او بتان يې په مكه شريفه کي ودرول، او سائبه او بحيره او حام چي دمخه تېر سوي دي هغه ددغه عمر بن لحي د درواغو پر خدای جل جلاله يوه برخه ده، قتادة رحمه الله وايي چي مسيلمة كذاب به مسجع الفاظ وويل چي پر ما داسي كتاب نازل سوی دی لکه پر محمد، حتى مسليمة كذاب د سورة كوثر په مقابل کي دا بې معنا الفاظ ويلي دي انا اعطيناك الجماهر فصل لربك وهاجر انا كفيناك المجاهر والمكابر، او مسيلمة كذاب و عليه الصلوة والسلام ته دوه كسه د خپلو د خپلو اتباعو را استولي وه چي محمد دي زما سره عرب نيمى كړي اهل مدر يعني د ښارو خلگ يې دده او اهل وبر يعني پونده خلگ يې زما، نو عليه الصلوة والسلام و هغو دوو كسانو ته وويل چي آيا تاسي شاهدي ادا كوئ چي مسيلمه نبي دی؟ هغو ورته وويل هو! نو عليه الصلوة والسلام و هغو ته وويل كه استونكي خلگ نه وژل كېدای مابه ستاسي غاړي په توره وهلي وای.

**درویش وايي**: چي صاحب د روح البيان مسيلمة كذاب په تفسير کي د هغه آيت راوړی دی ومن اظلم ممن افترى" او مظهري رحمه الله مسيلمة كذاب ددې آيت په تفسير کي راوړی دی.

اَوْ قَالَ اُوْحِیَ اِلَیَّ وَلَمْ یُوْحَ اِلَیْهِ شَیْءٌ

**درویش وايي**: چي كه څه هم مسيلمة كذاب مفترى على الله و لكن انسب رايه د مظهري رحمه الله ده ولي چي مسيلمة كذاب خو مطلق مفترى نه بلكي دعوى د وحي يې كوله كما في هذه الآية چي معنا يې داده چي ياوايي چي ماته وحي

کړه سوي دي یعني د خدای ﷻ له جانبه او حال دادی چي د ته وحي نه دي کړه سوي د هیڅ شي، والقصة قد مرت.

**بوه سه:** چي مسیلمة کذاب وحشي چي قاتل د حمزه ﷺ و د احد په جنگ کي وواژه وروسته تر وفات د علیه الصلوٰة والسلام او اسود عنسي فیروز دیلمي مړ کړی؛ او خبر د وژني د اسود عنسي چي فیروز مړ کړی هغه وخت و علیه الصلوٰة والسلام ته را ورسېدی چي علیه الصلوٰة والسلام په اخیري ناجوړی کي وُ.

**وَمَنْ قَالَ سَأُنزِلُ مِثْلَ مَآ أَنزَلَ اللَّهُ**

**بوه سه:** چي دا "ومن قال آه" عطف دی پر من اظلم الآیة باندي، بغوي ﷺ وایي چي دا آیت په عبدالله بن ابي سرح کي نازل سوی دی چي اسلام یې راوړی او خط نویس وُ چي د علیه الصلوٰة والسلام کاتب د وحي وُ، نو دا آیت چي نازل سو "لقد خلقنا الانسان من سلالة من طین" عبدالله المذکور وبیان ته د خلق الانسان په تعجب کي سو، نو یې وویل تبارک الله احسن الخالقین، علیه الصلوٰة والسلام و عبدالله ته وویل نوشته یې کړه داغسي نازل سوي دي، عبدالله ته شک پیدا سوچي که محمد په دعوه کي د نبوت صادق وي، نو ماته هم وحي وسوېږ وده ته وان کاذباً فقد قلت مثل ماقال. باره مرتد سو له اسلام څخه او مشرکانو ته د مکې ولاړی، لکن بغوي ﷺ وایي چي عبدالله رجوع وکړه و اسلام ته هغه چي علیه الصلوٰة والسلام لپاره د فتح د مکې سره د فوجه را روان وُ او په مر الظهران کي یې اړولي وه، حافظ فتح الدین بن سید الناس د خپل د سیرت په کتاب کي ویلي دي چي علیه الصلوٰة والسلام د عبدالله د اسلام قبلولو څخه ډډه وکړه، نو عبدالله عثمان ﷺ ورته شفیع کړی، نو علیه الصلوٰة والسلام قبول کړی وحسن اسلامه بعد ذالک حتیٰ چي هیڅ چا وده ته په نظر د نقمت نه دي کتلي، او دی چي یې مړ کړی دی د سجدې په حالت کي وُ، او ابن عباس ﷺ وایي چي دا آیت "سانزل مثل ما انزل الله" په شان کي د مستهزئینو د قرآن نازل سوی دی چي دوی په ویل لوشا لقلنا مثل هذا یعني القرآن حتیٰ چي نضر بن الحارث په مقابل کي ددې سورت قرآني والنازعات غرقاً الی اخیر الآیات داسي

وويل، والطاحنات طحناً والعاجنات عجناً والمخابرات خبراً.

وَلَوْ تَرٰى إِذِ الظّٰلِمُوْنَ

که ته ووینې "مفعول د ترٰی محذوف دی ای الظالمین کما یدل علیه مابعده "اذ الظالمون" مبتدأ ده او لام لپاره د عهد دی یعني مراد ځني یهود دي، او هغه کسان چې دعوه د نبوت یې کاذبانه کړې ؤ او مستهزئین بالقرآن دي او یا لام لپاره د جنس دی او مذکورین په کښې داخل دي. او جواب د "لو" محذوف دی ای لرئیت امراً عظیماً فزیعاً.

فِيْ غَمَرٰتِ الْمَوْتِ

په سختیو کې د مرګ دي "غمرات" جمع د غمرة ده چې معنی شدة غالبه دی ددې محاورې څخه ماخوذ دی فلان غمره الما اذا علاه وغطته چې پرده به اوبه لوړې سوې وي او دی به یې پټ کړې.

**پوه سه:** چې دا خبر دی د "الظالمون" او اضافت د غمرات و موت ته اضافت بیانیه ده. نو ګویا مرګ ډېرې سختی لرې. ولهذا قال سید البشر ﷺ حین حضرة الموت اللهم للموت سکرات.

وَالْمَلٰٓئِكَةُ بَاسِطُوْٓا أَيْدِيْهِمْ

او ملکو یعني ملکې د عذاب خلاص یې نیولې دي لاسونه لپاره د قبض او روح ددوی یعني لکه د یو سړي چې ډېر سخت طبعیت وي او پر یو چا یې پور باندې وي، او په مطالبه کې د پور ډېره سختي کوي او پوروړي ته یې دواړه لاسونه خلاص نیولي وي ورته وایي اخرج الي مالي علیک الساعة، او زه نه درسه ځم چې پور مې را نه کړې "الملائکة" مبتدأ ده او باسطوا یې خبر دی، او راتلونکی آیت یې خبر بعد الخبر دی.

أَخْرِجُوْٓا أَنْفُسَكُمْ

او راوباسئ خپل روحان، او قوله جمله حال ده له ضمیر څخه د ظرف یعني في غمرات. لان التقدیر کائنون في غمرات الموت والحال ان الملائکة آه او دا

قول د ملکو به په ډېره سختۍ ورته کوي.

اَلْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُوْنِ بِمَا كُنْتُمْ تَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ غَيْرَ الْحَقِّ وَكُنْتُمْ عَنْ اٰيٰتِهٖ تَسْتَكْبِرُوْنَ ﴿۹۳﴾

**پوه سه**: چي له "اليوم" څخه مراد د مرګ وروسته الی مالانهاية له، تاته جزاً درکول کېږي عذاب د سپکاوي او د اهانت په سبب د دې چي تاسي واست پر خدای پاک به مو درواغ ویل، لکه شریک خدای ته چي مشرکانو به وایه، یا ولد خدای لره لکه یهودو چي به ویل عزیر ابن الله یا نصارٰی به ویل چي عیسٰی ابن الله اویا به مو دعوه د نبوت کوله په درواغو کمامر في حالة مسیلمة کذاب والاسود العنسي، او تاسي واست چي د آیتو قرآنیه وو او د معجزاتو نبویه وو څخه مو کبر کاوه یعني یقین مو نه پر کاوه.

**فائده**: خدای پاک "عذاب الهون" ذکر کړی له دې سببه چي عذاب د کافر په اور کي د اهانت لپاره دی، او بعض مسلمانان که په سبب د ګنهو دوږخ ته خدای پاک وروليږي هغه عذاب د اهانت نه دی بلکې د پاکوالي لپاره دی مثلاً لرګي چي څوک پر اور اچوي هغه د لرګو اهانت دی، او سره زر که خیرن سي او زرګر يې پر کوره د اور کښېږدي هغه د صفايي لپاره دی.

وَلَقَدْ جِئْتُمُوْنَا فُرَادٰى كَمَا خَلَقْنٰكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍ

او په تحقیق تاسي راغلاست اې ظالمانو یو ازي او تنها.

**پوه سه**: چي "فرادٰی" حال دی له فاعل څخه د "جئتمونا" یعني منفردین عن الاموال والاولاد والاعوان والاحباب والاوثان، چي تاسي به ویل چي دا زموږ شفاعت کوونکي دي.

**پوه سه**: چي دا اخبار د خدای پاک له خوا پر ژبه د ملکو یا په ورځ د مرګ کمایدل علیه السیاق یعني قوله تعالی في غمرات الموت الآية" او یا په ورځ د قیامت "کما خلقنٰکم اول مرة" بدل دی له فرادی څخه یعني پر هغه ډول لکه له مور څخه چي زېږېدل یو وار وي، او لکه د مور څخه چي پیدا کېدی لڅي پښې

او لځ له کالو څخه اوس هم هغسي راغلاست.

وَتَرَكْتُمْ مَا خَوَّلْنَاكُمْ وَرَاءَ ظُهُورِكُمْ

او تاسي پرېښول په دنیا کي هغه څه چي موږ درکړي وه من الاولاد والاموال والقصور والبساتين وغير ذالک، وروسته تر شا یعني له هغو شیانو څخه مو هیڅ شی نه راوړی اخیرت ته یعني مسلمانانو خو اسلام له ځانه سره راوړی.

وَمَا نَرَىٰ مَعَكُمْ شُفَعَاءَكُمُ الَّذِينَ زَعَمْتُمْ أَنَّهُمْ فِيكُمْ شُرَكَاءُ

او موږ نه وینو ستاسي سره شفاعت کونکي ستاسي هغه چي ستاسي به زعم باطل وُ چي دغه بتان به تاسي شریکان د خدای ﷻ بلل، یعني ستاسي دا خیال وُ چي دا اصنام شریکان د خدای ﷻ دي په استحقاق کي د عبادت.

لَقَد تَّقَطَّعَ بَيْنَكُمْ وَضَلَّ عَنكُم مَّا كُنتُمْ تَزْعُمُونَ ﴿٩٤﴾

**بوه سه:** چي "تقطع" په نصب سره "بینکم" په اضمار د فاعل لدلالة ماقبله علیه او اصل یې داسي وُ لقد تقطع مابین کم من الوصل یعني ستاسي او د بتانو تر منځ هغه پیوند د دنیا چي تاسي به دوی عبادت کاوه قطع سو، اویا یې فاعل ضمیر دی چي راجع دی و مصدر ته د تقطع ای تقطع التقطع ای وقع التقطع بینکم وبینهم کما قیل حیل بین العیر والنزوان ای وقع الحیلولة او یا فاعل د تقطع بینکم دی مجازاً في الاسناد.

**سوال:** فاعل خو مرفوع دی، نو بینکم چي فاعل دی مرفوع نه دی؟

**ځواب:** بینکم" سره د فاعلیت پر نصب پرې اینبی دی للزوم ظرفیته، او بعض قرا یې په رفع د "بینکم" وایي اسناد د فعل یې وظرف ته کړی دی مجازاً، او ورک سوله له تاسي څخه هغه څوک چي تاسي دا گمان کاوه چي دا به شفعا زموږ وي په نبز د خدای ﷻ په ورځ د قیامت.

إِنَّ اللَّهَ فَالِقُ الْحَبِّ وَالنَّوَىٰ

په تحقیق خدای ﷻ څیرونکی دی د دانو لکه غنم، جوار وغیرهما، او د مندکي د خورما او شفتالو وغیرهما یعني په مځکه کي دانې وچوي او غنم

وغیره او د خورما درخته وغیره ځني راووزي، او دا معنا حسن بصري او قتادة په دغو الفاظو ذکر کړې ده شق الجنة عن السنبلة والنواة عن النخلة فيخرجها منها.

**بوه سه:** چي حب جمع د حبة ده تولو تخمو ته وايي چي د خورک وي حاصل يې، او "نوى" جمع د نواة ده د خورما وغيره مندکي ته وايي، او بعض مفسران وايي چي حب تولو تخمو ته نه وايي چي دوى خوړل کيږي بلکه غنم اوربشي جواري ورجي وامثالها. او نوات هرمندکي ته وايي چي د ميوې په منځ کي وي لکه د خورما ماندکه د بادام مندکه د شفتالو مندکه وغيرها.

## يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَمُخْرِجُ الْمَيِّتِ مِنَ الْحَيِّ

**درويش وايي:** چي انسب د مقام او سياق سره دا تفسير دى چي خداى ﷻ راباسي نُما کونکى شى لکه حيوان او نبات د غير نما کونکي ځخه کالنطفة والحبوب والنوات، او خداى ﷻ را ايستونکى دى د مالاينمو چي نما نه کوي لکه د حيوان نطفه او د چرګي هګی او داني له نما کونکي شي ځخه.

**بوه سه:** چي دا جمله لکه بيان د ماقبل ده يعني فالق الحب آه، او مخرج الميت پر عطف دى پر فالق الحب باندي ځکه يې صيغه د اسم فاعل راوړې ده. او ابن عباس رضي الله عنه وايي چي مراد له "حي" ځخه مؤمن دى او مراد له ميت ځخه کافر دى لکه ابراهيم له آذره ځخه او مخرج الميت من الحي ځخه مراد داى چي له مؤمن ځخه ميت يعني کافر وزيږي لکه کنعان د نوح عليه السلام ځخه. او ابن عباس رضي الله عنه زياته کړې ده چي مطيع له عاصي ځخه پيدا سي يا عاصي له مطيع ځخه يا عالم له جاهل ځخه پيدا سي او يا جاهل له عالم ځخه وکذالک العاقل من الاحمق وبالعکس.

## ذٰلِكُمُ اللّٰهُ فَاَنّٰى تُؤْفَكُوْنَ

دغه ژوندى کونکى او ورکونکى الله ﷻ دى، نو چيري تاسي مصروف ياست ددغه مقتدر خداى ﷻ ځخه وغيره چي هغه هيڅ نمونه د قدرت نسته يکښي اى الاصنام من الاحجار.

# فَالِقُ الۡاِصۡبَاحِ ۚ وَجَعَلَ الَّيۡلَ سَكَنًا

**پوه سه**: چي فالق الاصباح بل خبر دی د ان في قوله ان الله آه، او اصباح مصدر دی په معنی د دخول في الصبح سُمي به الصبح والمعنى خدای شاق عمود الصبح والفجر عن بیاض النهار، او گرځولي ده خدای ﷻ شپه وخت د ارام چي په دې کي خلگ له ستړيا څخه د ورځي په مشاغلو کي د دنیا ارام او استراحت کوي، مشتق دی له دې محاورې څخه سکن اليه ای اطمنان اليه استيناساً به او يا خلگ په دې کي اکثره ارام کوي. او يا اولياً الله او تهجد گذاران په شپه کي د غال مغال څخه د خدای ﷻ وعبادت ته ارام پيدا کړي، نو هم دا سبب دي چي د عليه الصلوٰة والسلام ملاقات د خدای ﷻ سره په شپه کي واقع سو يعني ليلة المعراج.

# وَالشَّمۡسَ وَالۡقَمَرَ حُسۡبَانًا ۚ

دا عطف دی پر لیل باندي ای جعل الشمس والقمر آه، یعني حساب د ورځو او شپو د میاشتو او د کال ددوی په رفتار سره کېږي روح البیان د حسباناً ترجمه داسي کړې ده ای ادوار مختلفه.

**پوه سه**: چي خدای ﷻ په خپل قدرت سره لمر ته دومره اندازه حرکت ورکړی دی چي په یوه کال کي تخمیناً یوه دوره پر عالم جسماني باندي قطع کوي چي دې ته سنه شمسي وايي او سپوږمۍ ته يې دومره حرکت سريعه ورکړی دی چي په یوه میاشت کي دوره قطع کوي، نو په دوولس میاشتو کي یو کال قمري پوره کېږي چي دې کال ته سنه قمري وايي، او په شمسي کال کي فصول اربعه یعني پسرلی، دوبی، منی او ژمی منځ ته راځي چي په هغو پوري کارونه د شنه کېدو د اشجارو مېوه دارو او د هغو مېوو پوخ والی مربوط دی، او په دوره د قمر پوري د پورو وعدې او مواقیط د حج او عمرې وغیر ذالک معلومېږي کما ورد في موضع آخر من القرآن "یسئلونک عن الاهلة قل هي مواقيت للناس والحج.

**پوه سه**: چي حسبان بضم الحاً په مصدر دی په معنی د حساب فلابد من

تقدير في الاية اى جعل الشمس والقمر علمي حساب واما الحسبان بكسر الحا فهو بمعنى الظن والتخمين.

**فائده:** لمر يې تر سپوږمۍ دمخه کړی ولي چي لمر معدن دی د انوارو فلکیه وو.

ذٰلِكَ تَقْدِيرُ الْعَزِيزِ الْعَلِيمِ ﴿٩٦﴾

دغه رفتار د لمر او سپوږمۍ په تسخیر د خدای ﷻ تقدیر او اندازه د قدرت د غالب خدای چي په هر شي د کائناتو علویة او سفلیة وۀ خبیر دی.

وَهُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ النُّجُومَ لِتَهْتَدُوا بِهَا فِي ظُلُمَاتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ ۗ قَدْ فَصَّلْنَا الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ﴿٩٧﴾

خدای پاک هغه ذات دی چي پیدا کړي يې دي یعني په اسمانو کي ستوري چي تاسي لاري پیدا کړئ په دوی سره په تاریکیو کي د شپې په مځکه کي یعني په دښتو کي او په دریابو کي.

**پوه سه:** چي مراد د ظلماتو هغه مشتبه لاري دي او موږ بیان د دلائلو چي دلالت کوي پر صنعت د قادر مطلق کړی مو دی و ده داسي قوم ته چي علم او پوهنه لري.

**پوه سه:** چي بیانات د خدای ﷻ که څه هم عام دي لکن نفع اهل علم پر اخلي حدادي وایي چي پېژندل د لارو د یوه ښار څخه بل ښار په دښتو کي د مځکي او په چینو کي د دریابو په تاریکیو کي د شپې په کښتیو کي په ذریعه د ستورو کېږي چي مسافر بعض ده ته معلوم ستوري د مخ پر خوا گرځوي او بعض پر راسته جانب او بعض پر چپه طرف او بعض پر شا گرځوي د لارو درک ورمعلومېږي.

**پوه سه:** چي د ستورو نوري فائدې هم سته چي زینت د اسمان دي او رجوم الشياطين هم دي الى غير ذالک مما، او دعه الله فيها من الحكم نعلمها او لا نعلمها.

وَهُوَ الَّذِي أَنشَأَكُم مِّن نَّفْسٍ وَاحِدَةٍ فَمُسْتَقَرٌّ وَمُسْتَوْدَعٌ ۗ

هغه مقتدر خدای دی چي تاسي يې ابتداً پیدا کړي یاست له یوه ذات څخه

چي آدم علیه السلام يعني انشا د خلق الانسان له ده څخه سوې ده.

**سوال:** انشا د خلق ال انسان پر مځکه يوازي خو له آدم علیه السلام څخه نه ده بلکې حوا هم په دې کي برخه لري؟

**ځواب:** پيدا والی زموږ د مور حوا رضي الله عنها له يوې پوښتی څخه د آدم علیه السلام سوی دی، نو ګويا ټول انسانان بالوسائط يوازي د ابو البشر آدم علیه السلام پيدا دي.

**پوه سه:** چي مستقر او مستودع دواړه مصدر ميمي دي مرفوع دي على الابتدا او خبر يې محذوف دی والتقدير فلکم استقرار في اصلاب الآبا او يا پر مځکه او امانت ايښول لري په ارحامو کي د مندو او يا تحت الارض په قبر کي.

**نکته:** خدای جل جلاله صلب الاب مستقر د نطفې وباله او رحم د مور يې مستودع وباله. ولي چي نطفې خو د پلار په ملا کي قرار درلودی الا من قبل الغير او په رحم کي د مور چي حاصله سوه په فعل د غير چي زوج دی. نو ګويا نر دا خپل نطفه ودې ته امانت کښېښول.

قَدْ فَصَّلْنَا الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّفْقَهُوْنَ ﴿۹۸﴾

موږ تفصيل د آياتو د قدرت خپل کړی دی هغه قوم ته چي په دې آيتو پوهېږي، ولي چي دا امور د قيقه دي فکر او فهم ته ضرورت لري.

وَهُوَ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً ۚ فَاَخْرَجْنَا بِهٖ نَبَاتَ كُلِّ شَيْءٍ فَاَخْرَجْنَا مِنْهُ خَضِرًا

او خدای جل جلاله هغه ذات دی چي نازل کړي يې دي اوبه د باران له اسمان څخه يعني له وريځي څخه. ولي چي عرب وايي چي کل ما علاک فهو سما، نو موږ په دې اوبو سره شنه کوو تخمونه د هر شي له مځکي څخه، چي په ابتدائي حالت کي په رنګ شنه وي.

نُّخْرِجُ مِنْهُ حَبًّا مُّتَرَاكِبًا ۚ

او په وروسته حالت کي د هغه شنه سوي شي څخه راباسو دانې يو پر بل سپرې چي په عربي يې سنبله بولي او په پښتو يې وږی بولي، بعض سنبله د غنم وي بعض د اوربشو او بعض د جوارو وهکذا فسبحان الذي اخرج بما واحد افنان

المطعومات مختلف الطعم واللون والمقدار وفضل بعضها على بعض في الاكل فتبارک الله احسن الخالقين.

**پوه سه:** چي تر اوسه پوري حال د نباتاتو خدای پاک بیان کړی اوس نوبت دی د حال د درختو.

## وَمِنَ النَّخْلِ مِنْ طَلْعِهَا قِنْوَانٌ دَانِيَةٌ

**پوه سه:** چي "من النخل" خبر مقدم دی او من طلعها یې بدل دی او "قنوان" مبتدأ ده او دانية یې صفت دی او طلع د خورما لکه دوه نعل چي سره متصل کړي او میوه په منځ کي وه، د دانیه مراد دادی چي نژدې دي او پر ښکول یې اسانه دی.

**پوه سه:** چي په آیت کي اختصار دی معنا یې داده چي بعض قنوان د نخل دانیه یعني قریبه دی او بعض یې بعیده دی تخصیص د قریبه چي په ذکر سره وکړی ددې سبب نعمت په قریبه اکبر او اسهل تر بعیده.

**پوښتنه:** د درختو بیان یې ولې د خورما له درختي څخه شروع کړی؟

**ځواب:** خورما هغه درخته ده چي له دې څخه د طلع له وخت څخه په میوې ددې شروع کیږي بیا تر وخته پوري د تمر والي یعني چي پخه خورما کیږي او خلګ یې له درختو څخه شکوي چي په دې منځ کي تخمیناً څلور پینځه میاشت تیرېږي، او بل سبب دادی چي هیڅ داسي میوه نسته چي بې دودی صرف او صرف په هغه میوه سره او په اوبو سره سړی دوې میاشتي ژوندی وساتي ببله خورما، ولي چي خورما سړی خوري او اوبه پسي څښي دوې میاشتي بلاتکلیفه ژوند کولای سي، او بل سبب دادی چي خورما په کلو کلو چي پرته وي د خورک له قابلیت څخه نه وزي بخلاف الاثمار الاخر، او بل په حدیث نبوي صحیح کي راغلي دي چي رسول اکرم ﷺ و اصحابو ﷺ ته وویل "اکرموا عماتکم النخل فانها خلقت من فضلة طنية آدم عليه السلام وليس من الشجر شجرة اكرم على الله من شجرة ولدت تحتها مريم بنت عمران يعني عيسى عليه السلام فاطعموا نسائكم الولد الرطب فان لم يكن فتمر.

**ترجمه:** تاسي عزت ورکوئ خپلو امه ګانو ته چي د خورما درختي دي ولي

چي دا درخته پیدا سوې ده د هغه بالا سوي ختي څخه چي آدم څخه چي آدم څنډي جوړ سو، نو
ګويا د خورما درخته د ټولو انسانانو د پلار چي آدم علیه السلام دی خورده نو زموږ به
عمه سي او نسته په درختو کي يوه داسي درخته چي عزت پر خدای جل جلاله لري تر
هغې درختي چي لاندي تر هغې مریم بنت عمران لنګه سوه چي عسٰی علیه السلام يې
راوړی هغه درخته د خورما وه او تاسي خورئ په خپلو ښځو چي تازه لنګه سي
لنده خورما، او که لنده نه وه بيا وچه خورما. زموږ د افغانانو لنګي ښځي ته اول
لېتي، وريخوي، ولي چي خورما همېشه د افغانانو په کورو کي نه وي.

وَجَنَّٰتٍ مِّنْ أَعْنَابٍ

دا عطف دی پر على نبات کل شئ يعني اخرجنا، له باغو څخه د انګورو.

**درويش وايي**: چي مرکز د نړی پر مخ د ټولو اقسامو د انګورو افغانستان
دی بالخصوص قندهار.

وَالزَّيْتُونَ وَالرُّمَّانَ مُشْتَبِهًا وَغَيْرَ مُتَشَابِهٍ

او راشنه کړي په هغو اوبو سره درخته د زيتون او انار، د زيتون درختي ته
په بل ځای کي شجرة مبارکة ويل سوې ده.

**پوه سه**: چي دا دوه لفظه "متشابهاً وغير متشابه" حال دي له رمان څخه
يعني بلګونه او قد د درختي د رمان د بلګو او قد سره د درختي د زيتون سره
برابر دي او خوند د انار د زيتون د خوند سره نه دی برابر، او يا حال دی له ټوله
ماتقدم څخه يعني متشبهاً بعض مامر د بعض آخر سره لکن غير متشابه دی په
هيئت کي او په مقدار کي او په رنګ کي او په خوند کي کمايدل عليه التجربة.

انْظُرُوا إِلَىٰ ثَمَرِهِ إِذَا أَثْمَرَ وَيَنْعِهِ ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكُمْ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴿٩٩﴾

وګورئ اې خلګو په نظر د عبرت او د خدای جل جلاله پېژندلو.

**پوه سه**: چي ضمير د ثمره راجع دی و مذکوره درختو ته په تاويل د کلو
احدمنها. وګورئ و مېوې ته د هري درختي چي اوله مېوه راوباسي چي تقريباً
هيڅ نفع او فائده نه وي پکښې او وګورئ و مېوې ته د هري درختي چي اوله

میوه راوباسي چې تقریباً هیڅ نفع او فائده پکښې نه وي او وګورئ ومیوې ته د
هرې درختې چې میوه یې پخه سي څونه غټه سي، او یو رنګ او بل رنګ پیدا
کړي او دغه رنګه خوند یې جلا جلا پیدا کړی دی په تحقیق په دې مذکوراتو
درختو او میوو کې دلائل پر وجود د صانع او قدرت د هغه او پر حکمت د هغه او
پر توحید د هغه اذ لو کان فیهما آلهة الا الله لفسدتا کما في موضوع آخر من
القرآن الکریم" که وای متصرف په اسمانو او مځکو کې خدایان غیر له الله ﷻ
څخه نو اسمانونه او مځکه به فاسد د سوې وای.

وَجَعَلُوا لِلَّهِ شُرَكَاءَ الْجِنَّ وَخَلَقَهُمْ وَخَرَقُوا لَهُ بَنِينَ وَبَنَاتٍ بِغَيْرِ عِلْمٍ ۚ
سُبْحَانَهُ وَتَعَالَىٰ عَمَّا يَصِفُونَ ﴿١٠٠﴾

او ګرځولي دي کفارو د مکې سره ددې چې دلائل د توحید دوی ډېر واوریدل
شریکان د جن، او حال دا دی چې خدای پاک دوی پیدا کړي نه جن، نو جمله د
"خلقهم" حال ده له لفظ الله څخه په تقدیر د قد کما هو القانون النحوي في حالیة
صیغة الماضي او مفعولان د جعلوا لله او شرکا دي، او الجن بدل دی له شرکا
څخه او دوی په درواغو چې معنی د خرقوا د ګرځولي دي خدای ﷻ لره زامن لکه
یهود چې وایي عزیر ابن الله او نصاری وایي چې عیسیٰ ابن الله دی او خدای لره
لوڼي هم پیدا کړي په درواغو لکه مشرکین د مکې چې وایي چې ملکې د خدای
لوڼي دي او منډي یې د پیرانانو د رئیسانو لوڼي دي.

**بوه سه**: چې "بغیر علم" حال دی له فاعل څخه د خرقوا ای حال کونهم
متلبسین في هذا الخرق په غیر علم سره، یعني نه دلیل عقلي پر لري او نه نقلي
پاک دی خدای ﷻ له هغه شي چې کفار یې توصیف په کوي یعني نه ده ثابت
بولي من الشرکا والبنین والبنات.

**فائده**: مظهري رحمه الله وایي چې مراد له جن څخه ملکې دي، ولې چې کفار
مکه وایي چې ملائکه بنات الله دي او وجه د تسمیه په جن سره پټوالی دی د
ملکو له عمومي ابصارو څخه چې د جن معنا ده.

**درویش وایي:** چي پر دې ترجمه خو تکرار لازمېږي ولي چي د بنات ذکر وروسته تر بنین تېر سو، او بله توجیه مظهري رحمه الله دا کړې ده چي مراد له جن څخه شیطانان دي لانهم اطاعوهم وعبدوا غیر الله من الاوثان. او نوري توجیهاتي یې هم کړي دي، او حسین واعظ کاشفي هروي رحمه الله په خپل تفسیر کي چي په نامه د تفسیر حسیني یادېږي وایي چي اصح تفسیر د شرکاء الجن چي مراد له دې ډلي څخه د جعلوا فاعل دی زنادقه دي چي مجوس یې هم بولي او ثنویه یې هم بولي. دوی لعنهم الله تعالی وایي چي خدای او ابلیس سره ورونه دي. لکن الله خالق الناس دی او خالق د دوابو او انعامو نافعه وو بلکې د هر خیر شي خالق دی. دوی وایي چي د الله بل نوم یزدان دی او ابلیس خالق دی د سباعو او د مارانو او لړمانو او عموماً د هر شر د شیانو او دا بل نوم د ابلیس اهرمن دی.

**درویش وایي:** چي په هندوانو کي د هند ددې عقیدې خلګ ډېر دي والعلم عند الله سبحانه وتعالی.

بَدِيعُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ ۖ أَنّٰى يَكُونُ لَهُ وَلَدٌ وَلَمْ تَكُن لَّهُ صَاحِبَةٌ ۖ وَخَلَقَ كُلَّ شَيْءٍ ۖ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿١٠١﴾

**پوه سه:** چي بعض مفسران وایي چي "بدیع" صفت مشبه دی او مضاف دی و فاعل ته. نو په معنی د عجب دی اسمانونه او مځکه چي مثل او نظیر نه لري، او بعض مفسران وایي چي بدیع که څه هم د مجرد له بابه دی لکن په معنا د اسم فاعل د باب افعال والمعنی خالق دی د اسمانو او مځکي بې له مثال سابق څخه او فعیل په معنی د مفعل ثابت دی په دې شعر کي د بعض شعراؤ.

امن ریحانة الداعي السمیع (مسمع) یورقني واصحابي هجوع

**فائده:** پر هر تقدیر "بدیع آه" خبر د مبتدا محذوفي دی ای هو بدیع آه او بدیع السموات مبتدا ده خبر یې محذوف دی ای هو الله اني په معنی د من این دی او یا د کیف دی یعني یا د کوم ځایه دی خدای جل جلاله لره ولد او یا څرنګه دی خدای جل جلاله لره ولد. او حال دادی چي نسته خدای جل جلاله لره صاحبه یعني زوجه چي د هغې دي خدای لره ولد پیدا سي او خدای پاک خالق د هر شي دی او په هر شي ښه خبر دی.

**پوه سه:** چي په دې آيت کي دليل پر نفي د ولد خدای لره په څو وجهو دی.

(۱) خدای ﷻ خالق د اجسامو عظيمه وو دی وخالق الاجسام لا يكون جسماً والا يكون خالقاً لنفسه وهو محال بالبداهة او ولادة خو له خواصو څخه د اجسامو دی (۲) ولد خو پيدا کېږي له نر او ښځي څخه چي متجانس وي، والله تعالى منزه عن المجانسة مع شئ (۳) ولد خو کفو او مثل د والد وي، وليس له كفواً احد ولي چي ټول ماسوی د خدای مخلوق د خدای ﷻ دي فلا يكافيه شئ (۴) خدای پاک په هر شي عالم دی ولاكذالك غيره بالاجماع الا بتعلمه (۵) مبدعات د خدای ﷻ اسمانونه او مځکي دي او سره ددې چي هغه له جنس څخه د مايوصف بالولد دي ولي خو اجسام دي لكن مع هذا هغه اسمانو او مځکه ولد ته ضرورت نه لري لطول بقائهما فالله تعالى اولى به.

ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ ۚ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ فَاعْبُدُوْهُ ۚ

او دغه موصوف ذات په ماسبق من الصفات "ذالكم" مبتدا ده وروسته يې اخبار مترادفه لفظ "الله" دی تربيه کونکي ستاسې نشته مستحق بې له ده پيدا کونکی دی د هر شي، نو دده خاص عبادت کوئ لا لغيره.

**پوه سه:** چي فا لپاره د سببيه ده يعني هغه څوک چي مستجمع ددغو صفاتو جليله وي هغه مستحق د عبادت دی لاغيره من المخلوقات خصوصاً الاصنام الجمادات.

وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ وَّكِيْلٌ ﴿۱۰۲﴾

او خدای ﷻ د حفاظت او د تربيې او د ټوله مايحتاج اليه المخلوقات وكيل دی. او خدای ﷻ چي وكيل د ټولو شيانو دی بايد بندګان خپل ځانونه اولادونه او مالونه ټوله و ده ته وسپاري لکه چي معنا د وكيل ده. او بايد خلګ تقرب وکاندي وخپل وكيل مقتدر ته په عباداتو سره او په هر شي چي دی راضي کېږي من العبادات القولية والجسدية والمالية والحالية بدوام الاستغراق في طلب مرضاته والاجتناب الكلي عما يغضبه تعالى من المعاصي.

لَا تُدْرِكُهُ الْأَبْصَارُ وَهُوَ يُدْرِكُ الْأَبْصَارَ وَهُوَ اللَّطِيفُ الْخَبِيرُ ﴿۱۰۳﴾

**پوه سه:** چي ابصار جمع د بصر ده معنی یې دلیل د سترګو دی او ګاهي یې اطلاق پر غیر د سترګي هم کېږي مجازاً ولي چي سترګه محل د حاسة البصر ده او ادراک د شي عبارت دی له وصول څخه و هغه شي ته والاحاطة به. فالمعنى لاتصل اليه تعالى الابصار ولاتحيط به او د خدای ادارک یعني علم یې پر ابصار احاطه کوي، په قاموس کي وايي چي د لطیف معنا البر بعباده المحسن الى خلقه بايصال المنافع اليهم په مهرباني سره، او ابن عباس ﷺ وايي هو اللطيف باولیائه، وقال ايضاً اللطيف العالم بخفايا الامور، او خبر دی په ټولو کائناتو.

**پوه سه:** چي معتزله په دغه آیت سره دلیل وايي پر امتناع د رؤية الٰهي په ورځ کي د قیامت مؤمنانو لره، قال رئيسهم الطوسي في التجريد، ورؤية الله تعالى كما يزعمونه اهل السنة والجماعة باطل لقوله تعالى لايدركه الابصار، وروسته نور هم ډېر دلائل عقليه پر امتناع د رؤية الله ويلي دي.

**درویش وايي:** چي دا مسئله که څه هم په عقائدو کي د اهل السنة والجماعة مفصل ذکر سوي دي، او د معتزله وو د دلائلو یې داندان شکن جوابونه ورکړي دي كما يظهر لک بمطالعة شرح العقائد وشرح المقاصد للعلامة التفتازاني او په مواقف کي د قاضي عضد الملة والدين او په شرح کي د مواقف للعلامة السيد الجرجاني، لکن چونکه ماخذ ددغه اختلاف دغه آیت د قرآن کریم دی "لاتدرکه الابصار" نو باید دلته د معتزله وو د دلائلو جوابونه ورکړه سي.

**پوه سه:** چي د معتزله مذهب خو هغه ؤ چي ذکر سو، او اهل السنة والجماعة په اجماع سره وايي چي رؤیت د خدای ﷻ په دنیا کي خو نسته مګر مؤمنانو ته په جنت ثابت دی بالاحاديث الكثيرة المتواترة المعنى وانكان احادها افراد.

**پوه سه:** چي دلیل ویل په دغه آیت سره پر امتناع د رؤية الله باطل دی بوجوه، الاول چي صیغه د مضارع یعني لایدرکه الابصار على اختلاف النحاة یا به موضوع وي لپاره د حال او استعمال به یې په استقبال مجاز وي، او یا به مشترک لفظي په منځ کي د حال او استقبال والنفي في الحال مراد في الآية

اتفاقاً بین الموافق و المخالف اذ لاقائل برؤیته تعالی فلا یجوز ارادة النفي في الاستقبال لانه اما یلزم الجمع بین الحقیقة والمجاز علی المذهب الاول او یلزم عموم المشترک علی المذهب الثاني.

**والثاني**: ابصار په صیغه د جمع راغلی دی چي مراد ځني افراد دی دون الجنس، نو لام په ابصار کي به یا لپاره د عهد خارجي وي یعني الابصار الموجودة في الدنیا ونحن لانقول به او که لپاره د استغراق وي نو پردې تقدیر مدلول د آیت نفي د استغراق د رؤیة وهذا النفي صحیح لا استغراق المنفي في الدنیا والآخرة بابصار المؤمنین والکافرین ونحن انما ندعی الرؤیة بابصار اهل الجنة فلا یدل الآیة علی نفي ذالک.

**والثالث**: چي رؤیة غیر له ادارک ځخه دی، ولي چي ادراک کما اشرنا الیه في ترجمة الآیت هو الوقوف علی کنه الشئ والاحاطة به والرؤیة المعانیة ولا تلازم بینهما.

**درویش وایي**: چي مراد له ادراک علم بکنهه د خدای ﷻ په اصطلاح د اهل منطق دی، والدلیل علی ذالک الامتناع مذکور في شرح السلم للقاضي محمد مبارک بالتفصیل التام.

**درویش وایي**: چي صاحب د روح البیان قدس سره ددې آیت په بیان کي ډېر په زړه پوري تفصیل کړی دی او اثبات د مذهب د اهل سنت والجماعة او رد د معتزله ئې په احسن وجه سره کړی دی مطالعه یې مه هېروئ والله الموفق والمعین. او روح المعاني ددې مسئلې په ښه تفصیل هر اړخ څېړلی دی. او دلائل او جوابات یې بې له تعصبه راوړي دي او امام همام فخر الدین الرازي قدس سره چي د عقائدو د فن لوی امام دی په تفسیر کبیر کي ډېر ښه بیان کړی دی.

قَدْ جَآءَكُم بَصَآئِرُ مِن رَّبِّكُمْ ۖ فَمَنْ أَبْصَرَ فَلِنَفْسِهِۦ ۖ وَمَنْ عَمِىَ فَعَلَيْهَا ۚ وَمَآ أَنَا۠ عَلَيْكُم بِحَفِيظٍ ﴿١٠٤﴾

**پوهه**: چي تر شروع ددې آیت دمخه "قل" مقدر دی، نو دا آیت به حکایت سي له قول څخه د علیه الصلوٰة والسلام چي په قرآن خدای ﷻ حکایت ځني

وکړی يعني ووايه اې محمده ﷺ چې په تحقيق تاسي ته راغلله بصائر يعني داسي حجج او د لائل بينه چې د عقل سليم ولا لپاره سبب د بصيرت يعني د نور قلبي گرځي چې په هغه سره هدايت او ضلال ايمان او کفر سره وپېژني.

**يوه سه:** چې بصيرت د زړه صفت دی لکه بصر د سترگو او دا بصائر له جانبه ځخه د رب ستاسي دي. نو که څوک په هغه حجت سره عمل وکړي يعني ايمان راوړي نو لپاره د نفع د ځان دی يعني رنفع يې ووده ته راجع کېږي. او که څوک د زړه په سترگو حجت ته ونه گوري او پر کفر او ضلال باندي دوام وکړي نو ضرر يې خپل دی چې عذاب دنيوي او اخروي دی. او زه نه يم ستاسي د عملو ساتونکی او جزا درکونکی بل الحفيظ وهو الله تعالى وانما انا بشير ونذير.

**وَكَذٰلِكَ نُصَرِّفُ الْاٰيٰتِ وَلِيَقُوْلُوْا دَرَسْتَ وَلِنُبَيِّنَهٗ**

او داغسي لکه تاسي چې دمخه واورېدی مونږ تفصيل او بيان د حجج او بيناتو تاسي ته کوو ولعلکم تهتدون، په قاموس کې وايي چې صرف الحديث دادی چې په خبرو کې زياتوب وسي او ښائسته يې کړي لکه صراف د دراهمو او د دنانيرو چې فضل د بعض پر بعض معلومه وي، او چې مونږ بيان کړو قرآن که څه هم لفظ د قرآن دمخه نه دی تېر سوی لکن د لفظ د آيات فهمېږي لان الآيات.

**فائده:** کذالک منصوب محلاً دی مفعول مطلق د نصرف دی، والمعنى نصرف الآيات تصريفاً مثل تصريفنا هذه السورة.

**يوه سه:** چې اکثره مفسرين وليقولوا عطف بولي پر مقدر باندي چې مقدر دادی ليتم امر التبليغ. وليقولوا او لام لپاره د عاقبت دی ای يکون عاقبة الامر او ضمير د يقولوا راجع دی و کفارو ته د مکې.

**يوه سه:** چې قرائت د نافع او د کوفيانو په فتحه د زال او د را پر صيغه د مخاطب او مخاطب ددوی عليه الصلوٰة والسلام دی او معنى د "درست" داده چې دا کتاب يعنون القرآن تا له بل چا ځخه رد کړی او مونږ ته وايه چې دا کتاب الله دی. قال ابن عباس رضي الله عنه ليقول اهل مكة حين تقرء عليهم القرآن چې دا کتاب چې ته يې منزل من عند الله بولي تازده کړي دي له يسار او جبر ځخه چې دده مريان

وه له سبي شخه د روم بیا موږ ته وایي تزعم انه من عند الله او ابن کثیر دا لفظ دارست په باب د مفاعله وایي لکن هغه هم په معنی د درست دی لکه چي په شافیه کي چي باب د مفاعله گاهي په معنی د مجرد راځي.

لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ۝

وه هغه قوم ته علم لري تخصیص په دي سبب وکړی چي هغه قوم نفع پر اخلي، ولي چي اهل علم د حق او باطل په فرق پوهېږي، او له بله شخه زده کړئ او د من عند الله فرق سره کولای سي.

اتَّبِعْ مَا أُوحِيَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ وَأَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِينَ ۝

او ته اې محمده متابعت کوه په هغه شي چي تاته يې وحي کړه سوي دي له جانبه د رب ستا چي نسته مستحق د معبودیت بې له ده او اعراض وکړه له مشرکینو شخه.

**پوه سه:** چي متابعت معنی عمل بالقرآن او لا اله الا هو، جمله معترضه ده لپاره د تاکید ده اتباع ما اوحي الیک، او د اعراض عن المشرکین دا معنا نه ده چي تبلیغ مه ورته کوه لانه علیه الصلوٰة والسلام مبعوث للتبلیغ، بلکې معنا يې داده چي مجادله مه ورسره کوه، او یا معنا داده چي ددوی مطالباتو ته غوږ مه نسه چي دوی به همېشه علیه الصلوٰة والسلام ته ویل ارجع الی دین آبائک.

وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا أَشْرَكُوا

او که د خدای ﷻ مشیت او اراده وای.

**پوه سه:** چي مفعول د "شا" محذوف دی یعني لوشآ الله عدم شرکهم نو دوی به شرک نه وای کړی.

**پوه سه:** چي مراد په آیت کي مشیت د قسر او الجا دی یعني چي بې له اختیاره ددوی يې دوی مسلمانانولای نو دوی به بیا شرک کولای لکن د خدای دا مشیت نه دی عادت ولي چي خدای ﷻ وعده کړې ده لاملئن جهنم من الجنة والناس اجمعین" ددې آیت شخه دا معلومه سوه چي کفر او اسلام تولة په اراده د

خدای دی او مراد د خدای واجب الوقوع دی خلافاً للمعتزلة دوی وایي چي خدای له کافره اراده د اسلام لري او هغه نه سي واقع، نو دوی وایي چي تخلف د ارادې له خدای ﷻ څخه روا دی کما في ابي جهل وغیره، والدلائل في کتب العقائد.

## وَمَا جَعَلْنٰكَ عَلَيْهِمْ حَفِيْظًا ۚ وَمَآ اَنْتَ عَلَيْهِمْ بِوَكِيْلٍ ﴿۱۰۷﴾

او موږ نه یې ګرځولی ته والمخاطب هو ﷺ پر دوی یعنې پر کفار مکه باندي ساتونکی ددوی د عملو چي به دوی منع کوي له عذابه څخه د خدای ﷻ یعني حتماً بې مسلمانانوي بلکي ته معلم او بشیر او نذیر یې.

او ته نه یې وکیل ددوی چي کفر او اسلام ددوی دي ماتاته سپارلی وي، له قتادة رحمه الله څخه روایت دی چي په مکه شریفه کي به مسلمانانو ښکنځل کول و بتانو ته د کافرانو بالمقابل یې هغو ښکنځل و خدای پاک ته کول نو دا آیت نازل سو.

## وَلَا تَسُبُّوا الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ

تاسي مسلمانان ښکنځل مه کوئ وهغو بتانو ته چي کافرانو د مکې د هغو عبادت کاوه ماسوی له خدای ﷻ څخه، بغوي وایي چي ابن عباس رضي الله عنه وویل دا آیت چي نازل سو انکم وماتعبدون من دون الله حصب جنهم" مشرکانو د مکې وویل یا محمد ته به خامخا نهي کیږي له بد ویلو څخه زموږ د خدایانو او یا به موږ هجو او بد وایو ستا وخدای ته، نو خدای پاک په نزول ددې آیت مسلمانان نهي کړه له سببه څخه د بتانو ددوی، او سدي رحمه الله وایي چي څه وخت چي ابو طالب عم رسول الله ﷺ ناجوړی سو او قریب الموت سو نو قریشو سره وویل چي درځئ ورسو ابو طالب ته او ورته ووایو چي دا خپل وراره محمد به له موږه منع کړي، ولې چي موږ شرمیږو که محمد وروسته تر وفات د ابو طالب مړ کړو عرب به وایي چي محمد چي له قتل څخه د قریشو خلاص و په سبب د اکا ابو طالب، نو چي ابو طالب مړ سو څرنګه یې محمد مړی کړی، نو ابو سفیان، ابوجهل، نضر بن حارث، امیه او أبی چي د خلف زامن وه، او عقبه د ابي سعیط زوی، او عمرو بن العاص رضي الله عنه وابو طالب ته ورغلی او ورته وه یې ویل چي ته زموږ مشر

سړی یې او په مکه کې یو رئیس ګڼل کېږي او محمد موږ هم ازاروي او هم زموږ خدایان، نو پر تا لازمه ده چې ته یې دی راغواړې او له دغو کارو څخه یې منع کوې او زموږ په خدایانو به کار نه لري موږ دده په خدای کار نه لرو، نو ابو طالب خپل وراره محمد ﷺ راوغوښتی چې دا راغلي خلګ د قوم مشران دي دوی وايي چې دی دي زموږ په خدایانو کار نه لري موږ دده په خدای کار نه لرو، ابو طالب و علیه الصلوٰة والسلام ته وویل چې قوم ستاسره د انصاف لار غوره کړې ده ددوی دغه مطالبه ومنه. نو علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل چې زه چې دا مطالبه ستاسي ومنم تاسي به زما یوه خبره ومنئ چې که تاسي هغه خبره وکړئ د ټولو عربو سلطنت به ستاسي سي، او عجم به هم ستاسي فرمانبرداره سي، ابو جهل ورته وویل نعم ستا په پلار مې دې قسم وي چې هغه خبره موږ له تا سره منو وعشرة امثالها، نو ابو جهل ورته وویل چې هغه نو کومه خبره ده. علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل قولوا لا اله الا الله، هغو له دې وینا څخه ابأ وکړه او سره ولاړ سوه، ابو طالب و علیه الصلوٰة والسلام ته وویل قل غیرها یا ابن اخي، علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل ای کاکا زه بله خبره نه لرم او نه یې کوم، که څه هم دوی لمر له اسمانه راکښته کړي او زما په لاسو کې یې راکښېږدي، نو علیه الصلوٰة والسلام ته راغلو کسانو وویل چې یا به ته زموږ وخدایانو ته ښکنځل نه کوې او یا به موږ تاته ښکنځل کوو، او چې ته یې په دغه خبره امر کړی یې یعني خدای پاک یې مراد و، هم ښکنځل کوو، نو دا آیت نازل سو ولاتسبوا آه.

فَيَسُبُّوا اللَّهَ عَدْوًا بِغَيْرِ عِلْمٍ

نو دوی به هم ښکنځل کوي و خدای ته په تجاوز له حق څخه وباطل ته بې له علم د خدای ﷻ په عظمت او کبریا سره.

**بوه سه:** چې ظاهر د آیت که څه هم نهي دی له بتانو له سب څخه لکن مراد حقیقةً نهي دي د خدای له سب څخه لإن سب الاصنام سبب لسب الله تعالى لان المفضي الى الشر شر.

**مسئله:** فقها وايي چې هر طاعت چې مفضي کېږي ولوی شر ته د هغه ترک واجب دی.

كَذَٰلِكَ زَيَّنَّا لِكُلِّ أُمَّةٍ عَمَلَهُمْ

دغه ډول لکه کفارو ته د مکې ښکنځل وخدای ته کنامر چي ښائسته کړي مو دی موږ هر امت ته مؤمن وي او که کافر وي عمل ددوی من الایمان والطاعة والکفر والمعاصي.

ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّهِم مَّرْجِعُهُمْ فَيُنَبِّئُهُم بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿۱۰۸﴾

وروسته د دنیا تر ژوند په ایمان او طاعت کي او یا په کفر او عصیان کي وخدای ﷻ ته روح د مرجع مصدر میمي دی او مراد له رجوع بعث الموت دی، نو خدای ﷻ په خبر کړی دوی په هغه شي چي عمل یې کاوه دوی په دنیا کي من الاسلام والطاعة والکفر والعصیان یعني حساب به ورسره وکړي او مجازات به ور کړي اما بالجنة کما للمؤمنین او بالنار کما للکافرین وکل ذالک هین علی رب العالمین.

**پوه سه**: چي بغوي رحمه الله وایي چي علیه الصلوٰة والسلام په باره کي د ایمان راوړلو د قریشو سره خبري وکړې قریشو ورته وویل یا محمد تا موږ ته ویلي دي چي د موسیٰ علیه السلام سره لکړه وه چي ډبره به یې په ووهله له هغې ډبري څخه به دوولس چیني صافي اوبه راووتلې او عیسیٰ علیه السلام مړي ژوندي کول او صالح علیه السلام و ثمود یانو ته له غره څخه اوښه راوستل، نو ته هم موږ ته بعض معجزات چي موږ یې غواړو را ښکاره کړه، نو موږ په پر تا ایمان راوړو، نو علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل چي ستاسي کوم شی خوښ دی چي زه یې درښکاره کړم؟ دوی ورته وویل چي د صفا غر راته سره زر کړه، او په بل روایت کي د بغوي داسي راغلي دي چي ته زموږ بعض مړي راژوندي کړه چي موږ پوښتنه څني وکړو چي ستا دین حق دی که باطل، او په بل روایت کي راغلي دي چي دوی ورته وویل چي ملکه راته راوله چي ستا تصدیق وکړي چي محمد نبي بر حق دی، بغوي رحمه الله وایي چي علیه الصلوٰة والسلام ودوی ته وویل که ما بعض دغه کارونه وکړه نو تاسي ایمان راوړئ؟ دوی ورته وویل چي هو که تا داسي وکړه موږ په اتفاق پر تا ایمان راوړو او ستا متابعت به په ډله ییزه توګه وکړو، نو د هغه وخت مسلمانانو و علیه الصلوٰة والسلام

ته وویل چي ته بعض مطالبات ددوی پر ځای کړه چي دوی اسلام راوړي او د همیشه لپاره به له جنجاله خلاص سوو. نو جبرائیل و علیه الصلوٰة والسلام ته راغلی او وه یې ویل چي که ستا غوښه وي د صفا غر به سره زر سي لکن که بیا هم دوی ستا تصدیق ونه کړی پر دوی عذاب استیصال نازلوم او که دي خوښه وي پر پرېږده دوی و خپل اختیار ته حتی چي توبه وکاږي توبه گاره یعني په خپل اختیار، نو علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل چي دوی و خپل اختیار سره پرېږدم چي تائب له کفره څخه په خپله توبه وکاږي، فانزل الله تعالی هذه الآیة.

**وَ اَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ جَهْدَ اَیْمَانِهِمْ**

او قسم وکړی کفارو د مکې په خدای ﷻ سره.

**پوه سه**: چي "جهد" منصوب دی لکونه مفعول مطلق ای قسماً جهد ایمانهم یعني په نهایت سختي سره د قسمو ددوی. او یا مصدر دی په ځای کي د حال راغلی دی، نو به یې معنا په مشتق سره کوئ یعني مجتهدین في اتیان او کدما قدروا علیه في الایمان.

**لَىِٕنْ جَآءَتْهُمْ اٰیَةٌ لَّیُؤْمِنُنَّ بِهَا**

که موږ ته راغلی یو آیت او معجزه چي موږ یې اقتراحاً غواړو. هر آیینه موږ ایمان راوړو په سبب د هغه آیت پر محمد ﷺ باندي.

**قُلْ اِنَّمَا الْاٰیٰتُ عِنْدَ اللّٰهِ وَمَا یُشْعِرُكُمْ**

ته ورته ووایه چي آیات او معجزات مقترحه وغیرها په قدرت کي او په اختیار کي د خدای پاک دی یظهر منها مایشاً او زما په قدرت او اختیار کي هیڅ آیت نسته وانما انا منذر بامره تعالی.

**پوه سه**: چي کلمه د "ما" استفهامي ده یا نافیه ده والخطاب للمشرکین الذین اقسموا او للمؤمنین الذین طلبوا من رسول الله ﷺ اظهار تلک الآیات والمعنی علی التقدیرین چي تاسي نه یاست خبر.

أَنَّهَا إِذَا جَاءَتْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿١٠٩﴾

چي دغه آیات که ښکاره هم سي دوی به ایمان نه راوړي یعني په دې تاسي نه یاست خبر. او بعض مفسران وایي چي کلمه د لا زائده ده کما في قوله تعالی "وحرام علی قریة اهلکناها انهم لایرجعون" ددې آیت معنا داده چي حرام ده پر هغه قریه یعني اهل قریه چي موږ به هلاکوو اهل د هغې قریې چي دوی بیا رجوع وکړي بیرته ودنیا ته، نو کلمه د لا په دغه مذکوره آیت کي زائده ده فکذا فیما نحن فیه فتدبر.

وَنُقَلِّبُ أَفْئِدَتَهُمْ وَأَبْصَارَهُمْ

او موږ اړوو زړونه ددوی له حق څخه نو په حق نه پوهېږي او ددوی سترگي چي په نظر د عبرت وآیاتو ته گوري.

**درویش وایي**: چي وذالک القلب په سبب د سوء اختیارهم الکفر وقصد الدوام علیه.

كَمَا لَمْ يُؤْمِنُوا بِهِ أَوَّلَ مَرَّةٍ

لکه چي دوی ایمان نه راوړی اول وار.

**پوهه سه**: چي ضمیر د "به" راجع دی و آیاتو ته په تاویل د ما انزل من الآیات لکه اعجب معجزه د شق القمر کما في البخاري.

وَنَذَرُهُمْ فِي طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُونَ ﴿١١٠﴾

او موږ دوی پرېږدو په خپل سرکښي کي متحیرین.

**خاتمه**: درویش وایي چي خدای پاک لره دي په زړو حمد وثناء وي چي دې عاصي بانواع المعاصي حقیر سال خورده ته یې توفیق راکړی چي تفسیر د جزء د "اذا سمعوا" یې پای ته ورساوه، تفسیر ددې اووم جزء د قرآن کریم په ورځ د پنجشنبې درې بجې بعد الظهر ۱۸ د شهر ذو القعدة سنه ۱۴۲۷ هـ ق شروع سوی دی او په ورځ د سه شنبې ۳ بجې وقت الظهر پای ته ورسېدی و د صفر الخیر پر پینځه لس دا کار انجام پیدا کړی چي تخمیناً څلور میاشتي یې په بره

كي ونيولي، فلله عزوجل الحمد والمنة والتوفيق وعلى رسوله سيد المرسلين الف الف الصلوات والتسليمات والتحية

"كريمة" والله خلقكم وما تعملون" خداى خالق ستاسي او ستاسي د عملو دى

عبيـــد وايـــي چـــي كارونـــه تـــول د خـــداى دي
پـــرده واره پكښـــي عاصـــي عبيـــد الله دى
چـــي توفيـــق د خـــداى يـــاري ونـــه كـــړي وروره
هـــيڅ بنـــده د خيـــر كـــار نشـــي كـــړاى وروره
دا عجـــب رحمـــت د پـــروردگـــار دى
چـــي كـــار دى وكـــړي بنـــده ثـــواب دار دى
د مدرســـي د خـــداى مفســـرين تـــول شـــاگردان دي
بيـــا انعـــام د مفســـر او علامـــه او محقـــق دوى تـــه روان دى
اوس پـــه عجـــز انكســـار وخـــداى تـــه خواســـت كـــړم
چي د اتم جزء د تفسير ستا پـه توفيق زخوار تمام كړم
اول شـــرط د تفســـير صـــحت او عافيـــت دى
ددي شـــرط حصـــول د عـــاجز و خـــداى تـــه خواســـت دى
زمـــا د فتنـــو خدايـــه جـــاري ده
لـــه فتنـــو څخـــه حفاظـــت د درويـــش لويـــه دعـــا ده
خـــداى زمـــا دا تفســـير مـــه كـــړه يتـــيم وبـــل چـــا تـــه
بلكـــي زمـــا پـــه گوتـــو ســـره يـــي ورســـوه پـــاى تـــه
هغـــه ورځ بـــه زمـــا اختـــر او خوشـــحالي وي
چـــي تفســـير پـــر تمـــام بانـــدي جـــاري وي

اللهم وفقني لما تحب وترضى واجعل آخرتي خيراً من الدنيا وما فيها. اللهم هذا التفسير المكمل نهاية رجائي فحصل هذا الرجا نعبدك العاصي بالخير والعافية والصحة والسلامة آمين آمين آمين يا رب العالمين، والصلوة والسلام على سيد المرسلين وآله وصحبه اجميعن.




## الجزء الثامن

## وَلَوْ أَنَّنَا

# تيسير البرهان الحنفي

حضرت مولانا محمد عبيد الله الأفغاني

الكندهاري الحنفي النقشبندي

مكتبة القراءة و التجويد

كاسي رود كوئٹه بلوچستان

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

تفسير الجزء الثامن "ولو اننا آه" رب سهل على عبدک المسکين، تفسير هذا الجزء المتين، بفضلك وكرمك يا ارحم الراحمين.

## وَلَوۡ اَنَّنَا نَزَّلۡنَاۤ اِلَیۡهِمُ الۡمَلٰٓئِکَةَ

**پوه سه:** چي دا تفصيل د هغه اجمال دى چي نژدې تېر سو، بقوله تعالى وما يشعر كم الآية، كه چېري موږ نازل كړي واى ملكې لكه چي دوى سوال كړى وُ په دې قول كي "لو انزل الينا الملائكة فنراهم الآية" او هغو ملكو ستا د صدق نبوت ددوى په مخ كي شاهدي ادا كړې واى.

## وَکَلَّمَهُمُ الۡمَوۡتٰی

يا خبري كړي واى ددوى سره مړو يعني وروسته تر احيا د هغو او ستا تصديق د نبوت يې كړى واى لكه ددوى چي په دې آيت كي مراد فات بآية آه د غه احيا الموتى وه.

صاحب تيسير وايي چي كه موږ تول مړي را ژوندي كړي واى او د دوى سره يې خبري كړي واى او ستا د نبوت تائيد يې كړى واى كه څه هم دوى د مړو د احيا طلب كړى وُ خو مطلب ددوى، قصى بن كلاب او جدعان بن عمرو چي دا دوه كسان ددوى ډېر غټ مشران وه او ددوى په عقيده رشتيا گويه وه، ولي چي دوى عليه الصلوٰة والسلام ته داسي ويلي وه كه تا دغه دوه كسان را ژوندي كړه او ستا د نبوت شاهدي يې ادا كړه موږ هم تول ستا د نبوت شاهدي ادا كوو.

## وَحَشَرۡنَا عَلَیۡهِمۡ کُلَّ شَیۡءٍ قُبُلًا

او موږ جمع كړو پر دوى باندې كل شئ هر شى ضامن د نبوت د عليه الصلوٰة والسلام.

**پوه سه:** چي "قبل" جمع د قبيل ده په معنى د كفيل. او يا قبل جمع د قبيل ده او قبيل جمع د قبيله ده بمعنى جماعات من الناس لصحة دعوة نبوة عليه الصلوٰة والسلام پره هر تقدير قبلاً حال دى له كل شئ څخه.

مَا كَانُوا لِيُؤْمِنُوا إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ يَجْهَلُونَ ﴿۱۱۱﴾

نه دي دوی چې ایمان راوړي لماسبق علیهم القضاء الهي انهم لا یؤمنون باختیارهم.

**یوه سه:** چې "الا ان یشاء الله" مستثنی مفرغ ده یعني في حال من الله الا حالة مشیته الله ایمانهم بان سبق منه تعالی القضاء الالهي في العلم الاذلي بما یمانهم الاختیاري.

**یوه سه:** چې ضمیر د "یجهلون" راجع دی ومسلمانانو ته یعني اکثره مسلمانان په دې نه پوهېږي چې دا کافران په وخت کې د ظهور د هغو آیتو چې دوی غوښتل هم ایمان نه راوړي لجهلهم بعدم تعلق مشیة الله بذالک الایمان. نو ځکه دغه مسلمانان تمنی ددې کوي چې کاشکې دغه آیات ددوی ښکاره سوی وای نو دوی به هم ایمان راوړی وای، ولې دا کافران ابوجهل وغیره تجربه سوه چې د شق القمر معجزه هم دغه ابو جهل وغوښتله په ښوونه د یهودانو چې دده مېلمانه وه او ابو جهل دوی ته وویل چې په موږ کې دده په خوله یو سحر گر پیدا سو چې دی د نبوت دعوه کوي تاسي ته یې درک نه معلومېږي چې دی سحر گر دی او که رشتیا نبي دی، هغو یهودانو ورته وویل چې موږ ته درک معلومېږي، ولې چې د ساحر سحر پر اسمان نه چلېږي صرف پر مځکه یې تاثیر چلېږي، نو که دا سړی په موږ وویني موږ له هغه څخه اسماني معجزه غواړو، نو که یې پر ځای کړه نو نبي دی او که نه کړه نو جادوگر دی، راوي وایي چې د میاشتې څوارلس تاریخ و، نو ابوجهل و هغو یهودانو ته وویل چې دستي به هغه سړی یعني محمد ﷺ په تاسي ووینم، نو ابوجهل ورته وویل چې که تا دغه معجزه چې دا اهل کتاب د تاسه وغواړي که تا پر ځای کړی زه او دوی به په گډه ایمان راوړو، نو هغو د شق القمر معجزه د علیه الصلوٰة والسلام څخه وغوښتل په روایت د بخاري. علیه الصلوٰة والسلام چې په سبابه گوته اشاره وسپوږمی ته وکړه قمر دوې ټوټې سوه چې نیمه د جبل ابي قبیس د مکې وخواته سوه او بل نیمی یې د غره وشاته سوه او بیرته سره جوړه سوه. علیه الصلوٰة والسلام وویل اشهدوا، نو هغو دوو

یهودانو ایمان راوړی او ابو جهل رهي سو او داسي يې وويل چي د دا نورو ساحرانو سحر پر اسمان نه چليږي او د مکې د ساحر دده په خوله سحر پر اسمان هم وچليدی ايمان يې را نه وړی، نو تاسي مسلمانان څرنګه ددوی وايمان ته طمع لرئ. او تمنی ددوی کوئ چي عليه الصلوٰة والسلام دغه د کافرانو د غوښتني آيات راوړی وای نو دوی به هم ايمان راوړی وای.

**درويش وايي:** چي حاصل د آية مذکوره يعني "ولو اننا نزلنا الآية" دادی چي آيت او معجزه چي هر څو لوړ وي لکن سړی و ايمان ته نه سي مجبوره کولای.

سعدي شيرازي وايي

زو حشی نيايد که مردم شود		بسعی اندرو تربيت گم شود

وقال حافظ شيرازي

گرجان بدهد سنگ سيه لعل نگردد		باطينت اصلی چه کند بدگهر افتاد

مثنوي معنوي ميگويد

گر تو سنگ خاره مرمر شوی		چون بصاحب دل رسی گوهر شوی

درويش ميگويد که دربيت مولوی معنوی رحمه الله بعض کسان نافهمان دروی شک وترديد می آرد وميگويند که دل ابوجهل که از سنگ خاره بدتر بوده ودر عالم اولاد آدم عليه السلام از رسول کريم ﷺ صاحب دل برتر بلکه برابر هم نه بود، ابوجهل چند سال باصاحب دل اعظم ﷺ سپری نمود مگر ابوجهل گوهر نه شد جواباً درويش ميگويد که مراد مولوی معنوی آنست که کسيکه سنګلاغ قلب خود به او معلوم شود وبرای ازاله گنه بصاحب دل برسد گوهر ميگردد، وابو جهل اينچنين نبود زيراکه او قلب خود را که به محبت بتان ومعبودان باطل مالامال داشته وصدر سياه خودرا پر از نور گمان داشته بود، ومعهذا از بودن آنحضرت ﷺ را صاحب دل نمی شناخت بلکه خود را از عليه الصلوٰة والسلام صاحب دل بزرگ گمان ميکرد که بر دين آباً واجداد باقی هستم، و او عليه الصلوٰة والسلام را که دين آباً واجداد پدر ودکرده از خود کمتر ميدانست پس چه جای انکه ابوجهل بملاقات او ﷺ گوهر گردد واز الايش سياهی کفر بيرون

بر آید به غور سخن معنوی رسیده باشی ان شآ الله تعالی.

درویش میگوید که قیاس حال آنحضرت ﷺ وابوجهل از حال آدم علیه السلام وابلیس بفکر شما خواهد رسید چراکه خدای تعالی که امر کرد ابلیس را که به آدم سجده بکنید ودرین ملائکه هم وهمه شامل بودند ملائکه کلهم اجمعون به آدم علیه السلام سجده بعمل آوردند وچون وچرا نه گفتند، ابلیس از آن سجده امتناع ورزید پسان که خدای ﷻ از ابلیس فرسان نمود که توچیرا سجده بآدم نکردید اذ امرتک او خبیث گفت انا خیر منه خلقني من نار وخلقته من طین الی اخیر القصة همچنان چون خدای ﷻ کفار را بشمول ابوجهل بایمان بر محمد ﷺ امر فرمودند ابوجهل ودیگر هم خبیثان وی گفتند که ماها از محمد خیر میباشم زیرا که مایان بر طریقه اباً واجدا میباشیم یعني شرک ومحمد آنرا مردود نمود وطریقه نوین توحید اختیار کرد فافهم، از گلستان من قیاس گیر بهار مرا.

وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِیٍّ عَدُوًّا شَیٰطِیْنَ الْاِنْسِ وَالْجِنِّ

لکه تالره چي موږ گرځولي دي کفار د مکې دښمنان چي زهیروي دي او ستا له امره مخالفت کوي داغه رنګه موږ گرځولي هر نبي لره دښمنان.

**یوه سه**: چي د "عدوا" اطلاق پر یوه او پر ډېرو کېږي دلته مراد ډېر دي بقرینة مابعده شیطان د جن او انس.

**یوه سه**: چي عداوت د کفارو د انبیا کرامو سره په فعل د خدای ﷻ د حکمت لپاره دي.

**فائده**: شیاطین الجن والانس آه بدل دی له عدواً څخه او یا اول مفعول د جلعنا دی او عدواً مفعوله الثاني دی. او "لکل" متعلق په "جعلنا" پوري دی.

**فائده**: مراد له شیطانانو څخه هغه سرکښه دي د دواړو ډلو، قتاده، حسن او مجاهد رحمهم الله تعالی وایي چي په انسانانو کي هم شیطانان سته لان الشیطان هو العاصي المتمرد من کل شئ او دوی وایي چي شیطان اصلي چي عاجزه سي له اغوا څخه د مؤمن نو دی ورسي و یو گمراه مؤمن ته، نو یي مؤمن ته ورشکاري چي په یوه فتنه کي یې واچوي وهذا هو الشیطان من الانس. ویدل

علیه هغه حدیث چي ابوذر ﷺ یې روایت کړی دی قال قال رسول الله ﷺ هل تعوذت بالله من شیاطین الجن والانس" ما ورته وویل چي په انسانانو کي هم شیاطین سته؟ علیه الصلوٰة والسلام راته وویل هو! "هم شر من شیاطین الجن" مالک بن دینار رحمه الله وایي چي شیاطین الانس اشد دي علي من شیاطین الجن ولي چي زه اعوذ بالله ووایم شیاطین الجن زما څخه لیري کېږي، او شیطانان د انسانانو راځي ما وګناه ته کشوي عیاناً او په اعوذ بالله سره دفع هم نه کېږي.

**درویش وایي**: چي ویشهد لذالک سورة قل اعوذ برب الناس اخیر السورة .

**يُوحِي بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ زُخْرُفَ الْقَوْلِ غُرُورًا**

**یوه سه**: چي وحي په اصل کي کلام خفي او قول سریع ته وایي او دلته په معنی د یوسوس دی له دې سببه چي وسوسه هم کلام خفي دی چي د زړه شی دی که د شیاطین الجن له خوا څخه وي، او قول سریع دی که د شیاطین الانس له خوا ؤ وسوسه وراچوي شیاطین الجن وشیاطین الانس ته د زړو له لاري، او داغه رنګه وسوسه وراچوي شیاطین الانس یو ویل ته د خبرو له لاري، او هغه خبره چي مظهري کړېده چي بعض شیاطین الجن وه نورو ته وسوسه ور اچوي فبعید.

**یوه سه**: چي "زخرف" هغه قول ته وایي چي په ظاهر ښائسته او د خواهشات نفسانیه ؤسره برابر وي لکن په معنا کي باطل وي لکه زنٰی، شراب نوشي وغیرها.

**درویش وایي**: چي ګاهي داسي هم کېدای سي چي ما القی الشیطان في قلب المؤمن ظاهراً د شرع شریف سره برابر وي لکن په اخیر زهر قاتل وي مثلاً شیطان د تهجد پر وخت مسلمانان بیداره کړي او ورته ووایي چي ننه شپه ښه ډېر رکعته لمونځ وکړه، خیر په اخیر کي وسوسه ور واچوي چي ډېر ستړی سوي لږ ګړی سپېدو ته پاته دی او هغه سړی چي څنګ ووهي پسي بیده سي، نو یا د سهار لمونځ څني قضا کړي او یا د جماعت لمونځ څني تېر سي.

**یوه سه**: چي "غروراً" علت دی لپاره د خطایستولو، نو د "غروراً" نصب له دې سببه دی چي مفعول له دی د ماقبل، او یا مفعول مطلق دی د فعل محذوف والتقدیر یغرونهم غروراً یعني افعال قبیحه شرعیه ورته ښائسته کړي کمامر مثاله.

## وَلَوْ شَاءَ رَبُّكَ مَا فَعَلُوهُ

او که د خدای ﷻ اراده وای دا کارونه به دوی نه کولای.

**بوه سه:** چي ضمیر مفرد د فعلوه راجع دی وعداوت ته د انبیاً واو ایحاده د ذخارفو او غرور د خلګو لکن په تاویل د ماذکر فلا یرد مایتوهم.

**درویش وایي:** چي معتزله وایي چي خالق د افعالو د بندګانو بندګان دي او اهل السنة والجماعة وایي چي خالق د افعالو د بندګانو خدای ﷻ دی او بنده کاسب دی. والفرق بین الخلق والکسب دقیق مذکور في شرح العقائد وشرح المقاصد للعلامة التفتازاني وذکره محب الله البهاري ایضاً في مسلم الثبوت فلیراجع. والحاصل چي دا آیت رد دی پر معتزله وو او حجت دی د اهل سنتو.

## فَذَرْهُمْ وَمَا يَفْتَرُونَ ﴿١٣٧﴾

نو پرېږده دوی او ددوی درواغ چي پر ما هم درواغ وایي چي خدای لره شریکان سته او ملائکه بنات الله دي. او پر تا هم درواغ وایي چي ته نبي نه یې کاهي وایي چي کاهن یې ګاهي وایي چي ساحر یې او ګاهي وایي یعلمه الشر یعني القرآن، ددې حاصل دادی چي خدای پاک علیه الصلوٰة والسلام ته وایي چي د دوی په درواغو باک مه کوه، ولي چي زه پوره مجازات ورکوم یعني په ورځ د قیامت.

## وَلِتَصْغَىٰ إِلَيْهِ أَفْئِدَةُ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ وَلِيَرْضَوْهُ

او ددې لپاره چي میل وکړي ودغه زخرف القول ته زړونه د هغه کسانو چي ایمان نه لري پر ورځ د آخرت، چي دوی خوښ کړي دا زخرف القول د خپلو ځانو لپاره.

**بوه سه:** چي "ولتصغی" عطف دی پر "غروراً" باندي که هغه مفعول له وي او که غروراً مفعول مطلق د فعل محذوف وي، نو "لتصغی" متعلق په محذوف پوري دی ای فعلنا ذالک لتصغی.

## وَلِيَقْتَرِفُوا مَا هُمْ مُقْتَرِفُونَ ﴿١١٣﴾

او چي دوی کسب کړي یعني په غرور القول سره هغه شي چي دوی یې کسب کوي من الکفر والمعاصي.

**پوه سه**: چي قريشو به عليه الصلوٰة والسلام ته ويل چي ته ستا او زموږ تر منځ يو محكم وټاكه چي هغه محكم به فيصله وكړي چي ته پر حق يې يعني په دعوه كي د توحيد او كه موږ پر حق يو په دعوه كي د شركا الله. نو دا آيت نازل سو.

**اَفَغَيْرَ اللّٰهِ اَبْتَغِيْ حَكَمًا وَّهُوَ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ اِلَيْكُمُ الْكِتٰبَ مُفَصَّلًا**

**پوه سه**: چي دا آيت په تقدير د قول دی ای قل لهم يا محمد آيا غير له خدايه زه طلب كړم حكماً يعني قاضي بيني وبينكم چي هغه فيصله د حق او د باطل وكړي زما او ستاسي تر منځ.

**پوه سه**: چي د "غير" لفظ د "ابتغى" مفعول دی او حكماً حال منه. او خدای هغه ذات دی چي نازل كړی يې دی وتاسي ته كتاب يعني قرآن عزيز چي مخبر په غيبو كارو موافق د نورو كتب منزله وو سره مفصلاً يعني تفصيل واره بيان د حق او د باطل په هغه كي موجود دی او توله جمله د وهو الذي حال ده له لفظ الله.

**وَالَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَعْلَمُوْنَ اَنَّهٗ مُنَزَّلٌ مِّنْ رَّبِّكَ بِالْحَقِّ**

او هغه كسان چي موږ وركړی ؤ دوی ته كتاب يعني التورات وهم اليهود پر دې علم لري چي دا قرآن نازل كړی سوی دی له جانبه ځخه د خدای جل جلاله متلبساً بالحق. ولي چي اهل كتاب يهودان قرآن مبارک بولي مطابق ددوی د كتاب سره او دا قرآن پر هغه سي چا نازل سوی دی چي نعوت د هغه ددوی په كتاب تورات كي وه او صاحب د روح البيان يهود او نصارى دواړه راوړي دي.

**فَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِيْنَ**

نو ته مه ګرځه د شک كونكو ډلي ځخه.

**درويش وايي**: چي مظهري رحمه الله په "لاتكونن" كي مخاطب مطلق سامع ګرځولی دی حيث قال فلاتكونن ايها السامع من الممترين في ان القرآن من عند الله. او امام برسوي رحمه الله يې مخاطب عليه الصلوٰة والسلام ګرځولی دی حيث قال من الشاكين في انهم ای اهل يعلمون بحقيقة القرآن.

**درويش وايي**: چي كه څه هم په ظاهره عليه الصلوٰة والسلام دی لكن امت

ځني مراد دی اذ لا یتصور الامترا في القرآن منه علیه الصلوٰة والسلام ومثل هذا الخطاب کثیر في القرآن المجید کما لایخفی.

وَتَمَّتۡ كَلِمَتُ رَبِّكَ صِدۡقٗا وَعَدۡلٗاۚ لَّا مُبَدِّلَ لِكَلِمَٰتِهِۦۚ وَهُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلۡعَلِيمُ ﴿١١٥﴾

**پوه سه**: چي کلمه د خدای ﷻ یعني اخبار قرآنیه او وعد وعید د خدای امر او نهي د خدای چي په قرآن کي راغلي دي، او مراد له تمام څخه بلوغ الی الغایة القصوٰی. صدقاً یعني په اخباراتو کي چي هغه ټول له صادق دي او په حلال سره چي احکام یعني په احکامو کي د خدای ﷻ ظلم نسته. او صدقاً وعدلاً منصوبان دي علی التمییز او یا حال دي، والمعنی حال کون کلمته صادقة وعادلة. والحاصل فیها تمت دی او بدلونکی نسته د کلماتو د خدای ﷻ او هیڅ څوک د خدای ﷻ کلمات نه سي بدلولای. وقال ابن عباس رضي الله عنه لاراد لقضائه ولامغیر لحکمه. او یا معنا داده چي تر علیه الصلوٰة والسلام وروسته نبي نسته او نه کتاب سته چي دین د نبي کریم ﷺ او قرآن عزیز دي منسوخه کړي، او خدای ﷻ اورېدونکی د مایقولون او عالم دی په احوال باطنه د خلګو.

**پوه سه**: چي اشرف الرسل بالاجماع هو محمد ﷺ، واعظم الکتب الالٰهیة هو القرآن العزیز. یو محقق شاعر په مدح کي د آنحضرت ﷺ داسي وایي

الا ای احمد مرسل شود هر مشکل از تو حل
کنم وصف ترا مجمل تو یی سلطان هرمولی
شریعت از تو روشن شد طریقت هم میرهن شد
حقیقت هم خود معین شد تو ئی سلطان بی همتا

قال علي رضي الله عنه من افتی الناس بغیر علم لعنه السمآ والارض.

**فائده**: د علي بلخي رحمه الله لور د خپل پلار څخه پوښتنه وکړه عن القئ الی خرج الی الحلق پلار یې ورته وویل اودس په راګرځوي. ماښام یې علیه الصلوٰة والسلام په خوب ولیدی فقال یا علي لاحتی یکون ملئ القم. نو زه پوه سوم چي هره فتوی و علیه الصلوٰة والسلام ته پېښېږي.

**حکایت**: د شعبي رحمه الله څخه یو چا د یوې مسئلې پوښتنه وکړه. ته ورته

وويل چي زه نه یم په خبر. هغه سړي ورته وويل چي ته نه شرمېږې چي وايه نه يم په خبر سره ددې چي ته د عراق لوی فقیه یې؟ شعبي رحمه الله ورته وويل چي زه ولې وشرمېږم له هغه شي څخه چي ملکي نه ځني شرمېدلې حيث قال سبحانک لاعلم لنا الا ماعلمتنا، د درويش مقصد په دې حکاياتو کي دادی چي بې علمه سړی بايد چاته فتوی ورنه کړي، او که يې فتوی غلطه وه نو خپل پر غلتيا باندي قانع سي او په منتفی د نفس اماره پر هغه غلطی فتوی اصرار ونه کړي، ولهذا قال العلماء لا ادري نصف العلم.

وَإِن تُطِعْ أَكْثَرَ مَن فِي الْأَرْضِ يُضِلُّوكَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ

او که ته محمد ﷺ متابعت وکړې د ډېرو کسانو چي په ځمکه کي دي، والمراد الکفار، ولې چي په عصر نبوي کي کفار ډېر وه تر مسلمانانو. نو به دوی تا گمراه کړي له صراط مستقيم څخه چي اسلام دی.

إِن يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَإِنْ هُمْ إِلَّا يَخْرُصُونَ ﴿١١٦﴾

دوی يعني کفار مکه متابعت نه کوي مگر ته گمان باطل يعني ان آلهتنا شفعائنا عند الله او نه دي مگر په اټکل خبري کوي اټکلي خبري هغه چي دليل صحيح شرعي يا عقلي نه وي باندي.

إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ مَن يَضِلُّ عَن سَبِيلِهِ ۖ وَهُوَ أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ ﴿١١٧﴾

په تحقيق ستا خدای خبر دی يعني پر اکمله وجه په هغه چا چي گمراهي کوي له لاري څخه د خدای ﷻ. او خدای خبر دی په ښه وجه چي پر هدايت باندي وي يعني په يجازي اهل الضلال بالنار والمهتدين بالجنة دار الابرار.

**پوه سه:** چي کلمه د "من" يا موصوله او موصوفه ده او منصوب ده په فعل محذوف سره چي اعلم دلالت پر کوي يعني يعلم او په خپله اعلم نه ده منصوب ولې چي اسم تفضيل په اسم ظاهر کي عمل نه سي کولای کماتقرر في النحو. او يا کلمه د من منصوب په نزع د حرف جر ده چي هغه متعلق په اعلم سره دی ای اعلم بمن يضل آه. روی الترمذي عن ابن عباس رضي الله عنه چي بعض کافران

ونبي ﷺ ته راغله فقالوا لرسول الله ﷺ يا رسول الله انت تاكل ما تقتل ولاتاكل مايقتل الله يعني الميتة فنزلت هذه الآية.

**فَكُلُوا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ إِن كُنتُم بِآيَاتِهِ مُؤْمِنِينَ﴿١١٨﴾**

نو تاسي خوراک کوئ د هغه حیوان د غوښو چي ذکر سوی وي نوم د خدای ﷻ پر هغه باندي يعني په وخت کي د ذبح که چېري تاسي ياست پر آياتو باندي د خدای پاک ايمان راوړونکي.

**وَمَا لَكُمْ أَلَّا تَأْكُلُوا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ وَقَدْ فَصَّلَ لَكُم مَّا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ**

او څه سبب دی چي تاسي خوراک نه کوئ د هغه حیوان له غوښو څخه چي ذکر سوی وي نوم د خدای ﷻ پر هغه باندي يعني په وخت کي د ذبح، و خدای پاک تاسي ته تفصيلاً بيان کړی دی د هغو شيانو چي خدای ﷻ وتاسي ته حرام ګرځولي دي يعني في قوله تعالی "حرمت عليكم الميتة والدم الى اخير الآية.

**پوهسه**: چي ما استفهامي په محل کي د رفع مبتدأ ده او "لكم" يې خبر دی وقد فصل جمله حاليه ده.

**فائده**: مقدام المفسرين الامام الهمام فخر الدين رازي رحمه الله په تفسير كبير کي وايي چي مشرکانو ماذبح على اسم الله خوړی او د مسلمانانو سره يې په دې ذبيحه کي اختلاف نه درلودی، او نزاع ددوی او مسلمانانو په دې کي وه چي مشرکانو ميتته هم خوړل او مسلمانانو اكل د ميتته حرام باله واذا كان كذالك كان ورود الامر باباحة ماذكر اسم عليه بې فائدې سو، ولې چي هغه خو کافرانو هم خوړله لانه اثبات الحكم في المتفق عليه يعني ماذكر اسم الله عليه وترک الحكم في المختلف فيه يعني الميتة، او امام رازي رحمه الله ددې سوال جواب داسي ورکړی دی چي معنی د كلوا مما ذكر اسم الله الآية اجعلوا كلكم محصوراً ومقصوراً على ماذكر اسم الله عليه ومعنى قوله تعالى ومالكم ان لا تاكلوا تحريم الميتة فقط انتهى في بعض المواضع بعبارته وفي البعض بالترجمة.

**درويش وايي**: چي ما چي تفصيل د ماحرم په هغه آيت سره وکړی حرمت

عليكم الميتة تبعاً لبعض المفسرين. لكن صحيح داده چي آيت د حرمت عليكم الميتة خو مدني دی او دا سورت خو مکي دی. بلکې مراد د قد فصل لکم آه تفصيل دی په دې سورت کي يعني قوله تعالى قل لا اجد فيما اوحي الي الآية.

**سوال**: صيغه د فصل خو ماضي ده او مذکوره آيت خو وروسته راځي؟

**ځواب**: روح البيان وايي چي وروسته والی د مذکوره آيت په تلاوت ددې نه دی مقتضی چي په نزول کي دې وروسته وي، او بل جواب يې دا ورکړی دی چي مراد له فصل څخه دی تفصيل په وحي غير متلو سره وي. او دا جواب سعدي چلپي المفتي مختاره کړی دی والله اعلم بالصواب.

## إِلَّا مَا اضْطُرِرْتُمْ إِلَيْهِ

**پوه سه**: چي ضمير د اليه "ماحرم عليكم" ته راجع دی يعني دغه ماحرم عليكم حلال دي په وخت کي د ضرورت چي حال دی د غايت لوږي چي مخمصه يې بولي، نو پر دې تقدير استثناء متصله ده او مستثنى منه يې ما "ماحرم عليكم" ده او کلمه د ما مصدريه ده په معنی د وخت او مدې ای وقد فصل عليكم الاشياء التي حرمت عليكم في جميع الاوقات الاحال الاضطرار اليها، او که کلمه د ما موصوله سي بيا نو استثناء منقطع ده ولي چي ما اضطر اليه خو حلال دي نو تر ماحرم عليكم نه سي لاندي کېدای.

## وَإِنَّ كَثِيرًا لَّيُضِلُّونَ بِأَهْوَائِهِم بِغَيْرِ عِلْمٍ ۗ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِالْمُعْتَدِينَ ۞

او ډېر له کافرانو څخه گمراه کوي نور خلگ په خپلو خواهشاتو مثل تحليل الميتة وغيرها من الاشياء المحرمة بېله علمه يعني چي مستند و وحي ته وي يعني مثل الشريعة المطهرة لنا. او په تحقيق خدای ستا ښه خبر دی په هغو کسانو چي له حقه وباطل ته او له حلاله و حرام ته تجاوز کوي.

**حکايت**: بهلول دانا چي خلگو به لېوني باله وايي چي يوه ورځ په کوڅو کي د بصرې تېرېدم ډېر کوچنيان وه چي په جوزو او بادامو يې سات تېراوه. يو کوچنی گوښه ورته ناست دی د نورو کوچنيانو ساتېري ته گوري او ژاړي، بهلول وايي چي زما دا خيال سو چي دا کوچنی پر دې ژاړي چي دده سره جوز او بادام نسته چي د

نورو کوچنیانو سره سات په تېر کړي، نو ما و هغه کوچني ته وویل اې زویه جوز او بادام درته رانسم چي د کوچنیانو سره سات په تېر کړې؟ دې کوچني سر راپورته کړی او ماته يې وکتل او دا يې راته وویل یا قلیل العقل ما للعب خلقنا ای کم عقله مونږ د سات تېرولو لپاره خدای ﷻ نه یو پیدا کړي، نو ما ورته وویل اې زویه مونږ خدای ﷻ د کوم شي لپاره پیدا کړي یو؟ ده په جواب کي راته وویل للعلم والعبادة، ما ورته وویل ای بارک الله فیک چي تا دا علم له کوم ځایه زده کړی دی؟ ده راته وویل چي من قوله تعالی "افحسبتم انما خلقناکم وانکم الینا لاترجعون.

وَذَرُوا ظَاهِرَ الْإِثْمِ وَبَاطِنَهُ ۚ

او تاسي پرېږدئ ظاهر د ګنهو چي اعمال د جوارح دي او باطن د ګنهو چي ګنهونه د قلب او نفس دي لکه کبر حب الدنیا نفاق حسد الی غیر ذالک. او کلبي او اکثره مفسران وایي مراد له ظاهر الاثم څخه زنی ده په ښکاره او له باطنه څخه زنی ده په پټه، قال الدرویش و الاول هو الاشمل لجمیع المعاصي.

إِنَّ الَّذِينَ يَكْسِبُونَ الْإِثْمَ سَيُجْزَوْنَ بِمَا كَانُوا يَقْتَرِفُونَ ﴿١٢٠﴾

په تحقیق هغه کسان چي کسب کوي د ګناه یعني په دنیا کي ژر دی چي جزا به ورکړه سي یعني په آخرت کي د هغه ګناه چي دوی یې اقتراف کاوه یعني کسب یې کاوه په دنیا کي په اندازه د هغې ګناه چي خدای پاک ورته ټاکلې ده

بیت..... جمله میدانند اگر تو نه گروی — هر چه میکاریش روزی بدوری
عر و سی بو د نوبت ما تمت — اگر نیک روزی بود خاتمت
الهی بحق بنی فا طمه — که برقول ایمان بود خاتمه

**درویش وایي**: چي حقیقت دادی چي د شریعت مطهره ټوله اوامر باید پر ځای کړل سي، او له ټولو منهیاتو څخه پرهیز وکړل سي، نو به نجات کامل اخروي د سړي نصیب سي، پیر انصاري قدس سره درین باب چنین فرموده.

ایکه جویایی راه حق شده ای — از خطر د رېنا ه حق شده ئی
گر بخواهی سوی حقیقت راه — بې شریعت مشو حقیقت خواه
تاشر یعت نمیکنی حاصل — درحقیقت نمیشوی کامل

با شریعت ره حقیقت جوی.....راه تاریک بې چراغ میوی
تا ندانی ره حرام وحلال.....نشمرد کس ترا از اهل کمال
دین اسلام شریعت مصطفویست..... جز بدین راه رفتن همه دربدریست

وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ وَإِنَّهُ لَفِسْقٌ

تاسي خوراک مه کوئ د هغه شي چي په وخت کي د ذبح نوم د خدای ﷻ نه وي پر ذکر سوی يعني بسم الله الله اکبر.

**پوه سه**: چي مذهب د امام احمد رحمه الله دادی چي متروک التسمية که عامداً وي او که ناسياً وي خوراک يې نه دی روا واستدال بظاهر هذه الآية. وتبع احمد داؤد ظاهري وابو ثور، وشعبي ومحمد بن سيرين، او امام مالک او امام اعظم متروک التسمية ناسياً له دې آيته مستثنی بولي، صاحب الهدايه وايي چي موږ وايو چي ددې آيت په ظاهري تعميم کي متروک التسمية ناسياً هم داخلول حرج عظيم لان الانسان کثير النسيان والحرج مدفوع في الدين والمسموع يعني الآية المذکورة غير محمول علی ظاهره، اذ لو اريد به العموم لجرت المحاجة بها في الصدر الاول يعني في عهد الصحابة رضي الله عنهم فارتفع الخلاف في الصدر الاول انتهی.

**درویش وايي**: چي امام مظهري رحمه الله چي چنداني پابندي د مذهب نه لري وروسته تر نقل د قول د صاحب الهداية داسي ويلي دي ولا يخفی ضعف هذا القول انتهی. او وجه د ضعف يې هيڅ نه ده بيان کړې. او صاحب د روح البيان په تفسير کي ددې آيت داسي وايي ای عمداً اذ الناسي حال نسيانه لا يکون مکلفاً وايضاً ذکر الله في قلب کل مؤمن کما ورد في الحديث النبوي ﷺ، واما العامد فلانه لما ترک التسمية عامداً فکانما نفی ما في قلبه من ذکر الله.

**فائده**: ميتة په دې آيت کي اتفاقاً داخله ده وکذا ماذبح علی اسم غير الله تعالی انفراداً او اجتماعاً من الاصنام وغيرها.

**درویش وايي**: چي علامه بغداد السيد محمود الآلوسي په روح المعاني کي وايي چي تارک التسمية ناسياً ليس بتارک التسمية بل هي في قلبه علی ما روی انه عليه الصلوٰة والسلام سئل عن متروک التسمية فقال کلوه فان تسمية

الله في قلب كل مؤمن، او صحيح مذهب د امام احمد رحمه الله هم دغه دی لکه د امام اعظم مذهب چي دی انتهى قول علامة بغداد رحمه الله.

**درویش وایي:** چي محمود آلوسي رحمه الله چي اشاره وحدیث ته وکړه هغه دوه حدیثه دي چي د یوه روایت دار قطني په سند سره د ابو هریره رضي الله عنه قال سئال رجل فقال یا رسول الله خبر راکړه چي یو سړی زموږ څخه یو حیوان ذبح کړي او نوم ذکر کول د خدای جل جلاله یې هیر سي، فقال رسول الله ﷺ اسم الله في فم كل مسلم، او بل حدیث د ابن عباس رضي الله عنه دی چي هم یې داري قطني روایت کړی دی ان النبي ﷺ قال المسلم ان نسي ان یسمی حین یذبح فیسم ثم لیاکل لکن له بده مرغه مظهري رحمه الله وایي چي دواړه حدیثونه ضعیف دي او بیا یې له کتابو څخ د مخالفینو د مذهب حنفي وجه د ضعف بیان کړیده.

**درویش وایي:** چي امام مظهري رحمه الله چي ځان هم حنفي المذهب بولي داسي وایي، نو له ښکاره مخالفینو څخه څه ګله.

**پوه سه:** چي ضمیر د "انه" یا راجع دی و اکل ته د متروک التسمیة عامداً او یا راجع دی و ترک د تسمیة اسم الله عمداً ته. ومعنی الفسق هٰ خروج الی مایحل.

**پوه سه:** چي مشرکانو و علیه الصلوٰة والسلام ته مجادلةً داسي وویل چي هغه حیوان چي تاسي یې په چاړه ذبح کړئ خورئ، او د هغه حیوان غوښي نه خورئ چي خدای جل جلاله قتل کړی وي، یعني میتة نو دا آیت نازل سو.

وَإِنَّ الشَّيٰطِينَ لَيُوحُونَ إِلَىٰٓ أَوْلِيَآئِهِمْ لِيُجَٰدِلُوكُمْ ۖ

**پوه سه:** چي مراد له وحي څخه په دې ځای کي وسوسه بالباطل ده او مراد له اولیا څخه د شیطانانو مشرکان دي. والمعنی په تحقیق شیطانان وسوسه ور اچوي وخپلو دوستانو ته چي مشرکان دي لکه په دې موضوع کي د اکل مذبوحي وعدم اكل الميتة كمامر.

وَإِنْ أَطَعْتُمُوهُمْ إِنَّكُمْ لَمُشْرِكُونَ ﴿١٢١﴾

او که تاسي مؤمنان ددوی اطاعت په حلال ګڼلو کي د حرام چي دلته میتة ده په تحقیق تاسي هم مشرکان یاست ولي هغه څوک چي اطاعت د خدای جل جلاله

پر پرېږدي چي خدای ﷻ میتة حرامه ګڼلې ده او اطاعت د غیر د خدای وکړي چي مشرکان دي یعني میتة حلاله وبولي فقد اشرک بالله غیره بل فضله علیه تعالی عن ذالک علواً کبیراً.

**أَوَمَن كَانَ مَيْتًا فَأَحْيَيْنَاهُ وَجَعَلْنَا لَهُ نُورًا يَمْشِي بِهِ فِي النَّاسِ كَمَن مَّثَلُهُ فِي الظُّلُمَاتِ لَيْسَ بِخَارِجٍ مِّنْهَا**

آیا هغه څوک چي مړ وي یعني کافر وي زړه یې له خدایه غافله وي، نو موږ یې ژوندي کوو یعني په زړه کي نور د ایمان پیدا کړو او موږ وګرځول ده لره نور یعني نور باطني چي په هغه تمییز د حق او باطل کولای سي چي په هغه سره دی ګرځي په خلګو کي چي دې نور ته فراست وایي کما ورد في الحدیث اتقوا فراسة المؤمن فانه ینظر بنور الله داسي کېدای سي لکه هغه سړي چي صفت دده په تاریکیو کي دی له دې تاریکیو څخه نه سي وتلای.

**فائده:** په صحیح حدیث کي د ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت دی چي یوه ورځ ابو جهل علیه الصلوٰة والسلام په خوشایي وویشتی، سیدنا حمزه رضی الله عنه په ښکار پسي تتلی و او کمان ورسره و او تر دغه وخته حضرت حمزه هم نه و مسلمان، نو حضرت حمزه رضی الله عنه ته چا دا قصه وکړه چي ابو جهل نن علیه الصلوٰة والسلام په خوشایي وویشتی، حمزه رضی الله عنه ته ډېر درد ورغلی، نو ابو جهل چي یې ولیدی پر ککری یې په کمانه وواهه. ابو جهل ورته وویل چي ولې دي ووهلم؟ حمزه ورته وویل چي تا ولې محمد په خوشی ویشتلی دی، ابوجهل ورته وویل چي محمد څرنګه خبري کوي. موږ یې عقلان بولي او زموږ خدایانو ته ښکنځل کوي. حمزه رضی الله عنه ورته وویل رشتیا وایي تاسي عبادت د ډبرو کوئ من دون الله حمزه وویل اشهد ان لا اله الا الله وحده لاشریک له واشهد ان محمداً عبده ورسوله فنزلت هذه الآیات.

**فائده:** همزه لپاره د انکار او نفي دی، قانون قرآني هر ځای چي په قرآن پاک کي تر همزه وروسته واو عاطفه او یا فا او یا ثم راسي د هغه عطف پر همزه دمخ کلام باندي نه سي کېدای لفوات صدارة همزة الاستفهام بلکې په منځ کي د همزه او واو فا وغیره معطوف علیه مناسب ده مقام سره محذوف دی، نو دلته

هم ومن كان ميتاً چي جمله اسميه ده پر جمله اسميه چي له مقام څخه فهميږي معطوف ده اى انتم ايها المؤمنون مثل المشركين ياست ومن كان ميتا آه.

**فائده**: مثله" مبتدا ده او "في الظلمات" يې خبر دى او ټوله جمله صله د "من" ده.

**يوه سه**: چي آيت يعني او من كان ميتاً تر پايه پوري وارد پر طريقه د تمثيل دى يعني تشبيه ده حال ده حمزه ﷺ چي په حال كي كفر و، د مړه سره يې وكړى او تشبيه د حال دده چي ايمان يې راوړى په دې سره وكړه لكه مړه چي ژوندى سي. او تشبيه د حال دده په وخت كي د ايمان او نوري قلبي دده په نور ظاهر سره لكه يو څراغ چي د چا سره ورسره وي او په خلگو كي گرځي، او تشبيه د حال د ابوجهل يعني كفر قلبي دده او نور معاصي دده لكه په قرآن بې استهزا وهله او عليه الصلوٰة والسلام چي يې په خوشايي وويشتى الى غير ذالک په ظاهري تاريكو سره او په صيغه د جمع يې راوړى، او تشبيه د حال د ابوجهل چي تر وخت د مرگ پر هغه كفر باقي وه په دې سره وكړه چي سړى همېشه په ظاهري تاريكي كي وي او وتلاى نه سي.

**درويش وايي**: چي دا مجموع تشبيهات په حال كي د مؤمن چي حمزه ﷺ دى او داغه رنگه دا مجموع تشبيهات چي په شان كي د كافر وي چي ابوجهل دى هر يوه ته په اصطلاح د علم بيان استعاره تمثيليه وايي چي معنا يې داده چي تشبيه د يو هيئت منتزعه من مجموع مركب مع هيئته اخرى چي هغه هم منتزع ده بل مجموع مركب څخه وي، كما في قولهم للشخص المتحير في امر من الامور، رئيتک به تقدم رجلاً وتوخر اخرى، ولهذا الاستعارة التمثيلية امثلة اخرى مذكورة في علم البيان.

**پوښتنه**: په دې استعاره تمثيليه څوک پوهيږي له زده كونكو څخه ستاد تفسير؟

**ځواب**: عوام كه نه په پوهيږي علما او بعض طالبان خو په پوهيږي او ما مكرراً ويلي دي چي زما تفسير پښتو دى په دې معنا نه دى چي د عوام الناس لپاره دى.

**سوال**: باعث د راوړلو د بيان د تمثيليه پر تاڅه دى؟

**خواب**: تفسیر مظهري ددې آیت په تفسیر کې "اومن کان میتاً آه" داسې ویلي دي استعارة تمثیلیة وکذا في قوله کمن مثله في الظلمات یعني په هغه کې هم استعاره تمثیلیة ده او ددې استعارې نور هیڅ بیان یې نه دی کړی.

كَذٰلِكَ زُيِّنَ لِلْكٰفِرِيْنَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ

لکه ابوجهل ته چې خپل کفر او معاصي دده په دماغ کې ښائسته کړه سوې وه او دده پوچ ذهن او دماغ ته دا ښائسته کړل سوې وه چې زه افضل یم تر مؤمنانو. داغه رنګه ټولو کافرانو ته علی اختلاف انواعهم ښائسته کړل سوي وه هغه چې دوی کول من الکفر والمعاصي.

**درویش وایي**: چې پر عکس د حال د کافرانو مسلمان باید په زړه کې محبت او عشق ته د لوی خدای ﷻ ځای ورکړي، حافظ شیرازي قدس سره وایي

هرگز نمیرد آنکه دلش زنده شد بعشق ثبت است برجریده عالم دوام ما

قال علیه الصلوٰة والسلام المؤمن حي في الدارین، وباین معنی اشاره نموده یک شاعر عارف.

نمیرد هر کرا جانش تو باشی خوشاجانی که جانانش توباشی

اگر کسی میخواهد که باخدا باشد لازم است که از مردم انقطاع کلی بعمل آرد یک بزرگی باین معنی اشاره نموده ومیگوید

برروی خلائق درصحبت مکشای میباش بکلی متوجه بخدای

غافل مشو از ذوق دل وذکر زبان تازنده جاوید شوی دردوسرای

من هماندم که وضو ساختم از چشمه عشق
چار تکبیر زدم یکسره برهر چه که هست

وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَا فِيْ كُلِّ قَرْيَةٍ اَكٰبِرَ مُجْرِمِيْهَا لِيَمْكُرُوْا فِيْهَا

یعني لکه مونږ چې په مکه کې رئیسان ددوی مجرمان ګرځولي وه چې خلګ یې خطایستل او و کفر ته یې دعوت ورکاوه. داغه رنګه مونږ ګرځولي دي په هره قریه کې رئیسان مجرمان یعني کافران د هغې قریې تاچه مکر وکړي په هغه قریه کې له نورو قریه والا وو څخه یعني پر کفر او اضلال او پر دین د آباؤ یې

باعث وګرځوي لکه رئیسانو د مکې چې ورته کارونه کوله.

**درویش وايي**: چې "جعلنا" په آیت کې په معنا د صیرنا دی چې دوه مفعوله غواړي مفعول اول یې في کل قریة او مفعول ثاني یې اکابر دی او "مجریها" د هغه بدل دی، او یا مفعولان اکابر ومجریمها دی ای في کل قریة ظرف لغو متعلق د جعلنا دی، او چې في کل قریة مفعول یې مفعول اول سي کما قلنا سابقاً فهو ظرف مستقر ای کائناً في قریة، وفي بعض التفاسیر وان کان جعلنا بمعنی مکنا آه فهو خلاف ماهو المشهور ان الجعل اما بمعنی التصییر او الخلق جمل معترضه، د درویش قصیده.

که ثنا د خدای پاک وایمه شرمیږم
که یې نه وایم له خدایه سه بیریږم
نعمتونه د خدای پاک پر ما عاصي
دونه ډیر دي په حساب یې نه رسیږم
هر نعمت چې زما له حاله مناسب وي
خدای راکړی دی وماته زه پوهیږم
ددې دومره نعمتو ثنا په خوله زما
نه کیدونکی ده نه زه پسې رسیږم
که نعمت د خدای یاد کړم زه په خوله
څوک مې هیر دی او بعض یادلرم په زړه
د ثنا ویل نعمت هم دخدای پاک دی
پر ثنا ثنا ویل طاقت د چا دی
بیا دا زما جزوی ثنا دي خدای منظور کړي
د کریم په لوی دربار کې دې مقبول کړي
چونکه عجز د بنده د خدای پاک خوښ دی
زما عجز او مسکنت دې خدای پاک خوښ کړي

کریمه د لئن شکرتم چي رایاد کړم
له اخیر خخه مي زړه په لرزه راسي
د عبید د خوشحالي ورځ به هغه وي
چي د نفس مطمئنه زېرئ پري کېږي
پس له حمده درود وایم پر احمد مجتبی
چي سید المرسلین او محمد مصطفی
شفاعت د ټول امت به کوي څوک
هغه څوک چي دی محمد مرتضی
پس له خدایه غیرت مند سړی دی څوک
هغه څوک چي دی حامد مقتدی
په سجده کي د امت غم به کي څوک
هغه څوک چي د نبیانو دی پیشوا
د یا ایها الذین آمنوا صلوا زېرئ د چا
هغه څوک دی چي اول دی په ویلو د بلی
محبت د هغه چا سره کړه ورورہ
چي په سخت حالت کي ستا دی رهنما
د عبید د خوشحالي وخت به هغه وي
چي قبول سي په دربار کي د پېشوا
محبت د محمد به په بنه درسي
چي یوه دېوال ته مخ وبل ته شا

وَمَا يَمْكُرُونَ إِلَّا بِأَنفُسِهِمْ وَمَا يَشْعُرُونَ ﴿١٢٣﴾

او دوی چم او مکر نه کوي مگر نه د خپلو ځانو سره، ولي عذاب د مکر ودوی ته راجع دی په دنیا او آخرت کي.

**پوه سه:** چي ابو جهل چي سرسخته دښمن د علیه الصلوٰة والسلام ؤ ویل به یې چي زمونږ سره مزاحمه او سیالي کوله بنو عبد مناف حتی چي مونږ او

دوی پر یوه اندازه سود شرف او عزت په مکه کي يو. نو دوی دا ناري شروع کړې چي په موږ کي خو نبي سته. نو په دې سبب شرف زموږ لوړ سو تر تاسي. ابو جهل وویل والله لانؤمن به ولا نتبعه احداً الا ان یاتینا وحي کماتیه یعني چي بیرته به شرف سره برابر سي، او ولید بن المغیرة بیا داسي ویله که نبوت حق وي، نو زه اولی یم تر تا یا محمد، ولي زه تر تا بالایم په عمر کي او په مال کي هم تر تا بالایم فانزل الله هذه الآية.

وَإِذَا جَآءَتْهُمْ ءَايَةٌ قَالُوا۟ لَن نُّؤْمِنَ حَتَّىٰ نُؤْتَىٰ مِثْلَ مَآ أُوتِىَ رُسُلُ ٱللَّهِ

او چي راسي وکفارو ته د مکې یو آیت قرآني یا معجزه چي دلالت کوي پر صدق د دعوې د نبوت د علیه الصلوٰة والسلام دوی وایي چي موږ هرګز ایمان نه راوړو پر نبوت د محمد ﷺ تر هغو چي موږ ته رانه کړل سي مثل د ما اوتي رسلان ته خدای ﷻ یعني من الکتاب المنزل او المعجزات. نو جواباً د دغه خبر د دوی رد کړه په دې آیت سره.

ٱللَّهُ أَعْلَمُ حَيْثُ يَجْعَلُ رِسَالَتَهُۥ

خدای ﷻ ښه خبر دی په ځای یعني په شخص چي خدای رسالت ورکوي یعني رسالت نه مال دی نه په مشرتوب دی او نه په نسب دی بلکي رسالت فضل الهي دی ددې درانه بار د رسالت په محل خدای ﷻ خبر دی. صاحب التیسیر وایي چي دا غایت ناپوهي د سړي چي وده ته وویل سي چي ایمان راوړه! دی ووایي چي زه تر هغو پوري ایمان نه راوړم چي زه نبي نه سم.

سَيُصِيبُ ٱلَّذِينَ أَجْرَمُوا۟ صَغَارٌ عِندَ ٱللَّهِ وَعَذَابٌ شَدِيدٌۢ بِمَا كَانُوا۟ يَمْكُرُونَ ﴿١٢٤﴾

ژر دی چي وبه رسیږي هغه کسانو ته چي جرم یې کوی یعني اکابر د کفارو د مکې ذلت او سپکاوی عند الله یعني من عند الله في الدنیا والآخرة او عذاب شدید په سبب د هغه چي دوی مکرر کاوه په دنیا یعني چي خلګ بې له ایمان څخه منع کول او دا به یې ورته ویل چي د پلار او نیکه دین مه پرېږدئ.

**پوه سه:** چي دغه ذلت او هوان اکابرو ته د مکې په ورځ د بدر ورسېدی چي اویا کسه په شمول د ابوجهل ورمردار سوه او اوویا (۷۰) کسان ژوندي په حصارت ونیول سوله.

فَمَن يُرِدِ اللَّهُ أَن يَهْدِيَهُ يَشْرَحْ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ

نو هغه څوک چې اراده وکړي خدای ﷻ چې و هغه ته هدایت وکړي، نو یې سینه فراخه وه اسلام ته.

**پوه سه**: چې دا آیت چې نازل سو خلګو پوښتنه وکړه د علیه الصلوٰة والسلام څخه چې شرح صدر څه شی دی؟ علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل نور یقذفه في قلب المؤمن چې په هغه نور سره حق او باطل سره وپېژني یعني اختیاراً لا اجباراً بلکې په زړه کې دومره استعداد پیدا کړي چې حق او باطل سره جلا کړي.

وَمَن يُرِدْ أَن يُضِلَّهُ يَجْعَلْ صَدْرَهُ ضَيِّقًا حَرَجًا

او هغه چاته چې اراده د خدای ﷻ وي چې ګمراه یې کړي له لاري څخه د خدای وګرځوي سینه دده تنګه د حرج معنا داده چې نو اباکوي له قبوله څخه د حق.

**پوه سه**: چې "حرجاً" مصدر دی حمل یې مبالغةً دی.

**پوښتنه**: په دې آیت کې نسبت د اضلال وخدای ﷻ ته سوی دی، نو د کافر په کفر او ضلال کې څه ګناه ده؟

**ځواب**: د "یضل" معنا داده یخلق فیه الضلال بناً علی ان الخالق هو الله لکن بسبب صرف اختیار الکافر وارادته الی الکفر مثلاً د قرآن اورېدو ته غوږ نه نسي او معجزاتو د نبي په نظر د سحر ګوري.

**والحاصل**: بنده په ایمان او کفر کې او په طاعت او عصیان کې مختار دی او هر څه عمل چې په بنده پیدا کېږي بنده یې کاسب دی او خدای یې خالق دی.

**درویش وایي**: چې فرق په منځ کې د خلق او کسب ډېر دقیق او صعب دی ددغه صعوبة له وجهي معتزله وايي چې خالق د اعمالو د بندګانو بنده ګان دي او جبریه وايي چې بنده په کفر او اسلام او طاعت او عصیان کې مجبور محض دی تو له خدای ﷻ په کوي. او زمونږ د اهل السنة والجماعة متوسط په منځ کې د افراط د معتزله وو په باره کې د بندګانو چې نسبت د خلق ودوی ته کوي او په منځ د تفریط د جبر یې چې په حق د بندګانو کې کوي چې بندګان تو له مجبور محض بولي لا اختیار لهم في شيء من اعمالهم الکفر والاسلام والطاعة

والعصيان فتدبر في فهم الخلق والكسب والتمييز بينها.

**درويش وايي:** چي ددې دقيقي مسئلې فهم او د خلق او كسب امتياز علامه تفتازاني رحمه الله په شرح العقائد او شرح المقاصد كي كړى دى، او داغه رنګه قاضي عضد الملة والدين رحمه الله په مواقف كي كړى دى او سيد جرجاني رحمه الله په شرح كي د مواقف كړى دى، محقق بهاري په مسلم الثبوت كي په زړه پورې بيان كړى دى والله اعلم بالصواب.

**پوښتنه:** ددې مشار اليه كتابو چي تا حواله ورته وكړه فهم به ستا د تفسير د مطالعه كوونكو لپاره ډېر ګران نه وي؟

**ځواب:** مطالعه كوونكي خو يوازې عوام نه دي او علماً ووته د دغې مسئلې څېړنه په مشار اليه كتابو كي مشكله نه ده.

كَأَنَّمَا يَصَّعَّدُ فِي السَّمَاءِ

يعني زړه يې داسې تنګ سي لكه اسمان ته چي ختړي.

**يوه سه:** چي بعض قرأ دا كلمه "يصعد" وايي يعني له بابه د مجرد، او بعض قاريان يې يصاعد بالالف وتشديد الصاد چي اصل يې يتصاعد و، تا صاد سوله او په صاد كي مدغمه سوه، او موجود قرائت چي متعارف په مصاحفو كي دى يصعد چي اصل يې يتصعد دى.

**يوه سه:** چي دا تشبيه مبالغه ده په ضيق كي ده، يعني لكه يو څوک چي مكلف كړل سي په ختو سره اسمان ته، دا ضرب مثل دى په هغه كار كي چي له قدرت څخه وتلى كار وي، نو په دې تشبيه چي ايمان د من اضل الله ممتنع دى لكه ختل و اسمان ته چي ممتنع دى عادة للناس عموماً، فلا يرد الاعتراض بصعود الملائكة ولا بصعود النبي ﷺ في ليلة المعراج فافهم.

كَذَٰلِكَ يَجْعَلُ اللَّهُ الرِّجْسَ عَلَى الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿١٢٥﴾

يعني مثل مايضيق وما يبعد قلبه عن الايمان ګرځوي خداى جل جلاله رجس پر هغو كسانو چي ايمان نه راوړي.

**يوه سه:** عطا رحمه الله وايي چي رجس په معنا د عذاب دى، او زجاج رحمه الله وايي

چي رجس په معنى د لعنت دی په دنيا کي او د عذاب في الآخرة. او کلبي رحمه الله وايي چي معنا د رجس گناه ده. او مجاهد رحمه الله وايي چي الرجس ما لا خير فيه. او ابن عباس رضي الله عنه وايي چي رجس شيطان ته وايي يعني يسلط عليه الشيطان.

**درويش وايي:** چي دا ټول قولونه سره متناسب دي بالقرب واللزوم.

**سوال:** ځای خو د عليهم يعني ضمير ولي چي مرجع د مخه ذکر دی. نو څه حکمت دی چي خدای ﷻ الذين لا يؤمنون ذکر کړی؟

**ځواب:** لپاره د بيان د علت د رجس پر دوی.

وَهٰذَا صِرَاطُ رَبِّكَ مُسْتَقِيمًا

هذا ای البيان الذي جاء به القرآن کشرح صدر من اراد هدايته وجعله ضيقاً لمن اراد اضلاله. يعني دا لار د خدای ده چي حکمت د خدای ﷻ يې مقتضی دی او عادت د خدای ﷻ په جاري دی. او بعض مفسران يې داسي تفسير کوي چي د غه طريقه چي ته پر روان يې او قرآن راتګ په کړی دی لار د موصل و خدای ﷻ ته. "مستقيماً" حال دی له صراط څخه او عامل يې الاشارة المفهومة من هذا کما في قول القائلة هذا بعلي شيخاً. پر اول تقدير د مستقيماً معنی عادلاً ده او په دوهم تفسير يې معنا سمه لار ده چي کږوالی نسته پکښې.

قَدْ فَصَّلْنَا الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّذَّكَّرُوْنَ ﴿۱۲۶﴾

موږ تفصيل د آيتو کړی دی د هغه چا لپاره چي له قرآني آيتو څخه پند اخلي لانهم هم المنتفعون بها. او مظهري رحمه الله د قوم يذکرون څخه اهل السنة والجماعة مراد کړي. او پر معتزله روافض وسائر اهل الاهواء يې رد بولي.

**درويش وايي:** چي په وخت کي د نزول قرآن خو دا فرق نه وې، نو څرنګه آيات قرآنية رد پر هغو کېدای سي بلکې حق داده چي د قوم يتذکرون څخه ټوله هغه کسان چي عمل په آياتو د قرآن کوي په اول کي د نزول د قرآن کريم ورته آيتونه رد پر مشرکينو او يهودانو باندي وو.

لَهُمْ دَارُ السَّلٰمِ عِنْدَ رَبِّهِمْ

**يوه سه:** چي "سلام" يا مصدر دی يعني دار السلامة منع جميع الآفات وهي

الجنة، او يا سلام نوم د خداى ﷻ دى اضافت د دار چي يې ورته وکړى تشريفاً للمضاف اى الجنة كبيت الله، او يا مراد تحية دار السلام عليكم لان الملائكة وقت دخول اهل الجنة يقولون سلام عليكم فادخلوها خالدين. وايضاً يقول الرب تعالى سلام قولاً من رب رحيم، ويعلمون بعضهم على بعض.

"عندربهم" په نېز د خداى ﷻ له عنديت څخه عنديت د تصرف دى يعني په تصرف كي د خداى ﷻ دى چي د مؤمنانو لپاره يې مهيا كړى دى چي په هغه دار السلام كي مالاعين رئت ولا اذن سمعت ولا خطر على قلب بشر يعني بالتفصيل.

وَهُوَ وَلِيُّهُم بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١٢٧﴾

او خداى ﷻ دوست دى ددوى او متولي د امورو ددوى دى چي په دار الدنيا توفيق د اسلام ورکړى او په قبرو كي خداى ﷻ د سوال كي د نكير او منكر قناعت بخښه جواب ورته الهام كړي او په اخرت كي به د جناتو علاوه درجات د قرب وركړي، او دا ټوله په زړه پوري شيان په سبب ددې دى چي دوى به عمل كاوه يعني په دنيا كي من الايمان والاعمال الصالحة. د تاريخ اسلامي په پاڼو كي په صحيح روايت راغلي دي چي امير المؤمنين عمر ابن الخطاب ﷺ يو فوج څلور زره د اسانو سپاره لپاره د فتح د بعضو ښارو د عجمو امير د لښکر يې خپل زوى عبدالله ﷺ وګرځاوه. عبدالله ﷺ وايي چي موږ روان سوو او يوه قلعه چي د لوړ غره پر سر جوړه وه محاصره كړه چي زموږ سلاح يعني غشى ولينده ونېزه هغې قلعې ته هيڅ نه سواى رسېدلاى، او په دغه قلعه كي لښكر هم ؤ او ملكه ددوى ښځه وه ډېره ښائسته وه، نو يوه ورځ دغي ملكې زموږ عسكرو ته تر دريڅې د قلعې وكتل. يو ځوان يې وليدى له ځوانانو څخه د عربو چي پر آس سپور ؤ او ډېر خوش رنګه ښائسته، نو دې ملكې سوړ ساه وكښى، نو مينځيانو يې ورته وويل چي ولي دي سوړ ساه وكښى سره ددې چي ته په محكمه قلعه كي ناسته يې او خپل عسكر هم لرې، ملكې ورته وويل دا زما قلعه او مستحكم ځاى به هغه ځوان چي پر آس سپور دى فتح كوي، مينځو ورته وويل چي څرنګه به يې فتح كوي؟ ملكې ورته وويل چي ته يو ساعت صبر وكړه، نو ملكي يو سړى ور واستوى د ملاقات طمعه لرم نو زه به

ستا یم ته به زما یې، څوان ورته وویل چي نعم په دوه شرطه اول به ستا قلعه موږ ته تسلیموې، او د حصن داخل به ده ته تسلیموې. ملکې بیرته سړی ورته راواستاوه چي د حصن داخل په معنی نه سوم پوه، نو څوان وقاصد ته وویل چي له حصن داخل څخه مراد زړه دی هغه به زړه ته سپاري او ته به اقرار په وحدانیت د خدای ﷻ کوې، نو ملکې ورته وویل یعني د قاصد په خوله چي زما د قلعې دروازه درته خلاصه ده ستا ته او فوج ټوله راسئ، دوی چي قصر ته د ملکې داخل سوه، نو هغه پردې اسلام عرض کړی، دې ورته وویل زه ملکه خدای لوی همت راکړی نو تر تا بالا سړی به فوج لري چي هغه پر ما اسلام عرض کړي؟ څوان ورته وویل نعم کبیرنا وابن کبیرنا یعني عبد الله بن عمر ﷺ، نو یې ملکه راوستل وسر لښکر ته یعني عبد الله بن عمر ﷺ ته، نو عبد الله ﷺ اسلام پر عرض کړی ملکې ورته وویل چي تر تا لوړ سړی په مسلمانانو کي سته چي زه د هغه پر لاس ایمان راوړم؟ عبد الله ﷺ ورته وویل نعم والدي امیر المؤمنین عمر ﷺ ملکي ورته وویل ما هغه ته واستوه چي د هغه پر لاس اسلام قبول کړم، نو عبد الله ﷺ ملکه سره د ډېرو اموالو چي ددې له قلعې یې رایستلي وه او عسکر یې هم ورسره کړه د مدینې منورې پر خوا یې روان کړه، حتی چي ملکه سره د اموال جزیله او خزانو مدینې منورې ته ورسېدله او امیر المؤمنین عمر ﷺ ته پېش کړل سوه او د ورسره عسکرو ټوله صورت حال یې د ملکې و حضرت عمر ﷺ ته بیان کړی، نو عمر ﷺ ایمان پر عرض کړی. ملکې ورته وویل تر تا لوړ سړی سته چي د هغه پر لاس ایمان راوړم، عمر ﷺ ورته وویل نعم محمد ﷺ چي رسول د خدای ﷻ دی وهذا قبره الشریف واشار الی الروضة الشریفة. نو ملکه ورغله روضه مطهره ته په ډېر ادب یې سلام وواېه او په ډېر احترام ورته کښېنستله او د قاره سره یې وویل اشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمداً عبده ورسوله. وروسته یې وویل خرجت من الظلمات الی النور وانا اخشی یا رسول الله ان یدنس ایماني بالمعاصي فاسئل ربک الذي ارسلتني الینا بالحق ان یقبض روحي قبل ان اعصی مرة اخرٰی فوضعت راسها علی العتبة الشریفة فتوفیت ساعتها، عمر او نورو صحابه کرام ﷺ چي حاضر وه ټولو پر وژړل او ښځي یې راوغوښتلې چي

غسل ورکړي او کفن يې ورکړي او صلوٰة جنازه په خپله عمر ورکړی او په جنت البقیع کې يې د صحابه کرامو په منځ کې خاورو ته وسپارل فرحمة الله علیها وحق القول ان الله یهدي من يشآء.

**تنبیه**: درویش وايي: چې عرب د قوم نوم دی دا يې معنا نه ده چې عربي ژبه به وايي، ولې چې ډېر عرب و مختلفو ملکو ته کډه سوي دي او نسل پر نسل يې عربي ژبه نه وي زده لکن په نسب عرب وي، او عجم ماسوا ته د عربو وايي لکه ترک، افغان (پښتون)، تاجک، بلوڅ الی غیر ذالک من القبائل دا يې معنا نه ده چې عربي ژبه به نه وايي بلکې پښتو یا بلوڅي به وايي مثلاً، ولې چې ډېر عجم د مختلفو قومو عربستان ته په کډه تللي دي او نسل پر نسل هغه عجمي ژبه ځني هېر سوې وي او سلیسه عربي وايي.

**درویش وايي**: چې په دې تنبیه ډېر توهمات د عصري ملایانو چې فکر نه لري دفع سوه فتامل.

**وَيَوۡمَ يَحۡشُرُهُمۡ جَمِيعٗاۚ**

هغه ورځ چې خدای ﷻ حشر او ژوندي کړي انسانان او جنات یعني په ورځ د قیامت.

**پوه سه**: چې دلته اذکر چې عامل د نصب د یوم دی مقدر دی او مخاطب په اذکر سره علیه الصلوٰة والسلام دی والتقدیر اذکر یا محمد ﷺ اهل مکة او نورو ته هغه ورځ آه.

**يَٰمَعۡشَرَ ٱلۡجِنِّ قَدِ ٱسۡتَكۡثَرۡتُم مِّنَ ٱلۡإِنسِۖ**

اې ډلې د شیطانانو تا ډېر کسان د انسانانو ځان ته جلب او گمرهان موکړه

پوه سه: چې د لفظ "جن" اطلاق پر پېرانانو هم کېږي او پر شیطانانو هم کېږي، ولې د جن معنا پټوالی دی او دغه دواړه د انسانانو له ستر گو څخه پټ دي.

**وَقَالَ أَوۡلِيَآؤُهُم مِّنَ ٱلۡإِنسِ رَبَّنَا ٱسۡتَمۡتَعَ بَعۡضُنَا بِبَعۡضٖ**

او وايي دوستان د شیطانانو یعني اتباع ددوی په انسانانو کې چې اې زموږ تولو ربه نفع اخستل بعض زموږ له بل بعض څخه.

**درویش وایي**: چي نفع د انسانانو له شیطانانو څخه داده چي دوی و انسانانو ته سحر ورښیي او کهانت، غیب ګويي ورښیي او شهوات ورته ښائسته کوي او د هغو شهواتو د رسېدلو لاري چاري ورښیي، او د شیطانانو نفع د انسانانو چي دوی انسانان په ضلال او معاصي او د حق له لاري څخه لېري کوي چي اخیر درجه یې کفر بالله وعداوت اولیاً الله ده.

وَبَلَغْنَآ أَجَلَنَا ٱلَّذِىٓ أَجَّلْتَ لَنَا ۚ

او مونږ دي ورسولو اجل موعود ته، یعني یوم القیامة مطلب د دوی اقرار پر خپلو ګنهو او اظهار د افسوس او تحسر کوي، لکن لاینفعهم لان وقت الندامة على الضلالة قد مر وهو الدنیا، قال الشیرازي قدس سره.

کنون باید ای خفته بیدار بود.. چومرګ اندر آرد ز خوابت چه سود
چه خوش ګفت باکودک آموزګار.. که کاری نه کردم و شد روز ګار

قَالَ ٱلنَّارُ مَثْوَىٰكُمْ خَٰلِدِينَ فِيهَآ إِلَّا مَا شَآءَ ٱللَّهُ ۗ إِنَّ رَبَّكَ حَكِيمٌ عَلِيمٌ ﴿١٢٨﴾

خدای ﷻ وایي ودوی ته چي اور ستاسي د اوسېدلو ځای دی همېشه به یاست تاسي په اور کي، مګر نه چي د خدای ﷻ اراده سي په تحقیق ستا رب په هر کار کي حکمت لري او په هر شي ښه علم لري.

**درویش وایي**: چي ددې استثناً په باره کي اقوال دي په تاویلات نجمیه کي وایي چي دا استثناً راجع ده واهل توبه ته په دنیا کي فلاتکون النار مثواه لا الى اهل الخلود في النار، او بعض مفسران وایي چي کلمه د ما مصدریه ده او مضاف ورسره محذوف دی کما في قولهم آتیک غروب الشمس ای وقت غروبه فالاستثناً من مضمون الجملة التي قبله کانه قیل النار مثواکم خالدین فیها الا وقت مشیته تعالى ان ینقلوهم من النار الى الزمهریر چي دېر یخ ځای دی، او په زره پوري ترجمه یې داده الا مدة سبقت على وقت دخلوهم النار چي هغه مده د حساب او د صدور د حکم الهي په دخول سره د دوی اوږخ ته. او بعضو مفسرانو د تعجب ور ترجمه کړی دی وایي چي الا په معنا د سوی دی نو معنا یې داسي کېږي د خالدین فیها سوی ماشاً الله من انواع العذاب یعني ماسوی له اور څخه

نور عذابونه هم دوی ته ستته، د تعجب ځای دادی چي الا په معنی د سوی چېري مستعمل سوی دی په عربي ژبه کي، مظهري رحمه الله بې سنده له ابن عباس رضي الله عنه څخه يو روايت کړی دی چي فهم يې ډېر مشکل دی او ده په قلت سره يوه داسي توجيه ورته کړې ده چي حاصل دده په ذهن کي دی.

**درويش وايي:** چي ددې استثنا په باب کي علامه بغداد سيد محمود آلوسي رحمه الله په ج٦ ص٢٦/٢٧ کي ډېر ښه بيان کړی دی چي د بعضو توجيهاتو نقض او جواب يې هم ښکي راوړی دی چي تو له نقل مفضي و تطويل ته ګرځي.

## وَكَذَٰلِكَ نُوَلِّي بَعْضَ الظَّالِمِينَ بَعْضًا بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ۝

او دغه رنګه لکه عصات الجن والانس يو پر بل ګمارلي او مسلط کړي دي حتی چي جن د انس نفع اخلي او انس له جن څخه موزير ګماشته کړی دی بعض ظالمان پر بعض باندي ددوی په سبب د هغه چي دوی يې کسب کاوه من الکفر والمعاصي.

**درويش وايي:** چي قتاده رحمه الله ويلي دي په تفسير کي ددې آيت يجعل بعضهم اولياً بعض المؤمن ولي المؤمن يعينه على الخير والكافر ولي الكافر ويبعثه على الشر انتهى.

**درويش وايي:** چي دا خبره خو په واقع کي صحيح ده لکن په آيت کي خو بعض الظالمين بعضاً دی، نو مؤمن راوړل په تفسير کي د آيت مذکوره بې ځايه خبره ده، بلکي صحيح تفسير هغه دی چي کلبي رحمه الله له ابي صالح رحمه الله او هغه له ابن عباس رضي الله عنه څخه نقل کړی دی چي هم مظهري او هم برسوي په روح البيان کي او هم آلوسي په روح المعاني کي او نورو ګڼ شمېر مفسرينو هم چي خدای تعالی چي ويو قوم ته د خير، نو متولي د امورو ددوی خيار يعني عدل پرسته په دوی کي وګرځوي، او چي اراده د شر يې ورته وسي يعني په سبب د ګنهو د دوی، نو متولي ددوی شرار ددوی يعني ظالمان وګرځوي، نو له ده څخه کسات په ظالم اخلي، ددې تفسير تائيد هم هغه حديث د ابن عباس رضي الله عنه کوي دی

وايي چي امير المؤمنين علي ﷺ چي ابن ملجم په خنجر وواهه چي د هغه تپ له سببه په شهادت ورسېدی، نو مسلمانانو ده ته وويل چي ته موږ ته خليفه وټاکه. نو علي ﷺ ورته وويل ان يعلم الله فيكم خيراً يولي عليكم خياركم. لکه هغه وخت چي عليه الصلوٰة والسلام وفات سو فعلم الله فينا خيراً فولي علينا ابابكر ﷺ، وقد ورد عمالكم اعمالكم. يعني عاملان ستاسي د امورو ستاسي عملونه دي يعني كه مو عملونه د خير وه عامل به مو هم د خير او عادل سړی وي او كه مو عملونه گنهونه وه عامل به مو بې زړه سوي په ظالم سړی وي.

**حكايت:** تاريخ وايي چي په يوه زمانه كي له يو مملكت څخه چي بادشاه يې ظالم ؤ، يو بل مملكت مجاور ته چي امام يې عادل ؤ ځني خلگ وركډه سوه چي د سلو په شاوخوا كي كورونه وه. د منقول اليها مملكت سلطان چي په خبر سو، نو دوی يې ورو غوښتل دربار ته او پوښتنه يې ځني وكړه چي تاسي ولي د خپل مملكت څخه زما مملكت ته راغلاست. دوی ورته وويل چي زموږ سلطان ډېر ظالم ؤ په موږ به يې كارونه كول او مزدوري به يې نه راكولې، او ستا په مملكت كي عدالت ؤ، نو له دې سببه موږ ستا مملكت ته هجرت وكړی. د ملك سلطان ورته وويل چي زه په تاسي يو امتحان كوم، نو يو څو غټې غټې د توتانو درختي يې ورو ښولې چي دا درختي به په ننه شپه كي كاږئ له بېخه څخه بېله دې چي بېلچه يا كولنگ يا اره پر استعمال كړئ كه مو نه وكښې صبا ټول به بنديانوم او عسكر يې پر مقرر كړه، خير دوی چي سره كښېنستل په خپلو كي يې سره وويل چي تر دې ظالم خو زموږ خپل د ملك ظالم ښه ؤ، ولي كه به يې كار راباندي كاوه آلات خو يې هم راكوله، نو يې مشوره پر دې وكړه چي دا توتان بېله آلاتو موږ څرنگه راكښلای سو بېله قدرته د خدای ﷻ دا كار امكان نه لري. نو نرانو او ښځو يې اودسونه تازه كړل د قرآن په تلاوت په ذكر او غيرهما ولوی دربار ته د قادر مطلق متوجه سوه او د ژړا او بغارو اور يې ولگاوه چي قادر متعال چي لا يعجز شئ دا توتان خو ته په خپل قدرت سره له بېخه وكاږې ټوله شپه پر دغه ډول روڼه كړه، كله چي سپېدې راچاودلې د توتانو خړپی سو ټوله پر

مځکه غځار سوه او دوی خوشحاله سوه چي لمر راوختنی نو عسکر دوی خپل شاه ته بوتله او د تو تانو د بېخ ختولو قصه يې تولـه شاه ته وکړه، نو شاه ورته وويل چي تاسي بير ته خپل ملک ته ولاړ سئ او تاسي خپل ځانونه وخدای ﷻ ته سم کړئ لکه بېګاه شپه نو هيڅ بادشاه به پر تاسي ابداً ظلم نه کوي خلګ يې بير ته وخپل وطن ته ستانه کړلـه، دا يوه تائيدي تاريخي قصه وه چي تائيد د قول د ابن عباس رضي الله عنه او تصديق د قول د علي رضي الله عنه يې وکړی، قال السعدي رحمه الله

خبر داری از خسران عجم — که کردند بر زير دستان ستم
نه آن شوکت وپادشاهی بماند — نه آن ظلم بروستايی بماند
مکن تاتوانی دل خلق ريش — وگر ميکنی ميکنی بيخ خويش

وفي المثنوي

چونکه بد کردی بترس ايمن مباش — زانکه تخمست وبرياند خداش
چند گاهی او بپو شاند که تا — آيدت زان بد پشيمانی وحيا
بارها پو شد پی اظهار فضل — باز گير د ازپی اظهار عدل
تاکه اين هردو صفت ظاهر شود — آن مبشر گردد اين منذر شود

**يٰمَعۡشَرَ الۡجِنِّ وَالۡاِنۡسِ اَلَمۡ يَاۡتِكُمۡ رُسُلٌ مِّنۡكُمۡ**

اې ډلي او جماعته د پېر انانو او د انسانانو آيا خدای ﷻ نه دي دراستولي وتاسي ته رسولان ستاسي له ډلي او جنس څخه، استفهام انکاري دی او نفي د نفي اثبات دی يعني دراستولي يې دي.

درويش وايي: چي دا آيت معركة الآراء دی په منځ کي د اهل نقل منشاء د اختلاف فقط دا يو ځای دی چي پر اناڅو د جنسه ودوی ته رسولان استولي دي لکه د انسانانو له جنسه وه انسانانو ته رسولان بالاتفاق ثابت دی او استيناس د جنس له هم جنس څخه ډېره ښکاره خبره ده، لـه امام ضحاک رحمه الله څخه چا پوښتنه وکړه چي رسل له جنسه د جن ددوی له جنسه وراستول سوی دی ده ورته وويل هو! او استدلال يې هم په دغه آيت ووايه.

**پوه سه**: چي جن او انس ټولـه مکلف دي پـه احکام الهيـه وو سره من العقائد المشترکة والاعمال المتفاوتة، لکن رسولان ددوی دا احتمال هم سته چي د هري ډلي له جنس څخه ددوی لکه جبرائيل وغيره رسل دی د ملائکه او ددوی له جنسه هم دی، او خوص البشر رسل دي د انسانانو او د جنس ددوی دی، او دا احتمال هم سته چي رسل د جن دي له غير جنس څخه ددوی وي يعني بشر دي وي.

**پوښتنه**: جن به له بشر څخه د دين زدکړه څرنګه کوي؟

**ځواب**: کېدای سي چي خواص د جن دي له رسل څخه د بشر استفاده او زدکړه وکړي، او دغه خواص الجن دي بيا رسل د رسل بشر وي وخپل قوم تـه يعني عفومي جنياتو ته، ددې دليل دادی چي اجماع الامة منعقده ده پر دې باندي چي نبينا محمد ﷺ رسول الثقلين دی او عليـه الصلوٰة والسلام هم دعوت د ايمان ودواړو ډلو ته کړی دی بالايمان بالله بالتوحيد واليوم الآخر وغير ذالک اما الى الانس فظاهر واما الى الجن فيدل عليه الاحاديث الصحيحة في البخاري وغيره.

**درويش وايي**: چي بعض علمأ چي دا وايي بعثت د سليمان عليه السلام هم عام وانس او جن ته و هغه غلطه ده، ولي چي سليمان عليه السلام لپاره د دعوت وجنياتو ته نه و مبعوث، بلکې جن يې په ضبط او ملک او پـه سياست سره مسخر وه چي پـه دوی به يې سخت سخت کارونه کول کما نطق بـه القرآن في موضوع آخر، او ضحاک رحمه الله چي وايي لامعنى للعدول عن ظاهر الآية يعني چي جن او انس دواړو تـه رسولان خدای ﷻ راستولي دي. فالجواب عنه چي آيت خو پـه دې مقيد نـه دی چي کل وقت وزمان او پر دې اجماع ده چي جن پـه خلقت تر انس مقدم وه، نو هغه وخت چي تعمير د ځمکي ددوی پـه لاس کي و ددوی مکلف هم وه، نو پـه هغـه وخت کي رسل ددوی ددوی له جنسـه و. فصح يـا معشـر الجن والانـس الآية" او وروسته تر بعثت د رسل البشر جن تـه ددوی له جنسه رسل نـه دی راغلي لکن چي جن يې د انس سره جمع کړه في الخطاب صح ذالک برسل البشر کما في قوله تعالى "يخرج منهمـا اللؤلؤ والمرجان مع ان المرجان يخرج لمن بحر الملح دون العذب، او بعض مفسران وايي چي رسل پـه آيت کريمه کي

وه رسل ته د رسل هم شامل دی. نو بعض جنیاتو چي به کلام د رسول البشر واوریدی هغه به یې تر خپل قومه رساوه.

**درویش وایي:** چي دا و پوره تحقیق ددې مبارک آیت چي له تفاسیرو متعدده وو څخه ماخوذ سو او ستاسي په حضور کي پېش سو. ولا یری هذا التحقیق مجتمعاً في تفسیر آخر غیر التفسیر الایوبي وماتوفیقي الا بالله ومع هذا الصواب في علم منزل الکتاب.

**يَقُصُّونَ عَلَيْكُمْ اٰيٰتِيْ وَيُنْذِرُوْنَكُمْ لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هٰذَا ۚ قَالُوْا شَهِدْنَا عَلٰٓى اَنْفُسِنَا**

**پوه سه:** چي جمله د "یقصون" صفت دی د "رسل" والمعنی یقرئون علیکم کتبي المنزلة. او تاسي یې بېرولي وای له ملاقات او راتګ څخه ددې ورځي، یعني د قیامت نو دوی به په جواب کي د استفهام انکاري الهي داسي ووایي چي موږ شاهدان یو پر خپلو ځانو چي موږ ته انبیاء خو راغلي وه او موږ د هغو تبلیغ رد کړی او کفر ته مو ادامه ورکړه.

**سوال:** په بل ځای کي د قرآن کریم راغلي دي والله ماکنا مشرکین؟

**ځواب:** دا اقرار دوی هلته کوي چي وروسته تر انکار جوارح او اعضاء ددوی پر کفر او شرک ددوی شاهدي اداء کړي کما جاء في جزء ۲۴ سورة فصلت شهد علیهم سمعهم وابصارهم وجلودهم بما کانوا یعلمون کذا قال مقاتل رحمه الله علیه.

**وَغَرَّتْهُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا وَشَهِدُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ اَنَّهُمْ كَانُوْا كٰفِرِيْنَ ﴿۱۳۰﴾**

او دوی خطایستلي او غولولي وه ژوند د دنیا حتٰی چي ایمان یې نه راوړی، او دوی شاهدي اداء کړه پر خپلو ځانو چي موږ کافران وو.

**پوه سه:** چي په دې آیت کي ذم دی ددوی پر اختیار د کفر په دنیا حتٰی چي نتیجه یې داسوه مجبور سوه وه اعتراف او اقرار سره په استحقاق کي د عذاب النار.

**ذٰلِكَ اَنْ لَّمْ يَكُنْ رَّبُّكَ مُهْلِكَ الْقُرٰى بِظُلْمٍ وَّاَهْلُهَا غٰفِلُوْنَ ﴿۱۳۱﴾**

**پوه سه:** چي "ذالک" خبر د مبتداء محذوفي دی ای الامر ذالک یعني ارسال الرسل او وروسته یې تعلیل د حکم دی. والمعنی چي دغه ارسال الرسل ددې سببه خدای جل جلاله کړی دی چي نه دی عادت د رب ستا هلاک کونکی د قریو

یعني اهل د قریو په ظلم سره او اهل د هغو قریو دي غافله وي چي رسول دي نه ور استولي چي دوی ته دعوت د ایمان او ترک الشرک ورته وکړي.

**یوه سه**: چي "یظلم" حال دی له فاعل څخه د مهلک یعني متلبساً بالظلم ای ظالماً. حسن بصري رحمه الله وايي چي خلگ په دنیا کي پر پینځه قسمه دي.

(۱) علماً چي ورثة الانبیاً دی.

(۲) زاهدان او مشائخ دي چي دوی دلائل د لاري د خدای جل جلاله دي.

(۳) غازیان دي چي توري د خدای جل جلاله دي.

(۴) تاجران دي چي دوی آمنان د خدای جل جلاله دي په مځکه کي.

(۵) پادشاهان او په بل عبارت رئیسان جمهور د هر مملکت دي. نو څه وخت چي عالم طامع وي او د مال جمع کونکی وي، نو په ده پسي به اقتدا خلگ او مسلمانان څرنگه وکړي، یو شاعر وايي.

شیخ چون مائل بمال آید مرید او معاش.. مائل دنیا هرگز مالک دیدار نیست

او چي زاهد په بل عبارت مرشد یا پیر چي راغب د جاه وجاهلال وي او درهم او دینار وي نو په هغه سره به خدای جل جلاله ته لار څرنگه پیدا کوي مریدان دده.

از زاهدان خشک طمع راهم دار مدار سیل ضعیف واصل دریا نمیشود

او چي غازیان یا مجاهدین ریاً کاره وي، وقد قیل المرائي لاعمل له" نو څوک به پر دښمن کافر فتح او بری مومي. بیت

عبادت باخلاص نیت نکوست وگرنه چي آید زمغز پوست

او تجاران چي خائنان، درواغ گویه وي، نو به څوک سړي امین وگرځوي

ع...... درین زمان مگر جبرئیل آمین باشد

او چي رئیس جمهور لېوه وي، نو څوک رمه او پسونه ساتي،.. ، ابیات

پادشاهی که طرح ظلم افگند پای د یوار خویش بکند

نکند جور پیشه سلطانی که نه یاید زگرگ چوپانی

په اخیر کي حسن بصري رحمه الله وايي والله ماهلک الناس الا العلماً الطامعون یعني ملایان چي د غوړمالی لکی ومقتدیانو ته ښوروي، والزهاد الراغبون او

هغه پیران چي راغب وي په جمع کولو کي د مال، او هغه غازیان مجاهدین چي ریا کاره وي، او هغه تاجران چي د خلکو سره خیانت کوي او هغه پادشاهان رئیسان جمهور چي ظالمان وي. قال الله تعالی وسیعلم والذین ظلموا ای منقلب ینقلبون.

وَلِكُلٍّ دَرَجٰتٌ مِّمَّا عَمِلُوْا ۚ

او هر مکلف ته درجي د قرب او بعد سته د خدای ﷻ سره.

**پوه سه:** چي اصل د مما من ما ؤ، نو نون په میم کي مدغم سو او مما ځني جوړ سو، او من سببي دی او ما مصدري دی یعني په سبب د اعمالو ددوی او یا کلمه د ما موصوله او عائد محذوف دی ای من الذي علموه.

وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ عَمَّا يَعْمَلُوْنَ ۝۱۳۲

او نه دی ستا خدای ﷻ اي محمد ﷺ غافله له هغه شیانو څخه چي دوی عمل کوي یعني هر سړي ته به موافق دده د عمل جزا ورکړي په ورځ د آخرت کي.

**پوه سه:** چي اصل د عما عن ما ؤ په دله ادغامه عما سو، او احتمال د ما مصدریه یا موصوله دلته هم سته کمامر عنقریب، او کلمه د با زائده ده لپاره د تاکید د نفي.

وَرَبُّكَ الْغَنِيُّ ذُو الرَّحْمَةِ ۗ

او خدای ستا اي محمد ﷺ د بندګانو او ددوی له عبادت څخه بې پروا دی او ارسال د رسولانو او انزال د کتابو او امر او نواهي د یو غرض لپاره نه دی چي وخدای ﷻ ته راجع وي بلکي ددې سببه دی چي خدای ﷻ خاوند د رحمت کامله دی پر بندګانو، نو لپاره د تکمیل د بندګانو یې اوامر او نواهي وراستولي دي او دا هم د خدای ﷻ د رحمت کامله یوه ځانګه ده چي بنده په ګناه ژر نه سي بلکي مهلت د توبې ورکوي.

اِنْ يَّشَاْ يُذْهِبْكُمْ وَيَسْتَخْلِفْ مِنْۢ بَعْدِكُمْ مَّا يَشَآءُ كَمَآ اَنْشَاَكُمْ مِّنْ ذُرِّيَّةِ قَوْمٍ اٰخَرِيْنَ ۝۱۳۳

که د خدای ﷻ اراده سي تاسي به هلاک کړي یا اهل مکه او په عوض کي ستاسي به هغه مخلوق چي د خدای ﷻ خوښه وي او تر تاسي فرمانبرداره د

خدای ﷻ وي پیدا کړي لکه تاسي چي يې پيدا کړي یاست اولاد د نورو قومو چي ستاسي آبا او اجداد وه لکن سره له قدرته پر ایجاد د قوم آخرین تاسي ته يې مهلت درکړی دی تر حما علیکم لعلکم تؤمنون.

**فائده**: له دې څخه دا معلومه سوه چي کلمه د ما مختص په غیر ذوی العقول پوري نه ده کما هو المشهور لان المراد من مایشا مکلفین. ولا تکلیف الا بالعقل کما لا یخفی.

إِنَّ مَا تُوعَدُونَ لَآتٍ ۖ وَمَا أَنتُم بِمُعْجِزِينَ

په تحقیق هغه څه چي د تاسي سره يې وعده من البعث والحساب والثواب والعقاب لاهلها، خامخواه راتلونکی دی بلاشبهة، او تاسي نه یاست عاجزه کونکي د خدای ﷻ له دغو کارو څخه اینما کنتم یاتوبکم الی یوم الحساب والمجازات.

قُلْ يَٰقَوْمِ ٱعْمَلُوا۟ عَلَىٰ مَكَانَتِكُمْ إِنِّى عَامِلٌ ۖ

**پوه سه**: چي "مکانة" یا مصدر میمي دی په معنی د تسلط پر یو شي. فالمعنی ووایه ای محمد ﷺ کفارو ته د مکې چي اې قومه زما، نواصلي یا قومي وه یا حذف سول او کسره د میم په دلیل "چي تاسي عمل کوی د شرک او معاصي وو په نهایت قدرت او استطاعت ستاسي زه عامل یم یعني "علی مکانتي "چي ثبات پر اسلام دی، او پر تبلیغ د امر ربي من التبلیغ الیکم بالتوحید او یا "مکانة" اسم ظرف دی لکن دلته مستعار دی دپاره د حال لکه یو سړی چي بل ته ووايي علی مکانتک ای اثبت علی حالک الذي انت علیه والمعنی ظاهر او پر دواړه تقدیره دا امر د تهدید چي موږ پېش رو ورته وایو ای اثبتوا ایها الکفار علی کفرکم وعداوتکم للرسول والقرآن المنزل علیه.

فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ مَن تَكُونُ لَهُۥ عَٰقِبَةُ ٱلدَّارِ ۗ إِنَّهُۥ لَا يُفْلِحُ ٱلظَّٰلِمُونَ

نو ژر دی چي تاسي به خبر سئ او د ر معلوم به سي هغه کسان چي دوی لره عاقبت حسنه په دار الآخرة والعاقبة للمتقین وهي لي ولمن علی دیني الاسلام لان للکفار في الدار الآخرة النار لیس الا ، په تحقیق سره چي فلاح او خلاصون نه سي

پیدا کولای ظالمان چي عبادت چي حق د خدای ﷻ دی دوی بې ځایه استعمال کړي يعني عبادت د بتانو كماهو معنى الظلم، حكاية عن بعض اهل الله چي دده کره بعض فقرا ورغله او دده په کور کي يې هيڅ متاع او کمبله نالي او بالښت وغيره نه وليدل، نو فقراو ورته وويل اما لكم شئ؟ هغه ورته وويل چي هو شيان ډېر لرم لكن زما دوه سرايونه دي يو دار امن دی او بل دار خوف دی، نو موږ تولو متاع فاخره په دار امن کي ايښدو يعني په دار آخرت کي چي هوري يو متاع نه ورکېږي، نو فقراو ورته وويل چي دا دارخو هم يو متاع غواړي هغه ورته وويل چي زه ددې په غم کي نه يم، ولي چي دا دار مستعار دی د يو څو ورځو لپاره انتهى.

**پوه سه:** چي بغوي ﷫ وايي چي مشركانو د مكې نيمه برخه د خپلو كښتو او د څهارپايانو او د نورو مالو به يې د خدای ﷻ لپاره ګرځول، او نيمه برخه به يې د بتانو لپاره ګرځول نو د خدای ﷻ برخه به يې پر مسكينانو او مېلمنو صرفوله، او د بتانو برخه به يې پر خادمانو صرفول، او يو شی چي به د بتانو له برخي څخه د خدای په برخه کي ولوېدی هغه به يې بير ته څني راواخستی دوی به ويل چي بتان محتاجه دي، او كه به د خدای ﷻ له برخي څخه يو شی د بتانو په برخه کي ګډ سو هغه به يې نه را اخستی ويل به يې خدای ﷻ خو غني دی، او كه به د بتانو له برخي څخه يو حيوان هلاک سو د خدای ﷻ له برخي څخه به يې جبيره ورکوله، او كه به د خدای ﷻ له برخي يو حيوان هلاک سو د بتانو له برخي څخه يې جبيره نه ورکوله فنزلت هذه الآية في ذالک.

وَجَعَلُوا لِلّٰهِ مِمَّا ذَرَاَ

او ګرځولي دي مشركانو د مكې خدای ﷻ لره بعض له شيانو څخه، نو چي خدای ﷻ هغه پيدا كړي دي، نو "من" د مما تبعيضي دی او ما موصوله دی عائد يې محذوف دی كما اشرنا اليه.

مِنَ الْحَرْثِ وَالْاَنْعَامِ نَصِيْبًا فَقَالُوْا هٰذَا لِلّٰهِ بِزَعْمِهِمْ وَهٰذَا لِشُرَكَآئِنَا

له كښت څخه او له چارپايانو څخه لكه پسونه، اوښان وغيره.

**پوه سه:** چي دلته دا جمله محذوفه ده ولشركائهم نصيباً لظهورها بالمقابلة

نو دوی وايي چي دا برخه د خدای ﷻ ده ددوی په زعم سره يعني خدای دوی په دې سره نه دي امر کړي.

او دا برخه زمونږ د شرکاؤ د چي اصنام ځني مراد دي چي مونږ يې د خدای ﷻ شريکان بولو په عبادت کي.

فَمَا كَانَ لِشُرَكَآئِهِمْ فَلَا يَصِلُ إِلَى اللَّهِ ۖ وَمَا كَانَ لِلَّهِ فَهُوَ يَصِلُ إِلَىٰ شُرَكَآئِهِمْ ۗ

او هغه چي د شرکاؤ ددوی ؤ هغه خدای ﷻ ته نه رسېدی يعني چي دوی به د خدای ﷻ د شي مصرف ګرځولی کمامر في شان النزول، هغه د شرکا برخه يې به هغه کي نه حسابول، او هغ شی چي به د خدای ﷻ لپاره ټاکلی و هغه به ددوی شرکاؤ ته رسېدی، يعني څه وخت چي به د شرکاؤ په مصارفو کي کمبود راغلی وای د خدای ﷻ له ماله به يې هغه پوره کاوه.

سَآءَ مَا يَحْكُمُونَ ﴿١٣٦﴾

بد دی دا حکم ددوی ولي چي خالق الحرث والانعام او د نور مخلوقات خدای ﷻ دی او دوی جمادات چي پر هيڅ شي قدرت نه لري شريک ګرځول بلکي په بعض احيانو کي به يې ترجيح ورکړه وجماداتو ته پر خالق السموات باندي کما صرح به الآية الكريمة فما كان الآية.

وَكَذَٰلِكَ زَيَّنَ لِكَثِيرٍ مِّنَ الْمُشْرِكِينَ قَتْلَ أَوْلَادِهِمْ شُرَكَآؤُهُمْ

يعني لکه چي ښائسته کړی سوي ؤ ددوی ته يعني کافرانو ته د مکي تقسيم د حرث او د انعام په منځ کي د خدای ﷻ او ددوی د بتانو. ښائسته کړی ؤ ډېرو ته د مشرکينو د مکي قتل د اولادو ددوی چي مراد ځني لوڼې دي چي يا به يې ژوندی په قبر کي اچولې او يا به يې د بتانو لپاره ذبح کولې شرکا ددوی "شركائهم" فاعل د "زين" دی.

**پوښتنه**: شرکا ددوی خو بتان جمادات وه نو هغو څرنګه قتل الاولاد ودوی ته ښائسته کاوه؟

**ځواب**: مجاهد رحمه الله وايي چي مراد دلته له شرکاؤ څخه شيطانان دي يعني

هغو به دا قتل ودوی ته ښائسته کاوه خیفة الفقر یعني له بېري د مسکنت.

**فائده**: شیطانانو ته یې شرکا ددوی وویل ددې سببه چي دوی به د هغو اطاعت کاوه په معاصیو کي د خدای ﷻ. او کلبي رحمه الله وایي چي مراد له شرکا څخه هغه خادمان د بتانو دي چي هغو به قتل الاولاد ودوی ته ښائسته کاوه په دې بهانه چي که ډېر اولاد وساتئ بیا تږلو ته دوږي. له کومي خوا ورکوئ نو ښه داده چي ښځینه اولاد دي وژنه. او بعض مشرکانو به دا نذر کاوه که زما لس زامن سوه زه به لسم ذبح کوم. لکه عبد المطلب چي د علیه الصلوٰة والسلام نیکه و. خوب ولیدی چي د زمزم څاه پراخه کړه او ښه یې جوړ کړه، نو عبدالمطلب چي شروع په وکړه په هغه وخت کي دده یو زوی حارث نومیده. نو هغه نذر وکړی چي که خدای ﷻ ماته لس زامن راکړه او ټوله ځوانان سوه زه به لسم زوی قرباني کوم د خدای ﷻ شپې او ورځي تېرېدلې عبد المطلب ته خدای ﷻ لس زامن وربوره کړه چي د لسم زوی نوم یې عبدالله و چي د علیه الصلوٰة والسلام پلار کېږي. لکن تاریخ دا نه ده په ګوته کړې چي دا لس زامن یې د یوې مایني وه او که له ډېرو مایښو څخه وه. نو څرنګه چي ټوله ځوانان سوه عبد المطلب خپل ځان نذر ته تیار کړی او په ټولو زامنو کي یې عبدالله ښه رنګ او سکه درلوده.

**درویش وایي**: چي ولي به نو عبدالله ښائسته نه و خو دده سره نور محمدي ملګری و. اخیر چي عبد المطلب د عبدالله د ذبح اراده وکړه، نو د قوم مشران ورته راټول سوه چي عبدالله به نه ذبح کوې، ده ورته وویل چي ما خو نذر ایښی دی. بعض راویان وایي سدنه وو یعني خادمانو ته د بتانو ورغله. او بعض وایي چي یوې ښځي ته چي عرافه یعني فال اچونکې وه ورغله. هغو یا هغې ورته وویل چي تاسي پر لسو اوښانو او عبدالله باندي قرعه کشي وکړئ نو که د اوښانو قرعه وختله نو معلومه سوه چي خدای ﷻ د عبدالله تر ذبح د اوښانو په ذبح راضي دی او که د عبدالله قرعه وختل لس اوښان نور پر زیات کړئ بیا قرعه کشي وکړئ ثم وثم الی ان ینتهی القرعة الی الابل. دوی دغسي وکړل خو اخیراً پر سلو اوښانو د اوښانو قرعه وختل. نو دوی په خپلو کي سره وویل چي د

عبد الله تر ذبح د خدای ﷻ د سلو اوښانو ذبح خوښه سوه، نو عبد المطلب سل اوښان خیرات کړه چي تقریباً د ټولو خلګو د مکې کافي سوه هرچا چي هر څومره غوښتي وړلې اجازه وه، په حدیث شریف کي راغلي دي علیه الصلوٰة والسلام وایي انا ابن الذبیحین یعني چي یو اسماعیل علیه السلام و چي د ابرهیم علیه السلام له ذبح څخه د جنت د پسه په ذبح سره خلاص سو، والقصة مشهورة، او بل د علیه الصلوٰة والسلام پلار عبد الله و چي د سلو اوښانو په ذبح له ذبح څخه خلاص سو.

## لِيُرْدُوهُمْ وَلِيَلْبِسُوا عَلَيْهِمْ دِينَهُمْ ط

**پوه سه**: چي لام لپاره د تعلیل د فعل سابق دی یعني تاچي شیطانان دوی هلاک کړي بالاغواً، او تاچي پردوی باندي ګډوډ کړي هغه دین چي دوی پر وه یعني دین د اسماعیل علیه السلام کذا قال ابن عباس رضي الله عنه.

## وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ مَا فَعَلُوهُ

او که د خدای ﷻ اراده وای چي دوی دي دا لبس ونه کړي او یا تذیین د شیطان دي نه کړي قبول او دوی اولادونه نه وژني او یا دي بتانو ته نصیب من الحرث والانعام ټاکلی کړي ور، نو دوی به دا مذکوره کارونه نه کولای یعني کل من تلک کان بمشیته تعالی واراته وان لم تکن برضاه ومحبته کذا قال علماً اهل السنة والجماعة.

## فَذَرْهُمْ وَمَا يَفْتَرُونَ ﴿١٣٧﴾

نو پرېږده ای محمد ﷺ دوی او هغه کار چي دوی پر خدای ﷻ درواغ ویل، ولي چي دوی به د مذکوره افعالو په باره کي ویله والله امرنا بهذا.

## وَقَالُوا هٰذِهٖٓ اَنْعَامٌ وَّحَرْثٌ حِجْرٌ ق

او کفارو د مکې به ویل چي دغه چي دوی به د خدای ﷻ لپاره او د بتانو لپاره یعني من الانعام الحرث کمامر دا هغه انعام او حرث دی چي حرام دی.

**پوه سه**: چي حجر مصدر په معنی د مفعول دی ای محجور ممنوع په دي لفظ کي مفرد تثنیه جمع مذکر او مونث ټول له برابر دي.

لَا يَطْعَمُهَآ اِلَّا مَنْ نَّشَآءُ بِزَعْمِهِمْ

نه به يې خوري مگر هغه كسان چې زموږ ورته اراده سي چې خادمان د بتانو وه نر نه ښځې، او برخه د خداى ﷻ به مسلمانه خوري كما مر "بزعمهم" په باطل گمان سره د دوى چې خداى ﷻ دوى په دې سره نه وه امر كړې بل كانوا يفترون على الله حيث قالوا والله امرنا بهذا.

وَاَنْعَامٌ حُرِّمَتْ ظُهُوْرُهَا

دوى به ويل چې دا انعام دي چې شاوي ددوى حرامي دي يعني څوك به نه پر سپريږي چې دوى به په نامه د سوائب او د بحائر او د حوامي بلله كما مر بيانه.

وَاَنْعَامٌ لَّا يَذْكُرُوْنَ اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهَا افْتِرَآءً عَلَيْهِ ۭ سَيَجْزِيْهِمْ بِمَا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ

او دا انعام دي چې د خداى ﷻ نوم به نه پر وايي په وخت كې د ذبح بلكې نومان د بتانو به پر واياست په وخت كې د ذبح. چې دوى به دروغ ويل پر خداى ﷻ ژر دى چې خداى ﷻ به جزا وركړي په سبب د افترا ددوى پر خداى ﷻ.

وَقَالُوْا مَا فِيْ بُطُوْنِ هٰذِهِ الْاَنْعَامِ خَالِصَةٌ لِّذُكُوْرِنَا وَمُحَرَّمٌ عَلٰٓى اَزْوَاجِنَا ۚ وَاِنْ يَّكُنْ مَّيْتَةً

او دوى به ويله چې دغه چې په نسونو كې ددې انعامو يعني حمل وي، يعني البحائر والسوائب يعني ژوندي پيدا سي خالص د نرانو زموږ او حرام دي پر ښځو زموږ.

**فائده**: خالصة معنى داده چې هيڅ چا گډون نه وي پكښې كړى، او كلمه د تا يې لپاره د مبالغې او تاكيد ده، او كسائي رحمه الله وايي چې د خالص او خالصة معنى يوه ده، او فرا رحمه الله وايي چې تا له جهته د تانيث د انعام ده لان ما في بطونها مثلها يعني هغه هم انعام دي.

**پوه سه**: چې بعض قرا "ميتة" په رفع سره وايي چې فاعل د يكن يې بولي او كان تامه بولي اى وجدت ميتة.

**پوښتنه**: مسند اليه خو پر دغه تقدير ميتة دى نو يكن ولې باليا وايي؟

**ځواب:** د میتة لفظ که څه هم مونث دی لکن ذکر او انثی دواړو ته شامل دی نو تذکیر د لفظ یکن بناً پر تغلیب دی د مذکر پر مونث باندي. او بعض قاریان بالتأ مونث وایي نظراً الی اللفظ ای لفظ المیتة او اکثر قاریان میتة په نصب سره وایي او یکن باقصه بولي او ضمیر د یکن راجع دی ما موصوله ته.

**فَهُمْ فِيهِ شُرَكَاءُ ۚ سَيَجْزِيهِمْ وَصْفَهُمْ ۚ إِنَّهُ حَكِيمٌ عَلِيمٌ**

نو دوی نر او ښځي په خوراک کي سره برابر دي ژر دی چي. خدای ﷻ به جزا ورکړي دوی ته د وصف ددوی.

**سوال:** ضمیر د فیه خو راجع دی و میتة، نو د تذکیر وجه یې څه ده؟

**ځواب:** د میتة په لفظ کي نر او ښځه سره برابر دي.

**بوه سه:** چي وصفهم منصوب دی بنزع الخافظ ای بوصفهم مراد له وصف څخه ددوی دغه عقائد فاسده دي د دوی او بیانات باطله ددوی دي.

**قَدْ خَسِرَ الَّذِينَ قَتَلُوا أَوْلَادَهُمْ سَفَهًا بِغَيْرِ عِلْمٍ**

په تحقیق ډېر تاوان کوي چي وژني اولاد خپل له بې عقلیه. بغوی رحمه الله وایي چي دا آیت نازل دی په شان کي د قوم د ربیعه او مضر، او بعضي نور عرب چي دوی به لوڼې ژوندی په خاورو کي دفن کولې د مسکنت له ېېري او یا له ېېري ددې چي څوک به یې په سبې کي راڅخه بوزي او یا له دې سببه چي دا نجوني چي پېغلي سي مرونه غواړي او د لور مېره دوی د ځان عار باله.

**درویش وایي:** چي په باب کي د لوڼو د ژوندي ښخولو یوه دلسوزه قصه واورئ چي یو سړی له اصحابو رضي الله عنهم څخه د علیه الصلوٰة والسلام په حضور کي به همېشه غمجن او دېغ ناست و. نو علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل "مالک تکون محزوناً" څه سبب دی تا لره چي همېشه خوابدی او غمجن یې؟ نو هغه سړي ورته وویل چي ما یوه لور ژوندی په خاورو کي پټه کړې ده زه ډېر ډېرم چي سره د اسلامه ماته تر هغه گناه خدای ﷻ راتېر نه سي که څه هم گناه خو د جاهلیت په وخت کي وه. علیه الصلوٰة والسلام چي د هغه وژولو قصه ماته وکړه، نو هغه سړي ورته وویل چي زه په جاهلیت کي له هغو کسانو څخه وم چي

لوښې به يې ژوندی، تر خاورو لاندې کولې یو وخت مي يوه لور پيدا سوه، ما ښې مي ډېرې زارۍ راته وکړې چي دا يوه لور خو راپرېږده مه يې وژنه، نو زما زړه پر وسو هغه لور مي ورپرېښوله حتی چي لويه سوه بلوغ ته ورسېدله، نو ډېره ښائسته پېغله ځنې وختله، نو خلګو به مرکې راته کولې اخير ماته د جاهلیت غیرت ودرېدی يعني چي زما لور تر بل چا لاندې پرته وي، نو ما ښې مي راته وویل چي زه د بعضي قريبانو کره ځم او دا نجلۍ هم ډېره ديغه ده زما سره به زما د قريبانو کره ولاړه سي، نو مور يې ډېر ښه کالي په واغستل او زېور يې هم ور په غاړه کړه، او مور يې ډېرې زارۍ راته وکړې او ډېره سخته وعده يې راڅخه واخستله چي دا لور رامړه نه کړې، نو ما يو څاه (کوهی) نوښاني کړی چي دغه څاه ته به يې اچوي، نو ما چي دا څاه ته وکتل نجلۍ پوه سوه چي دا څاه ته مي وراچوي او وژني مي، نو زه يې تر کالو ټینګ ونیولم او په بغارو سوه او وه يې ويله ای شيءَ ترید بي، ته په ما څه کوې؟ بيا زما زړه پر وسو، بیرته مي هغه غیرت په ياد سو، نو بيا مي وڅاه ته وکتل بيا زه دې په غېږ کي ټینګ کړم، او راته وه يې ويل چي زه د مور امانت يم نو ته څرنګه ما وژنې، بيا مي يو وار وڅاه ته وکتل او بيا مي ددې بغارو ته وکتل نو رحم به مي راغلی، اخير شیطان غلبه راباندې وکړه، نو مي په غېږ کي واخستل او سره د بغارو مي وڅاه ته ور وغورځول، بيا به يې له څاه څخه نارې راباندې وهلې چي ما دروکاړه چي زه مرمه، نو يو ګړی ورته ولاړوم چي ددې آواز ورک سو، نو زه پوه سوم چي دا مړه سوه نو ځني را رهي سوم، نو رسول الله ﷺ ډېري اوښکي توی کړې، او هغه سړي ته يې وويل که د خدای ﷻ امر سوی وای چي د جاهليت قصاص هم اخله ما به تا ته سخت عذاب درکړی وای لکن څه وکړم چي اسلام يجب ماقبله.

**درويش وايي:** چي حکايت پر غلطو ډولو نقل سوی دی او دا مذکوره قصه تر ټولو نورو اخصره وه.

**وَحَرَّمُوا مَا رَزَقَهُمُ اللَّهُ افْتِرَاءً عَلَى اللَّهِ ۚ قَدْ ضَلُّوا وَمَا كَانُوا مُهْتَدِينَ ﴿١٤٠﴾**

او دوی حرام ګرځولي وه يعني کفارو د مکې پر ځانو باندې هغه شيان چي

دوی ته په رزق ورکړي وه خدای پاک یعني البحیرة او سائبة او وصیله او حام چي دوی درواغ ویل پر خدای ﷻ چي نسبت ددې حرمت یې وخدای ﷻ ته کاوه.

**پوه سه**: چي نصب د افتراً په سبب د مفعول له والي دی او یا مفعول مطلق دی د فعل محذوف یعني یفترون علی الله افتراءً او یا حال دی نو مصدر په معنی د فاعل دی ای مفترین علی الله، نو په تحقیق دوی گمراهان وه او نه وه دوی پر لار د حق برابر.

**پوه سه**: چي جمله د ما کانوا مهتدین تاکید دی د قد ضلوا.

**وَهُوَ الَّذِیْٓ اَنْشَاَ جَنّٰتٍ مَّعْرُوْشٰتٍ وَّغَیْرَ مَعْرُوْشٰتٍ**

او خدای ﷻ هغه ذات دی چي ایجاد او پیدا کړي یې دي باغونه چي پر مخ د مځکي پراته او اوار وي لکه د انگورو تاکان چي منا یې نه وي ورته جوړه کړې او کدو، بادرنگ، چمبرخیال، هندوانه وغیرذالک او غیر معروشات چي ساق او تنه ولاړ وي لکه انار، زردالو، خورما، زیتون وغیره.

**وَّالنَّخْلَ وَالزَّرْعَ مُخْتَلِفًا اُكُلُهٗ**

او خورما او کښت یا د غنمو یا د ورجو الی غیر ذلاک په داسي حال کي چي سره مختلفي دي میوې ددوی په رنگ او په خوند او په هیئت کي.

**پوه سه**: چي دا تخصیص بعد التعمیم دی، ولي چي خورما غیر معروش ده او کښت معروش او غیر معروش دواړه پکښې دي، او ضمیر د اکله راجع دی وتوله ماقبل ته په تاویل د کل واحد منها.

**وَالرُّمَّانَ مُتَشَابِهًا وَّغَیْرَ مُتَشَابِهٍ ؕ**

او د زیتون او انارو باغونه چي بعض افراد یې سره متشابه وي یو د بل سره په رنگ او خوند او په هیئت کي یعني بعض افراد لکه دوه انار چي دواړه په یوه مقدار وي او دواړه خواږه وي او غیر متشابه وي بعض افراد یې لکه غټ انار او کوچنی غټ انار او تریو الی غیر ذالک من الاختلاف، وهذا دلیل قدرته التامة وقس علی الرمان الزیتون في جمیع ماذکرنا، په حدیث شریف کي راغلي دي که تاسي چي انار خوړي نولي د انار داني خوړئ چي په هر انار کي یوه دانه د جنت سته.

كُلُوا۟ مِن ثَمَرِهِۦٓ إِذَآ أَثْمَرَ وَءَاتُوا۟ حَقَّهُۥ يَوْمَ حَصَادِهِۦ ۖ

او تاسي خوراک له مېوې څخه کوئ، او ورکوئ حق د مېوو په ورځ کې د پرېکولو د هغو مېوو.

**يوه سه**: چي ضمير د "ثمره" راجع دى په تاويل د كل واحد تولو اشجارو ته شامل دى چي مېوه يې وكړه يعني كه څه هم پخه نه وي لكه د انگورو غوره وغيره من ثمرات الاشجار المذكورة.

**يوه سه**: چي په دې حق كي اختلاف دى ابن عباس ﷺ او نور گڼ شمېر تابعين وايي چي مراد دي له حقه څخه زكوٰة مفروضه وي چي چي عشر يا نصف العشر دى دوى وايي چي امر د آتوا اليپاره د وجوب دى او د لفظ حق غالب استعمال هم په واجب كي دى وقد اجمع الامة انه لا واجب في المال ثمار اكان او غير ذالك الا الزكوة، نو پر دې تقدير دا آيت مدني دى لان الزكوٰة فرضت في المدينة كما روى البخاري ومسلم چي يو سړى راغلى د عليه الصلوٰة والسلام څخه يې سوال وكړى د اسلام په باره كي يعني د خصال د اسلام، نو عليه الصلوٰة والسلام ورته وويل چي پينځه لمونځونه دي په شپه او ورځ كي. او يوه مياشت روژه ده او زكوٰة دى، نو هغه سړي ورته وويل هل علي غيرها قال لا الا ان تطوع.

**مسئله**: نو دا آيت دليل د قول د ابي حنيفة رحمه الله چي په ټولو مېوو كي زكوٰة واجب دي خلافاً لمالک والشافعي چي دوى وايي چي هغه مېوې چي قوت نه په حاصلېږي لكه انار اينځر شوتالو وغيره په هغه كي زكوٰة نشته، او بعض صحابه او تابعين وايي چي دا آيت مكي دي او زكوٰة په مدينه منوره كي فرض سوى دى، نو له دې حقه مراد غير الزكوٰة دى، نو بعض وايي چي مراد له دې حقه څخه وړې د غنمو دي چي خلگ لو وكړي او يو څه وړې پر مځكه څني توى سي، نو د هغه له ټولو لو څخه دي څوک نه منع كوي دا يې حق دى، او بعض وايي چي مدينه والو چي به خورما ورسېدله هر څا به يو وا ښكى د خورما راوړى او په مسجد كي به يې وځړاوه، نو چي يو مسكين به راغلى په لكړه به يې وواهه هغه پخې پخې دانې به څني راتوى سوې هغه به يې وخوړلې دا قول د مجاهد رحمه الله

دی او ددې قول تائید هغه حديث د فاطمې بنت قيس ﷺ کوي. دا وايي چې عليه الصلوٰة والسلام وويل ان في المال لحقاً سوی الزکوٰة.

**وَلَا تُسْرِفُوٓا۟ ۚ إِنَّهُۥ لَا يُحِبُّ ٱلْمُسْرِفِينَ**

او تاسي اسراف مه کوئ په صدقاتو کي يعني النفلية، ولي د خدای ﷻ نه دي خوښ اسراف کونکي.

**پوه سه:** چي اسراف تجاوز دی تر حد په هر فعل کي چي وي كذا في الصحاح او اسراف ضد د قصد دی يعني ميانه روي كذا في القاموس. او بيضاوي وايي چي دا آيت مثل د هغه آيت دی خطاباً للنبي ﷺ "ولا تبسطها كل البسط" ابن عباس ﷺ وايي چي ثابت بن قيس بن شماس ﷺ د پينځو سوو (۵۰۰) درختو خورما ميوه کړه او په يوه ورځ يې ټوله خيرات کړه او کورته يې هيڅ شی را نه وړی فانزل الله تعالى هذه الآية. وقد قال رسول الله ﷺ وابدأ بمن تعول. او بغوي له سدي څخه روايت کړی دی چي مه ورکوئ خپل ټوله مالونه په خيرات کي چي په اخير کي به خپله فقيران سئ او فقر ته ار سئ. او بعض مفسرين وايي چي دا خطاب دی وه بادشاهانو ته چي تاسي له رعائيت څخه مه غواړئ بالا تر حد شرعي چي تاسي په امر سوي ياست يعني د بيت المال لپاره.

**درويش وايي:** چي دا تفسير له مقام سره هيڅ مناسبت نه لري كما لا يخفى.

**مسئله:** اتفاق الكل هلته اسراف منهي عنه دی چي د خدای ﷻ نه دی خوښ چي عيال ته او هغه چاته چي حق د نفقي پر ده لري هيڅ شی نه پرېږدي مثلاً د سري ذوی القربی يا ورونه يا خوندي يا اخوال يا خالات فقيران او مسکينان وي دی هغو ته شی نه ورکوي او پرديو مسکينانو ته ټوله مال ورکړي دا سړی نو ريا کاري کوي، نو داسي کول د خدای ﷻ نه دي خوښ.

**درويش وايي:** چي بعض مفسرينو ضد او نقيض روايتونه راوړي چي څه يې مراد دی والله اعلم.

**وَمِنَ ٱلْأَنْعَـٰمِ حَمُولَةً وَفَرْشًا ۚ**

**پوه سه:** چي من الانعام متعلق دی په فعل مقدر سره ای انشأ من آه او حمولة

مفعول به دی د انشا او حمولہ هغه حیوان ته ویل کیږي چي بار پر ورل کیږي لکه اوښ، غویی وغیره، او فرش هغه حیوان ته وایي چي بار نه پر ورل کیږي لکه فرش مځکي ته نژدې دی لکه چونګیان د اوښانو یا ګیلګیان د غویو یا پسونه یا بزې.

## كُلُوا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ

تاسي خوراک کوئ د امر اباحت یعني درته مباح دي که یې خورئ.

**پوه سه**: چي "من" په مما کي تبعیضي دی ولي چي تو له اجزاً د حلال اشیاً او حیوانا تو خو نه خوړل کیږي له هډوکي، ذکر، فرج مثلاً چي تا ته یې په رزق کي درکړي دي خدای ﷻ دا امتنان د خدای ﷻ پر بندګانو باندي.

## وَلَا تَتَّبِعُوا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ ۚ اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ﴿۱۴۲﴾

او تاسي متابعت مه کوئ د ګامو د شیطان یعني د لارو د شیطان او د وسوسو دده چي یا حلال شی حرام بولئ لکه سائبه او وصیله وغیر ذالک چي ځان ته حرام بللہ، او یا یې حرام شی ځان ته حلال بلی لکه ماذبح علی اسم الصنم چي مشرکانو به ځان ته حلال بالہ، ولي چي شیطان ستاسي دښمن دی او بین العداوت دی.

**پوه سه**: چي "انه لکم" علت دی د لاتتبعوا کما هو ظاهر.

## ثَمٰنِيَةَ اَزْوَاجٍ ۚ

دا بدل دی له حمولة وفرشاً څخه یا مفعول د کلوا دی. ولا تتبعوا پر دې تقدیر جمله معترضه ده او زوج په لغت کي هغه ته وایي چي دده سره بل دده له جنس څخه موجود وي او مجموع دوو متجانسینو ته هم وایي او مراد دلته اوله معنی ده، ولي چي پر دوهمه معنا ثمانیة ازواج نه پوره کیږي کما لایخفی.

## مِنَ الضَّاْنِ اثْنَيْنِ وَمِنَ الْمَعْزِ اثْنَيْنِ ۭ

د پسو په جنس کي دوه زوجه دي نر چي په عربي یې کبش بولي، او ښځه چي په عربي یې نعجه بولي. او په پښتو کي نر ته پسه وایي او ښځي ته مېږ وایي. او د بزو له جنسه هم دوه زوجه سته، بغوي رحمه الله وایي چي معز جمع ده او مفرد له لفظ

ځخه نه لري او صحیح داده چي معز په سکون د عین جمع د ماعز ده چي په پښتو کي نر غټ وزګري ته وايي چي وښځي ته بزه وايي. او که کوچني وي سېرلی یا سېرلکی ورته وايي.

قُلْ ءَالذَّكَرَيْنِ حَرَّمَ أَمِ الْأُنثَيَيْنِ

ته ورته ووایه یا محمد ﷺ کفارو ته چي خدای ﷻ ددغو دوو جنسو نر حرام ګرځولي دی، او که یې ښځي حرام کړي دي.

**درویش وايي:** چي اصل د الذکرین االذکرین ؤ چي اول همزه د استفهام او دوهم د وصل دی او هر ځای چي دا دوه همزه سره یو ځای سي همزه د وصل په الف بدلېږي نحو الله امرک بهذا کما ورد في حدیث البخاري.

أَمَّا اشْتَمَلَتْ عَلَيْهِ أَرْحَامُ الْأُنثَيَيْنِ ۖ نَبِّئُونِي بِعِلْمٍ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ

او هغه حیوان خدای ﷻ حرام کړی دی چي پر هغه مشتمل رحمونه د ښځو ددې دوو قسمو چي ضان او معز دي، تاسي ما خبر کړئ په یو امر معلوم د خدای ﷻ چي هغه دلالت کوي پر تحریم د ما تحرمونه که تاسي صادق یاست په تحریم مذکور کي.

وَمِنَ الْإِبِلِ اثْنَيْنِ وَمِنَ الْبَقَرِ اثْنَيْنِ ۗ قُلْ
ءَالذَّكَرَيْنِ حَرَّمَ أَمِ الْأُنثَيَيْنِ أَمَّا اشْتَمَلَتْ عَلَيْهِ أَرْحَامُ الْأُنثَيَيْنِ ۖ

**درویش وايي:** چي ددې آیت ترجمه بعینه لکه د ماقبل فلاحاجة الی الذکر وحاصل الآیات المذکورة انه لیس شئ من هذه الازواج الثمانیة بحرام کما زعمتم.

**فائده:** ددوی یعني د قریشو د کفارو لکه وړاندي چي تېره سوه ګمان دا ؤ هذه انعام حرمت ای حجر، او دا به یې هم ویله چي په بطونو کي ددوی انعام وي خاص په نرو پوري زموږ دي او حرام دي زموږ پر ښځو باندي. او بحیره او سائبه او وصیله یې هم حرام ګڼل بعضها علی النسا فقط وبعضها علی الرجال والنسا جمیعاً.

**درویش وايي:** چي په حدیث شریف کي راغلي دي چي اسلام چي منځ ته راغلی او ددې ثمانیة ازواج حکم د تحلیل یې اعلان کړی کمامر، نو مالک بن

عوف چي يو مشرک ؤ راغلی و علیه الصلوٰة والسلام ته ودرېدی او ورته وه یې
ویل یا محمد موږ ته دا خبره رسېدلې ده چي ته هغه شیان حرام بولي چي زموږ
پلرو او نیکه ګانو به کوله؟ نو علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل چي تاسي بعض
اصناف د نعم حرام ګڼلي دي بې له کوم دلیله او خدای ﷻ دا اته صنفه لپاره د
خوراک او نفع اخستلو پیدا کړي دي، نو دغه تحریم چي تاسي یې وایاست
یعني بحیره او وصیله او غیرهما له څه درکه دي که د نروالي له سببه یې وایاست
نو باید ټوله نر حرام وبولئ. او که یې په سبب د ښځي والي وایاست باید ټولي
ښځي حرامي وبولئ او که یې له سببه د اشتمال رحم الانثی وایاست ینبغي ان
یحرم الکل یعني من الذکر والانثی، ولي چي ذکر او انثی څو دواړه له رحم څخه
پیدا کېږي، نو تحریم د یو ازي ولد خامس یا سابع او یا تحریم د بعض دون
البعض له څه درکه تاسي وایاست، نو مالک مذکور حیران پاته سو، نو علیه
الصلوٰة والسلام ورته وویل مالک څه سبب تالره دی چي خبري نه کوې مالک
مذکور ورته وویل چي ته خبري کوه زه یې اورم.

أَمْ كُنتُمْ شُهَدَآءَ إِذْ وَصَّىٰكُمُ ٱللَّهُ بِهَٰذَا ۚ فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ ٱفْتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ كَذِبًا

آیا واست تاسي اې اهل مکه "شهداً" جمع د شاهد ده په معنی د حاضر یعني
تاسي حاضر واست هغه وخت چي خدای ﷻ وصیت کاوه یعني حکم یې کاوه په
دغه تحریم چي تاسي وایاست، ولي تاسي خو ایمان پر یو نبي او یا کتاب نه لرئ او
نه هم خپل کتاب لرئ، نو تاسي بله لار د معرفت نه لرئ بېله اورېدلو له خدای ﷻ
څخه "ام" منقطعه دی په معنی د بل او کلمه د بل للانتقال والهمزة للانکار، نو
څوک دی لوی ظالم یعني نسته لان الاستفهام للانکار تر هغه چا چي په قصده
ووایه دروغ پر خدای ﷻ باندي لکه چي تاسي اهل مکه چي د مذکوره تحلیل او
تحریم نسبت وخدای ﷻ ته کوئ.

لِّيُضِلَّ ٱلنَّاسَ بِغَيْرِ عِلْمٍ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿١٤٤﴾

چي دوی ګمراه کړي دي خلګ یعني له لارې څخه د خدای ﷻ بېله علمه بلکي
په تقلید سره د آبا او اجداد، په تحقیق خدای پاک هدایت نه کوي و هغه قوم ته چي

ظالمان وي، په حديث شريف كي راغلي دي چي كفارو د مكي و عليه الصلوة والسلام ته وويل فما المحرم فنزل هذه الآية.

قُلْ لَّآ اَجِدُ فِیْ مَاۤ اُوْحِیَ اِلَیَّ مُحَرَّمًا عَلٰی طَاعِمٍ یَّطْعَمُهٗۤ

ته ورته ووايه زه نه سم پيدا كولاى په هغه شي چي ماته يې وحي كړه سوي دي، حرام پر خوړونكي باندي چي خوري يې، مګر نه مرداره وه يعني ذبح شرعي يې نه وه سوې "علی" په "محرماً" پوري متعلق دی.

**پوه سه:** چي د ما اوحي اليه څخه يوازي قرآن نه دی مراد بلكې مراد معنی عامه ده كه قرآن وي او كه وحي خفي وي لكه حديث نبوي والمقصود ان التحليل والتحريم نه پېژندل كېږي په هوى نفسي لكه كفار د مكي به كاوه. بلكې ددې پېژندل په وحي سره كېږي يا جلي يا خفي.

**پوه سه:** چي مفسران پر دې رايه دي چي "محرماً" وصف د موصوف دی ای طعاماً محرماً، نو چونكه سركوزی هم طعام دی، نو استثناً يې د محرماً څخه استثناً متصل ده.

**درویش وایي:** چي اكثره قرأ پر دې دي چي يكون په صيغه د غائب مذكر ده او ضمير يې چي پټ مستتر دی راجع دی وطعام مقدر ته كما قلنا او ميتة خبر د يكون دی، او ابن عامر رحمه الله تكون په صيغه د مؤنث وايي او ميتة په رفع سره وايي فاعل د تكون يې بولي او كان تامه بولي او ابن كثير يې تكون په تانيث وايي په سبب ددې چي خبر يې مؤنث دی، او ميتة په نصب وايي خبر د تكون يې بولي او اسم د تكون ضمير راجع دی وطعاما ته بولي.

**فائده:** مجموع جمله استثناً په محل كي د نصب ده علی الحالية والتقدير لا اجد طعاماً محرماً في حال من الاحوال الا حال كونه ميتة.

**درویش وایي:** چي ميتة هغه حيوان دی چي بېله صنع د صانع په خپله مر سي چي مور يې په پښتو كي مرداره بولو، نو موقوذة چي په لرګي يې ووهي او مر سي او مترديه چي له لوړ ځايه راولوېږي او مر سي، او نطيحه چي يو حيوان بل حيوان په ښكر ووهي او هغه مر سي او چي درنده يې وداړي او مر سي تولله له

میتة څخه خارج دي، ولي څو تولـه پـه خپلـه نـه دي مـړه سـوي بلکې صنع دخل پکښې لري کما لایخفی. او علامه بغدادﷺ په جلد ۸ صفحه ۴۴ کې وایي چې میتة هغه حیوان دی چې ذبح یې شرعي نه وي کړل سوې ثم قال فیدخل فیه المنخنقة والموقوذة وغیرهما.

**درویش وايي**: چې رایه او تفسیر د مظهريﷺ صحیح دی. ولي چې پـه سورت مائده کې پـه دې آیت "حرمت علیکم المیتة آه" دا نور یعني موقوذة وغیره پر عطف سوي دي والعطف یقتضی التغایر. او حرمت د موقوذه وغیرها په نورو آیتو سره ثابت دی. او بل دلیل د صحت د تفسیر مظهري پـه تعریف کې د میتة دادی چې کافرانو او مشرکانو د مکې بـه علیـه الصلوٰة والسـلام تـه ویل چې ته وایه اې محمده چې ته یې مړ کړې یعني ذبح یې کړې هغه حلال دی. او یا ښکاري سپی یا ښکاري تعلیم یافته باز وغیره یې مړ کړي هغه حلال دی او چې خدای ﷻ یې مړ کړي ته وایه چې هغه حرام دی او ددوی مراد ځني میتة وه چې په خدایي مرگ حیوان مړ سي.

إِلَّا أَن يَكُونَ مَيْتَةً أَوْ دَمًا مَّسْفُوحًا

او یا وینې جاري چې له حیوان څخه په وخت کې د ذبح له ښارگو څخه ووزي د هغو وینو خوراک هم حرام دی.

**مسئله**: کبد یعني اینه او توری که څه هم وینې دي لکن چونکه جامد وینې دي نو په شرع کې یې خوراک حلال گڼل سوی دی. او چې په غوښو کې د حیوان وینې وي هغه هم حلالې دي ولي چې هغه جاري وینې نه دي.

أَوْ لَحْمَ خِنزِيرٍ فَإِنَّهُ رِجْسٌ أَوْ فِسْقًا أُهِلَّ لِغَيْرِ اللَّهِ بِهِ

او یا غوښې وي د سرکوزي، ولي چې سرکوزی مردار دی، نو له دې آیت څخه دا ثابته سوه چې سرکوزی نجس العین دی. نو انتفاع د سرکوزي پـه هیڅ جز تر وېښتانو پورې نه ده روا، او نه یې بیع د یو اجزاء ده روا ده.

**پوهـه**: چې "اوفسقا" معطوف دی پر لحم خنزیر او خدای ﷻ دې ذبیحې ته

چي په وخت کي د ذبح نوم د بت پر واخستل سي نفس فسق وبالغ لتوغله في الفسق او معنی د اهلال رفع د صوت ده په نېز د ذبح نو که په وخت کي د ذبح نوم د غیر الله پر ویل سو هغه مردار دی.

**فائده:** که یو سړی ددې لپاره چي ثواب ددې مذبوح دې روح انور ته د علیه الصلوٰة والسلام او یا وه روح ته بل ولي الله او یا وه روح ته د مور او پلار ورسېږي لکن په وخت کي د ذبح صرف بسم الله الله اکبر پر ووایي دا ذبیحه ما اهل لغیر الله نه ده کما یزعمه الفرق الضالة المعلومة الحال باسماً مختلفة الذین لیس لهم علم بالقرآن الکریم وهم یزعمون انهم من علماً القرآن الکریم.

**درویش وایي:**

روز محشر که حاضر میشود تصویر جانان دربغل
من نېز حاضر میشوم تفسیر قرآن دربغل

اللهم وفقني لاتمام تفسیر القرآن الی اخیره بالخیر والعافیة والصحة والسلامة واجعله ذخراً في یوم القیامة وصدقة جاریة الی یوم القیامة امین.

**تنبیه:** درویش وایي: چي یو قصد د زړه دی او یو ذکر د ژبي دی د ذبح په باره کي قصد ته د زړه اعتبار نسته بلکې اعتبار ذکر لره لساني دی مثلاً د یو سړي په زړه کي قصد او نیت ددې وي چي زه دا حیوان خاص د الله تعالی لپاره ذبح کوم لکن په وخت کي د ذبح بېله هېري بلکې عمداً بسم الله الله اکبر وه نه وایي دا ذبیحه مرداره ده بالاجماع ویدل علیه قوله تعالی ولاتاکلوا ممالم یذکر الله علیه نو دغه رنګه که د سړي قصد او نیت وي بلکې که په خوله هم ووایي چي دا حیوان زه د وصول د ثواب وروح انور ته د علیه الصلوٰة والسلام او یا د بل ولي الله د روح د ثواب لپاره ذبح کوم لکن چي ځای د ذبح راسي فقط ووایي اسم الله الله اکبر دا حیوان هم حلال صرف. کراهت هم نسته پکښي لان الشرط الذي یحل به الذبیحة هو الذکر اللساني وقد جابه. او په حدیث شریفه وو کي راغلي دي باسناد صحیحة ان رسول اللهﷺ کان یضحی بکبشین ویقول هذالي ویذکر اسمه المبارک وهذا لمن لم یضحی من امتي ثم یذبحها فقد ثبت الذبح لغیره

مع ذكره لكن قبل امرار السكين علي رقبة المذبوح وعند الامرار يقول في كليها بسم الله الله اكبر.

**درويش وايي**: چي دا بيان ما لپاره د عمومي ورونو وكړي چي د هغو ضاله وو ډلو په خبرو خطانه وزي لا لاقناع هؤلاء المضلين. علما گفته اند.

آن كس كه نداند وبداند كه بداند — درجهل مركب ابد الدهر بماند
وآن كس كه نداند وبداند كه نداند — اواسپ خود از گنبد فيرژه جهاند

**پوښتنه**: دې آيت مبارک خو محرمات حصر كړه په څلور كي (۱) الميتة (۲) الدم المسفوح (۳) لحم الخنزير (۴) والذي احل لغير الله به او سره ددې چي محرمات خو نور هم ستة لكه سباع البهائم وغيرها؟

**ځواب**: علامه بغدادي رحمه الله په روح المعاني ج۸ ص۴۵ كي وايي چي معنى ددې آيت داده لا اجد محرماً مما كان اهل الجاهلية يحرمونه من البحائر والسوائب وغيرها لكن اجد الاربعة محرمة ولا دلالة فيها على حصر المحرمات في هذه الاربعة فالاستثناء منقطع والاستثناء المنقطع ليس كالمتصل في الحصر قطب الدين رازي رحمه الله دا جواب صحيح نه بولي ولي چي په سورة بقره او سورة النحل كي خداى پاک داسي وايي انما حرم عليكم الميتة والدم ولحم الخنزير وما احل لغير الله به. او كلمه د "انما" لپاره د حصر ده بالاجماع. او بل جواب د اشكال مذكور يې دا وركړه سوى دى چي دا آيت خو پردې دلالت كوي چي عليه الصلوٰة والسلام نه دي پيدا كړي فيما اوحي اليه الى تلک الغاية محرماً غير مانص عليه في هذه الآية وذالک لاينافي التحرمي في شئ آخر بعد هذه الآية. دا جواب قاضي بيضاوي رحمه الله وركړى دى وروسته يې ويلي دي چي انه لايلزم نسخ القرآن بالاخبار الاحاد.

**درويش وايي**: چي بعض علماً وايي چي تحريم پر دې څلورو شيانو حصر دى لانحصار التحريم فيها بنص القرآن، او ددې قول روايت د عائشي رضي الله عنها او ابن عباس رضي الله عنه څخه سوى دى وبه قال مالک رحمه الله. ولي چي امام مالک ددې څلور په ماسوى كي چي په احديث نبويه وو كي يې له خوراكه نهي راغلي دي مكروه

بولي په کراهت تحریم سره بولي، لکن اکثره امامان صاحب المذهب لکه امام ابو حنیفه او امام محمد بن ادریس شافعي او امام احمد رحمهم الله تعالی وایي چي تحریم په دغو څلورو شیانو کي نه دی حصر کما نص علیه البیضاوي.

**سوال:** تحریم د نورو شیانو خو په اخبار احاد کي راغلی دی، نو نسخ د قرآن په احاد سره نه لازمېږي؟

**ځواب:** تخصیص په اخبار الاحاد سره د قرآن نه لازمېږي ولي چي ددې آیت تخصیص په قطعي کتاب سره سوی دی یعني په منخنقه او موقوذة واخواتها او دغه رنګه تخصیص د آیت یې یو وار په بل قطعي آیت سره چي په بارة کي د تحریم الخمر وارد سوی دی.

**سوال:** خمر خو له مطعوماتو څخه نه دی بلکې له مشروباتو څخه دی او زموږ بحث په مطعوماتو کي ؤ؟

**ځواب:** بلکې له مطعوماتو څخه دی بدلیل قوله تعالی ولیس علی الذین آمنوا وعملوا الصالحات جناح فیما طعموا لانه ورد في الخمر. او په اصول الفقه کي وایي چي عام مخصوص بالبعض یا لقطعي یجوز تخصیصه ثانیاً بالاخبار الاحاد بل بالقیاس.

**سوال:** په تخصیص مقارنت شرط نه دی؟

**ځواب:** یا نه دی شرط بلکې بعض افراد چي له عام څخه په کلام مستقل سره ووزي هغه تخصیص دی سوا متراخیاً او مقارناً، وایضا نقول أن حل جمیع الحیوانات سوی الاربعة الثابت بهذا النص یعني قل لا اجد فیما اوحي الي الآیة منسوخ بتحریم الخبائث الثابت بقوله تعالی ویحل لهم الطیبات ویحرم علیهم الخبائث لکن لفظ د خبائث چونکه مجمل ؤ یعني چي له خبائث څخه څه شی مرا دی نو هغه احادیث چي وارد دي په تحریم کي د سباع البهائم یا په حمر اهلیه وو کي وغیرها بیان د خبائث وارد في القرآن دی فالناسخ الکتاب الکتاب والاحادیث بیان للکتاب، وایضاً نقول چي احادیث مذکوره في التحریم وان کانت احاد في الارض لکن چونکه ټوله امت دا احادیث قبول کړي دي فیجوز النسخ بها لکونها قطعیة باجماع الامة المرحومة علی قبولها.

**پوښتنه**: امام مالک رحمه الله خو تحریم د سباع ونحوها نه وایي بلکې مکروه تحریمي یې بولي؟

**ځواب**: امام مالک رحمه الله خو کراهت تحریم په دغو احادیثو سره وایي فلا شبهة في قبول مالک رحمه الله تلک الاحادیث فصارت بجمع علیها لکن دده به گمان شاید دا وي چې احادیث که څه هم مجمع علیها دي تحریم نه په ثابتېږي بلکې کراهت تحریم په ثابتېږي لکن الحق خلافه یعني یثبت بالاجماع علیها من الاحادیث التحریم بتةً، والعلم عندالله.

**درویش وایي**: چې دا ږ تفصیل د آیت مبارکه قل لااجد فیما اوحي الي الآیة بالنقل من التفاسیر المعتبرة ولعلک لاتجد هذا التفصیل مجموعاً في مطاوي التفاسیر الکبار والله الموفق زنه ویم چې زه یم بلکې زه وایم چې ته یې.

فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَّلَا عَادٍ فَاِنَّ رَبَّكَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۴۵﴾

نو که څوک مجبوره سو په حالت کې د سختي لوږې چې پر مرگ بېرېدی وخوراک ته ددغو محرماتو مذکوره وو په داسې حال کې چې بغاوت یې پر بل مضطر نه کاوه یعني چې بل مضطر دغه محرم شی پیدا کړی و، چې فقط دده د حفظ حیوٰة لپاره کافي و، نو ته یې له هغه څخه په زوره اخلې او په خپله یې خورې او هغه ومرگ ته سپارې، او نه عاد یعني تجاوز کوونکی تر سدرمق و، نو خدای جل جلاله ستا اې محمد ﷺ غفور بخښونکی او مهربان دی یعني په تناول او خوراک کې د محرم دا مضطر نه نیسي.

**درویش وایي**: چې ددې مزید تفصیل په تفسیر کې د سورة بقره ددې کتاب تېر سوی دی فارجع.

وَعَلَى الَّذِيْنَ هَادُوْا حَرَّمْنَا كُلَّ ذِيْ ظُفُرٍ

**پوه سه**: حرف جر یعني "وعلی آه" متعلق دی پر "حرمنا" پورې او تقدیم یې لپاره د حصر دی والمعنی خاص پر هغو کسانو چې دین د یهودیت چلوي موږ حرام کړي ږ هر حیوان چې نوک لري یعني چې گوتې لري کالابل والسباع والطیور. او کلبي رحمه الله وایي چې ذی ظفر هغه حیوان دی منگول لري له مرغانو

څخه او حافر لري له حيواناتو څخه، او کلبي رحمه الله دا روايت له بعضو مفسرينو څخه کړی دی.

**بوه سه**: چي د ظفر اطلاق دلته مجازي دی ولي چي ظفر په حقيقت کي نوک ته وايي او مراد دلته ګوتي دي خواه منځ د ګوتو سره جلا وي لکه ټول اقسام د درندګانو او د سپو او پيشانو. او يا جلا نه وي لکه اوښ وشترمرغ او هيلی وغيرها.

**فائده**: بعض ذات ظفر ودوی ته حلال وه، نو چي دوی ظلم شروع کړی تو له ورته حرام سوه. نو د ټولو حرمت په يهودانو پوري خاص دی، ورته بعض د ذی ظفر پر موږ باندي هم حرام دي لکه درندګان، سپيان او پشيانې.

وَمِنَ الْبَقَرِ وَالْغَنَمِ حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ شُحُومَهُمَا إِلَّا مَا حَمَلَتْ ظُهُورُهُمَا أَوِ الْحَوَايَا أَوْ مَا اخْتَلَطَ بِعَظْمٍ

او د غوايي له جنس څخه، او د پسه له جنس څخه موږ حرامي کړي دي وازګي، مګر نه هغه سپيني چي پر شا د دوی وي او يا هغه وازګي چي پر کولمو د دوی وي چي په پښتو يې بچلکمي بولي، او يا هغه سپيني وازګي چي هډوکي پکښې وي لکه د پسه لم چي لمجونډی پکښې دی، نو باقي بعد الاستثنا د نس وازګي چي ټروب يې بولي او هغه وازګي پر پښتور ګو راګرځېدلي وي.

ذَٰلِكَ جَزَيْنَاهُم بِبَغْيِهِمْ

دغه تحريم زموږ دوی ته جزا او عقوبت مو ورکړی په سبب د ظلم ددوی لکه قتل د انبيا لکه زکريا او يحی عليهما السلام او خلګ منع کول له لاري څخه د خدای ﷻ او اخستل د رشوتونو او د سود او اکلهم اموال الناس بالباطل.

**پوښتنه**: هغه کسان لکه يهود چي مذکوره کارونه کوي نو هغه خو په اکل سره د ماحرم عليه څه باک کوي، نو په دې تحريم کي پر دوی څه تنګي راغې او څه خوابدي؟

**ځواب**: ددې تحريم فائده دا ده چي دوی ته به عذاب په اخرت کي د دغو محرماتو هم ورکول کېږي لکه د نورو معاصيو ددوی.

وَإِنَّا لَصَٰدِقُونَ

او موږ صادق یو په ټولو اخبارو او په وعد او عید کې، له جابر ﷺ څخه روایت دی چې علیه الصلوٰة والسلام وویل په کال د فتح د مکې چې "ان الله ورسوله حرم بیع الخمر والمیتة والخنزیر والاصنام" خدای ﷻ او رسول دده حرام ګرځولي دي خرڅول د شرابو او د مرداري او د سرکوزي او د بتانو "قیل ارئیت شحوم المیتة فانه یطلی بها السفن ویدهن بها الجلود ویستصبح بها قال لا هو حرام شحومها" یو چا ورته وویل چې خبر راکړه د میتة د وازګو یعني چې هغه هم حرامي دي، ولي چې شان دادی چې په شحومو د میتة د کښتی، تختې غوړېږي او پوستکي په غوړېږي او په څراغانو کې لګول کېږي، یعني د فائدې پر اخستل روا دی؟ علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل یا د فائدې اخستل هم نه دي پر روا "هو حرام شحومها" بیا علیه الصلوٰة والسلام وویل لعنت د خدای ﷻ دي وي پر یهودانو چې خدای ﷻ دوی ته حرامي کړي وې وازګي یعني کما في الآیة نو دوی به دغه وازګي ویلولې او خرڅولې به یې او د وازګي ثمن به یې خوړی یعني دا حیله به یې ورته کول، رواه البخاري وغیره.

فَإِن كَذَّبُوكَ فَقُل رَّبُّكُمْ ذُو رَحْمَةٍ وَٰسِعَةٍ وَلَا يُرَدُّ بَأْسُهُۥ عَنِ ٱلْقَوْمِ ٱلْمُجْرِمِينَ

نو که چېرې تکذیب وکړي یعني یهودان ستا یعني فیما او حیث لک په هغو آیتو چې ماتاته وحي کړي دي ددوی په باره کې یعني وعلی الذین هادوا الخ. نو ته ودوی ته ووایه چې رب ستاسي خاوند د رحمت فراخه دی چې سره د تکذیبه یې وتاسي ته مهلت درکړی دی. نو تاسي په دې مهلت الهي مه غره کېږئ. ولي چې دا امهال دی اهمال نه دی. او نه رد کول کېږي عذاب د خدای ﷻ له هغه قوم څخه چې مجرم وي یعني چې وخت د عذاب یې ورسېږي لان کل شئ عنده بمقدار واجل معلوم.

سَيَقُولُ ٱلَّذِينَ أَشْرَكُوا۟

ژر دی چې وه به وایي هغه کسان چې دوی شرک کوي یعني خدای ﷻ لره شریک وایي.

**پوه سه:** چي دا اخبار بالغيب دی او معجزه د قرآن کريم ده چي وروسته مشرکين داغسي هم ووېل. صورت حال دادی چي څه وخت چي مشرکان په دلائلو کي ملزم سوه د عليه الصلوٰة والسلام له خوا وروسته يې دا خبري شروع کړې.

**لَوْ شَآءَ اللّٰهُ مَآ اَشْرَكْنَا وَلَآ اٰبَآؤُنَا وَلَا حَرَّمْنَا مِنْ شَيْءٍ**

که د خدای ﷻ اراده وای موږ به شرک نه کولای او نه به زموږ پلرو. او موږ به حرام نه بللای هغه شی چي موږ يې حرام بولو لکه سائبه. بحيره. حام وغيره. ددوی دا استدلال حاصل دادی چي خدای ﷻ خو قادر و چي زموږ مخ يې له شرک څخه راګرځولی وای او داغه رنګه له تحريم څخه. نو چي خدای ﷻ داغسي ونه کړه نو معلومه سوه چي زموږ په شرک راضي دی او مانحن فيه حق والا لحال بيننا وبين مانحن فيه من الشرک وتحريم الاشياء.

**درويش وايي:** چي دا ددوی دليل غلط دی او ددوی پر جهل باندي مبني دی چي دوی د مشيت په معنی د ارادې او په منځ کي د رضی الهي فرق نه دی کړی او سره ددې دوو په منځ کي فرق دی. ولي چي اراده د خدای ﷻ په خير او شر پوري مربوطه ده لانه ورد ماشاء الله کان ومالم يشاء لم يکن. او رضا د خدای ﷻ په کفر پوري مربوط نه ده لانه ورد لا يرضی لعباده الکفر وعلی هذا فقس الطاعة والعصيان.

**كَذٰلِكَ كَذَّبَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ حَتّٰى ذَاقُوْا بَاْسَنَا**

يعني لکه چي کفارو د مکې ستا تکذيب کاوه په دې کي چي خدای ﷻ منع له شرک څخه کړې ده او په شرک راضي نه دی ولم يحرم ما حرموه بالاستدلال المذکور الفاسد من قوله تعالی سيقول الذي اشرکوا. تکذيب کړی دی تر دوی دمخه د رسولانو تر هغو پوري چي زموږ عذاب ودوی ته ورسېدی.

**قُلْ هَلْ عِنْدَكُمْ مِّنْ عِلْمٍ فَتُخْرِجُوْهُ لَنَا**

ته ورته ووايه آيا ستاسي په يوه علم سته يعني چي مستنبط وي له کتاب او وحي څخه چي تاسي ته يې دا درښولي وي چي خدای ﷻ منع له شرک څخه نه ده کړې او په شرک راضي دی ولم يحرم ما حرموه. نو که وي هغه تاسي موږ ته ښکاره کړئ چي ستاسي مدعی په ثابته سي وليس کذالک بلکي داسي ده.



Scanned by CamScanner

إِنْ تَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَإِنْ أَنتُمْ إِلَّا تَخْرُصُونَ

تاسي متابعت نه کوئ مګر په ګمان باطل بتقليد الآبا او نه تاسي ياست مګر دروغ وایاست په هغه خبرو کي چي خدای ﷻ زمونږ په شرک او په تحريم د ماحرمنا راضي دی کمامر في تفسير قوله تعالى سيقول الذين اشركوا الخ.

قُلْ فَلِلَّهِ الْحُجَّةُ الْبَالِغَةُ

ته ورته ووايه چي خدای ﷻ لره دی حجت تامه او کامله پر خپلو او اوامرو او منيهاتو او تاسي لره حجت پر مشيت او ارادې دی ولي چي مشيت د خدای ﷻ مستلزم رضا لره دده نه دی يفعل مايشا ويحكم مايريد، ولي چي خدای ﷻ حکم په مقتضی د حکمت کوي لايسئل عما يفعل وهم يسئلون. او تاسي مشيت د خدای ﷻ مستلزم رضا لره د خدای ﷻ بولي کما يظهر من قولکم السابق.

فَلَوْ شَاءَ لَهَدَاكُمْ أَجْمَعِينَ

که د خدای ﷻ اراده سي تاسي ټولو ته به يې هدايت کړی وای يعني بالاجبار والاکراه لکن داسي مشيت خدای پاک ونه کړی تاچي مؤمن بالاختيار او کافر بالاختيار سره جلا سي، مثلاً د ابوبکر صديق ؓ او د ابوجهل سره جلا سي، ولي چي په صورت کي د مشيت الكل د هدايت دا فرق له منځه پورته کېدی کما لايخفى.

قُلْ هَلُمَّ شُهَدَاءَكُمُ الَّذِينَ يَشْهَدُونَ أَنَّ اللَّهَ حَرَّمَ هَٰذَا ۖ فَإِن شَهِدُوا فَلَا تَشْهَدْ مَعَهُمْ

ته ورته ووايه اې محمده ﷺ چي تاسي حاضر کړئ ستاسي مقتدايان په دې قول کي د تحريم د اشيا مذکوره وو تاچي د هغو سره د لائل ووايم او هغه ملامت کړم لکه تاسي. هغه مقتدايان چي شاهدي ادا کړي په دې سره چي خدای ﷻ دغه شيان حرام ګرځولي دي که چېري هغه مقتدايان دا شاهدي ادا هم کړي بالباطل لانهم لايبالون بتلک الشهادت ته ددوی تصديق مه کوه په دغه شاهدی بلکې ددوی ته يې فساد بيان کړه او ارشاد الى الحق ورته وکړه کما هو وظيفتک ايها الرسول.

**پوه سه:** چي "هلم" فعل دی يقال للواحد والتثنية والجمع ومعناه احضروا.

وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَالَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ وَهُم بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُونَ

او ته متابعت مه کوه د خواهشاتو زائغه وو د هغو کسانو چي تکذیب کوي په آیتو سره زموږ یعني الآیات القرآنیة او د هغو کسانو چي ایمان نه لري پر ورځي د اخیرت او دوی د خدای ﷻ سره برابروي نور شیان لکه آلهه ددوی.

**سوال**: خدای ﷻ داسي نه وویل اهوائهم او سره ددې چي مختصر به هم وای بلکي په ځای کي د ضمیر یې اسم ظاهر راوړی حکمت یې څه دی؟

**ځواب**: حکمت یې دادی چي دلالت وکړي پر دې چي تکذیب کونکی د آیاتو متبع د هوی نفساني دی.

**پوه سه**: چي مشرکانو سوال وکړی له رسول الله ﷺ ځخه د ماحرمه الله تعالی نو دا آیت نازل سو.

قُلْ تَعَالَوْا أَتْلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُمْ عَلَيْكُمْ

تاسي راسئ چي زه تلاوت وکړم یعني تاسي ته د هغو شیانو چي خدای حرام کړي.

**پوه سه**: چي اصل د تعالوا دا معنا ده چي لوړ سړی چي پر بام ولاړ وي کښته سړي ته ووایي چي لوړ راسه. لکن وروسته په دې لفظ فراخي وکړل سوه، چي اوس یې معنا داده چي دلته راسه که کښته وي او که لوړ.

**فائده**: دغه درې آیتونه یعني تر لعلکم تتقون پوري مشتمل دي پر لس خویونو چي جامع دي د هر خیر، او دا آیات نه دي منسوخه سوي په هیڅ کتاب کي د کتب الهیه وو فهي محرمات علی بني آدم کلهم. او په دې لسو خویونو کي اختلاف نسته په اختلاف سره د اممو او د زمانو که څوک عمل وکړي په دغو لسو خویو سره دخل الجنة ومن ترکهن یعني جمیعاً دخل النار ابداً.

أَلَّا تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا

چي تاسي په نه شریکوئ د خدای ﷻ سره هیڅ شی په عبادت کي. نو ابتدا یې خدای ﷻ له شرک ځخه وکړه لانه اعظم المحرمات چي د سره هیڅ عبادت کډ مالي وي او که بدني وغیر ذالک هیڅ فائده نه لري.

**پوه سه**: چي شرک دوه قسمه دی، جلي وهو عبادة الاصنام. وخفي وهو الریا

والسمعة، په حديث شريف کي راغلي دي چي روايت يې اصحاب السنن کړی دی چي عليه الصلوٰة والسلام وويل چي ابتداً د دوږخ د مسلمانانو په ډله کي په درو کسو سره کېږي (۱) يو عالم يا قاري چي خدای پاک وده ته خپل نعمتونه وربښيي په دنيا کي. نو خدای ﷻ به ورته ووايي چي تا ددې نعمتو شکر څرنګه ادا کړی؟ دی به ورته ووايي چي ما خپل عمر ټول په تعلم او تعليم کي صرف کړی ستا د رضا لپاره، نو ده ته به وويل سي چي يا بلکې تا چي تعلم او تعليم کاوه ددې لپاره دي کاوه چي فلانی دومره لوی عالم دی يا مقري دی. وقد قيل ثم امربه فسحب الی النار کش کړه سي وه دوږخ ته (۲) او بل هغه غني سخي سړی دی چي په ورځ د قيامت به خدای پاک ته حاضر کړه سي او خدای پاک په خپل نعمتونه وده ته وشمېري چي يو له هغو څخه غنی مالي ده، نو خدای ﷻ به ورته ووايي چي تا نو څه وکړه سره د غنٰی مالي؟ دی به ورته ووايي چي ما هيڅ يوه لار د خير نه ده پرې ايښې چي په هغه کي دي مي مال نه وي مصرف کړی ستا د رضا لپاره، خدای ﷻ به ورته ووايي چي کذبت يعني په دغه جمله کي چي ستا د رضا لپاره، تا خو ددې لپاره مالي مصرفونه په لارو کي د خير کول چي خلګ ووايي چي فلانی ډېر سخي او نان ده سړی دی وقد قيل او هغه خو درته وويل سوه ثم امربه فسحب الی النار (۳) او بل غازي او مجاهد في سبيل الله دی چي په غزا کي شهيد سوی وي، نو خدای ﷻ ته حاضر کړل سي او خدای پاک خپل نعمتونه وده ته بيان کړي او ورته ووايي چي تا نو څه وکړه؟ دی ورته ووايي چي ما خپل شرين روح ستا د رضا لپاره له لاسه ورکړی. خدای پاک ورته ووايي کذبت يعني په دغه خبره کي چي ستا د رضا لپاره. ستا خو دا نيت ؤ چي خلګ ووايي چي فلانی ډېر دلاور او جنګيالی سړی ؤ، وقد قيل ثم امربه فسحب الی النار، او کما قال رسول الله ﷺ حکايت غريبة في باب الريا.

د تاريخ په پاڼو کي وايي چي يو حاکم په اصطلاح د يو شيخ يا پير مريد او عقيدت مند ؤ او د پير زيارت او ملاقات ته به همېشه ورتلی، يوه ورځ حاکم پير ته وويل چي ماښام زما مېلمه يې، پير دعوت قبول کړی، ماښام پير يو نابالغه زوی

هم د حاکم مهمانی. ته د ځانه سره بو تلی خیر وخت چي د ډوډۍ، خوړلو سو حاکم ورجي او غوښي او نور رقم رقم خواړه پخکړي وه سترخوان چي اوار سو نعمتونه پر کنبښنول سوه، پیر صاحب په صرف درو گوتو یو دوې گولې د ښوروا او یو دوې گولې د ورجو الی غیر ذالک په خوله کړې، نو تر شا سو خوراک یې پرېښو. حاکم ورته وویل چي صاحب موږ گرده ورځ زه او کور والا ددغه نعمتو په پختیا اخته وو او تا دا څو گولې وخوړلې او خوراک دي پرېښو. ته مهرباني وکړه یو څو گولې زموږ د خوشالی لپاره وخوره. پیر ورته وویل چي زما همېشه هم دومره خوراک دی که چېري نس ډک کړم نو بیا شب بیداري او ذکر د خدای ﷻ نسم کولای. ولي چي بیا خوب راځي خیر خو د پیر زوی مضبوطه په هر نعمت تر یزي ځان موړ کړی سترخوان چي ټول سو. نو حاکم ورته وویل چي تبرکاً به د ماخستن لمونځ زما په کور کي په جماعت راکړې. پیر صاحب دمخه او حاکم او د حاکم نوکران او د پیر زوی پسي ودرېدله جماعت یې وکړی. او پیر صاحب له حاکم څخه رخصت واخستی. نو کور ته چي راغلي مايني ته یې وویل هله سترخوان راواخله داسي وږی یم. ماینې یې ورته وویل چي د حاکم مېلمه وې خو هورې به دې ځان موړ کړی وای. پیر صاحب ماینې ته وویل چي دېره بېعقله یې کما د حاکم کره دومره ډوډۍ، ورجي او غوښي وغیره خوړلي وای په ډک نس. نو د حاکم عقیده زما څخه بدلېدله او دا به یې عقیده سوې وای چي دا څه خېټور پیر دی خیر خو هغې سترخوان ورته راواخستی. پیر صاحب په وچه ډوډۍ خېټه بنه ډکه کړه. نو د پیر زوی ورته وویل چي بابا لمونځ هم راو گرځوه ولي چي تا خو په دومره خشوع او خضوع لمونځ نه کاوه لکه د حاکم په کور کي چي دي وکړی. وهذا حال المرائي.

## وَّ بِالْوَالِدَیْنِ اِحْسَانًا

دا عبارت په حذف د امر دی یعني واحسنوا. نو عطف د انشا امري دی پر انشا د نهي یعني لاتشرکوا.

**سوال**: چي لاتسیئوا بالوالدین ویل سوی وای. نو معطوف او معطوف علیه به په انشا کي د نهي سره برابر سوی وای، نو څه حکمت دی په احسنوا کي؟

**ځواب:** خدای پاک تنبیه وکړه پر دې چي د مور او پلار په باره کي یوازي ترک الاسائة کافي نه دی بلکې احسان به ورسره کوئ یعني دا په حق د والدینو کفایت نه کوي چي بد نه ورسره کوم.

**پوه سه:** چي دا دویم امر دی د احکام عشره وو څخه.

**حکمت:** خدای پاک وروسته تر تحریم الشرک په تعالی تحریم عقوق الوالدین ذکر کړی ولي چي والدین سببان قریبان دي د وجود او تربیه د مولود کما ان الله تعالی خالق المولود وموجده نو سستي د ولد په ادا کي د حقوق د والدینو عقوق فهو اکبر الکبائر بعد الشرک.

**درویش وايي:** چي په نني زمانه کي عقوق الوالدین یو عمل جاري دی په عموم خلګو کي الا ماشذ وندر وکذا عقوق الاساتذة هغه هم عام دی.

وَلَا تَقْتُلُوٓا أَوْلَٰدَكُم مِّنْ إِمْلَٰقٍ ۖ نَّحْنُ نَرْزُقُكُمْ وَإِيَّاهُمْ ۖ

او تاسي مه وژنئ اولاد خپل من املاق په حذف د مضاف والاملاق الفقر والمسکنت یعني من خشیة الفقر.

**پوه سه:** چي نحن نرزقکم آه تعلیل دی د نهي مذکور بسبب مذکور یعني موږ رزق درکوو تاسي ته او دوی ته.

**درویش وايي:** چي که څه هم لفظ د اولاد خو عام دی نر او ښځي دواړو ته شامل دی لکن مراد دلته ځني ښځي دي بقرینة الحال. ولي عادت د ډېر مشرکانو دا وُ چي ښځینه اولاد به یې پیدا سو دستي به یې په خاورو کي ژوندی ښخاوه چي دې ته عربي کي وأد البنات وايي کما في قوله تعالی "واذا الموءدة سئلت بای ذنب قتلت.

**درویش وايي:** چي دا وُ د قرآن مجید عظمت او د دین اسلام برکت چي تر شرک علاوه یې د داسي ظلمونو او جهالاتو او ظلماتو لکه وأد البنات څخه یې عالم ته نجات ورپه برخه کړی، دا له احکام شرعیه وو څخه دریم دی.

وَلَا تَقْرَبُوا الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ ۖ

او تاسي مه نژدې کېږئ ګناه کبائرو ته مثل الزنا واللواطة وغیرهما من اعمال

الجوارح، هغه چي ښکاره وي يعني په علانيه، يا دغه مذكوره افعال جوارح لكن په پټه يا له افعالو څخه د زړه وي لكه نفاق او حب المعاصي ورزائل النفس.

**يوه سه:** چي ماظهر ومابطن بدل دی له فواحش څخه.

**درويش وايي:** چي دا څلورم حكم دی له احكام شرعيه وو څخه.

**سوال:** فواحش به حرام وي نو په نهي د قربان د هغو كي څه حكمت دی؟

**ځواب:** نهي له قربان څخه مبالغه ده. او تاكيد دی په نهي كي د فواحش كما في قوله ولا تقربا هذه الشجرة خطاباً لآدم عليه السلام وحوا عليها السلام مثلاً تقرب وزناته دادی چي بېګانه ځوانې ښځي ته په نظر شهوت وګوري او يا خبري او مجلس ورسره كوي، او قربان ولواطت ته دادی چي د ښائسته بالغ يا نابالغه څخه مچه واخلي او يا په شهوت باندې ورسره كوي. بيت

اين نظر از دور چون تيرست وسم	عشقت افزون ميشود صبر تو كم

له ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي شيطان د نارينه له درو ځايو څخه كار اخلي، عينيه، قلبه وذكره، او د ښځي هم له درو ځايو څخه كار اخلي، عينها، قلبها وعجزها، په حديث شريف كي راغلي دي چي نه سره كښېني نامحرم نر او ښځه په خلوت كي مګر دريم يې شيطان وي، يعني د هر يوه په زړه كي د شهوت تخم پاشي.

وَلَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ

او تاسي مه وژنئ هغه سړی چي خدای جل جلاله حرام ګرځولی وي قتل ده مګر نه متلبسا بالحق.

**يوه سه:** چي په حرمت كي د قتل مؤمن او اهل ذمه او معاهد سره برابر دي.

**فائده:** په حق وژل څو قسمه دي (۱) مرتد والی له دين څخه د اسلام العياذ بالله واوړي په هر دين كي چي داخل سي (۲) قصاصاً قتل (۳) زناً چي سړی محصن وي يعني نر ماينه لري يا ښځه مېړه لري چي په رجم د ډبرو وژل كېږي (۴) او يا كافر معاهد وي او نقض د عهد وكړي (۵) او يا حكومت اسلامي ته باغي سي (۶) او يا قطاع الطريق وي، دا پنځم حكم دی له احكام شرعيه وو څخه، وفي الحديث النبوي صلى الله عليه وسلم ملعون من هدم بنيان الرب يعني بغير حق كما في هذه الآية.

ذٰلِكُمْ وَصّٰىكُمْ بِهٖ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ

"ذالکم" اشارة الی ماذکر من التکالیف الخمسة یعني په دغه سره امر کړی دی خدای ﷻ امر موکد په ساتنه سره ددغو پنځو محارمو یعني ددوی په مقتضی عمل کوي "لعلکم تعقلون" ای تستعملون عقولکم في حفظها والعمل بها.

وَلَا تَقْرَبُوْا مَالَ الْيَتِيْمِ

او تاسي مه نږدې کېږي ومال ته د یتیم فضلاً من ان تاکلوه او تضیعوه بفعلکم وهذا النهی مثل قوله تعالی لاتقربوا الزنی بحال من الاحوال وخصلة من الخصال وفعلة من الافعال.

اِلَّا بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ

مگر نه په هغه خصلت سره فالاستثنا مفرغ. چي هغه خصلت ښه وي چي ورسايي او گټه په تجارت غیر محتمل للخسران والضیاع ورکوي. داشپږم حکم دی د احکام عشره ؤ څخه.

**فائده:** یتیم په انسانانو کي هغه دی چي پلار نه لري او په حیواناتو کي هغه دی چي مور نه لري او په جواهراتو کي هغه دی چي مثل نه لري کما قالوا في الدرة الیتیمة.

حَتّٰى يَبْلُغَ اَشُدَّهٗ

تر هغه وخت پوري چي دی رسېږي وخپل کمال قوت ته د عقل. امام اعظم رحمه الله زمانه د اشد پینځه ویشت کاله تاکلې ده. نو کله چي یتیم هغې زماني ته ورسېدی بیا دي دده مال په لاس ورکړي که معتوه نه ؤ یعني دماغ يې خراب نه ؤ چي په پښتو یې باله وبولي. او جوهري وايي چي زمانه د اشد په منځ کي د اتلسو کلو څخه بیا تر دېرشو کلو پوري ده.

**پوه سه:** چي اشد مفرد دی لکن پر وزن د جمع دی لکه انک وهو الاسرب ولانظیر لهما. او مظهري رحمه الله وایي چي جمع د شد ده لکه فلس او افلس، والمراد به صفات کماله بعد البلوغ والرشد.

**فائده:** قيد د يبلغ اشده اتفقي دی او خارج مخرج العادة دی لپاره د تاکيد ولې چې عادة د اهل جاهليت دا و چې په مال کې د يتيم به يې تصرف کاوه په وخت کې د کوچنوالي دده چې يتيم به اشد ته ورسېدی، نو نور وصيان به يې له تصرف څخه بند کړه خپل مال به يې په خپله قضبه کې واخستي. نو خدای ﷻ به له عادت سره موافق حکم وکړی "ولا تقربوا مال اليتيم الا بالتي هي احسن ابداً حتى يبلغ اشده واما بعد ذالک فلا يمکن لکم التصرف فيه لممانعة اليتيم اياکم عن التصرف.

وَأَوۡفُواْ ٱلۡكَيۡلَ وَٱلۡمِيزَانَ بِٱلۡقِسۡطِۖ

او تاسې پوره ورکوئ پېمانه که د پېمانې شی وُ لکه غنم، جوارې او خورما، او په تراوز که د ترازو شی وُ لکه وسپنه، سره زر او سپين زر په عدالت سره يعني په برابرۍ سره.

**پوښتنه:** دا مخکې آيتونه په صيغه د نهې وه، دلته څه حکمت دی چې په ځای کې د صريح نهي يعني لا تنقصوا المکيال والميزان امر راوړی، يعني اوفوا الکيل آه؟

**ځواب:** لپاره د قصد د کمال اهتمام په ايفا سره فان الامر بالشئ يقتضي حرمة ضده التزاماً.

له مالک بن دينار رحمه الله څخه روايت دی، دی وايې چې زه د يو همسايه پوښتنې ته ورغلم چې قريب الموت وُ. نو ناجوړې سرې راته وويل چې يا مالک دوه غرونه دي د اور زما په حضور کې دي ما مکلف يو څوک چې دغو دوو غرو ته وخېژم، نو د مايني څخه مې پوښتنه وکړه چې ده څه چم درلودی، هغې راته وويل چې ده دوه منه درلوده د ډېرو يو لوی وُ چې په هغه به يې له خلګو څخه شيان په رانيول او بل کوچنی وُ چې په هغه به يې پر خلګو شی خرڅاوه وهذا هو الحکم السابع من العشرة.

لَا نُكَلِّفُ نَفۡسًا إِلَّا وُسۡعَهَاۖ

موږ تکليف نه کوو پر هيڅ چا مګر نه د طاقت سره برابر، په دې جمله کې اشاره ودې ته ده چې سړی دي په کيل او ميزان کې خپل وسع او طاقت مبذول کې نو که

چېرې څه نقصان پکښې واقع ؤ غاړې ته دې په بندي لان التكليف بحسب الوسع لکن افضله داده چې تر حق دې لږ بالا ورکړي تاچه توهم د لږ والي دفع سي بالكلية.

**پوه سه**: چې زيات والی تر قدر واجب په کیل او وزن کې ډېر ښه کار دی په حديث شريف کې راغلي دي چې روايت يې احمد، ابوداود، ترمذي او حاکم کړی دی، چې عليه الصلوٰة والسلام د يو چا آس رانيولی ؤ، نو يو صحابي ﷺ ته يې وويل "زن وارجح" يعني زر ورو تله او يو څه زيات ورکړه.

**درويش وايي**: چې داد هغه زماني خبره ده چې سره او سپين زر په تول ورکول کېده يعني عددي نه وه لکه په اوسنی زمانه کې. او په بخاري او مسلم کې راغلي دي چې پر عليه الصلوٰة والسلام د يو چا پور باندي د اوښ يعني ده مبارک اوښ په پور رانيولی ؤ، نو هغه سړی راغلی خپل د اوښ پور يې غوښتلی يو څه سختي يې وکړه (داسي سختي نه وه چې موجب د اهانت او د کفر وګرځي) داسي يې وويل چې اوس نو زه خپل پور خامخا غوارم، او يا دا پوروړی کافر ؤ لکه بعض محشيان د بخاري چې وايي، نو اصحابو قصد وکړی چې تغليظ کونکي ته سزا ورکړي، نو عليه الصلوٰة والسلام اصحاب کرامو ﷺ ته وويل "دعوه فان لصاحب الحق مقالاً" يعني څه مه ورته وايا ست ولي چې صاحب الحق لره زياتي خبره کول سته. بيا عليه الصلوٰة والسلام ورته وويل يعني اصحابو ﷺ ته چې مثل دده د پور سِن اوښ ورکړئ، صحابه وو ورته وويل چې زمو ږ سِن اوښان دده تر سِن اوښ افضل دي، عليه الصلوٰة والسلام ورته وويل چې هغه ښه ورکړي فان خيركم احسنکم قضاءً. له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چې يو سړی و عليه الصلوٰة والسلام ته راغلی چې نيم وسق خورما يا بل شی يې پر عليه الصلوٰة والسلام باندي ؤ، نو عليه الصلوٰة والسلام پوره وسق ورکړی او ورته وه يې ويل چې نيم وسق ستا پور دی او نيم وسق زما له خوا احسان دی.

**پوه سه**: چې وسق شپېته کاسې دی، او بيا يوه ورځ بل پوروړی راغلی چې يو وسق پور يې پر عليه الصلوٰة والسلام باندي ؤ عليه الصلوٰة والسلام دوه وسقه ورکړه او دا يې ورته وويل وسق لکم ووسق من عندي رواه الترمذي بسند صحيح.

**فائده**: مندوب داده چي سړی دي په بيع او شرا او پور ورکولو کي او غوښتولو کي سماحة يعني جوانمر دي کوي، عن جابر ﷺ قال قال رسول الله ﷺ رحم الله رجلاً سمحاً اذا باع واذا اشتري" يعني ډېري چنې دي په بيع او شرا کي نه کوي "واذا اقتضیٰ" او پر چا چي يې پور باندي وي په غوښتولو کي دې ډېره سختي نه کوي.

**درويش وايي**: چي لکن مع ذالک خدای ﷻ زياتوب ورکول تر ما وجب عليه اونه راضي والي په کم سره تر پور واجب نه دی ګرځولی لانه شاق على الاناسي ولذالک قال لا يکلف الله نفساً الا وسعها.

**وَإِذَا قُلْتُمْ فَاعْدِلُوا وَلَوْ كَانَ ذَا قُرْبَىٰ**

او چي تاسي خبره کوئ په يو حکم کي او يا په يو شهادت کي، نو عدل کوئ يعني يوه طرف ته ميل مه کوئ، که څه هم وي مقول له يا مقول عليه خاوند د قرابت ستاسي، ولي چي د شريعت مبارک حکم دادی چي سړی دي متابعت د حق کوي، او طلب د رضا د خدای ﷻ دي کوي، نو په دې د قريب او اجنبي څه فرق دی.

**يوه سه**: چي شهادت دي سړی په ظن او تخمين نه ادا کوي بل عند کمال العلم بالمشهود به او شهادت په دروغو خو ګناه کبيره ده، قال رسول الله ﷺ عدلت شهادة الزور بالاشراک بالله" درې واره يې دا خبره وکړه، رواه ابو داؤد وابن ماجه حديث اوږد ؤ او درويش مختصر کړی، او داغه رنګه حکم او قضا په عدالت قاضي کوي ته به مراعات او رشوت نه ورکوي کما قال الزمخشري.

قضات زماننا صاروا لصوصاً　　　عموماً في القضايا لاخصوصاً
نخاف منهموا لو صافحونا　　　للصوا من خواتمنا فصوصاً

وهذا من بلاغاته ومبالغاته. ابو داؤد ﷫ له بريده ﷺ څخه روايت کړی دی چي رسول الله ﷺ ووېل "القضات ثلثة واحد في الجنة واثنان في النار. فاما الذي في الجنة فرجل عرف الحق فقضىٰ به، ورجل عرف الحق فجار في الحكم فهو في النار، ورجل قضى للناس على جهل فهو في النار" قاضيان درې قسمه دي يو په جنت کي دی او دوه په اور کي پس هغه چي په جنت کي دی هغه سړی

يعني قاضي دی چې حق وپېژني يعني عالم په احکامو د شريعت وي، نو حکم هم په هغه حق سره وکړي، او هغه رجل يعني قاضي چې حق خو پېژني لکن په حکم کي ظلم وکړي يعني يا په مراعات د قرابت وغيره او يا په رشوت نو دغه قاضي په اور کي دی، او بل هغه قاضي دی چې د خلګو تر منځ قضاوت کوي سره د جهله په مسائلو د شريعت فهو في النار.

وَبِعَهْدِ اللّٰهِ اَوْفُوْا

يعني په هغه سره چې خدای ﷻ وتاسي ته عهد کړی دی ای عهد کان من ملازمة العدل في الشهادة والقضاء، او مراعات کول د احکام د شرع شريفي من الاوامر والنواهي وغير ذالک. نو پر دي تقدير اضافت دی د مصدر وفاعل ته او يا معنی داده چې هغه عهد چې تاسي د خدای ﷻ سره وعده کړې ده لکه قسمونه، نذرونه وغيرها. نو پر دې تقدير اضافت د مصدر ومفعول ته دی.

**پوه سه**: چي جار او مجرور متعلق په اوفوا پوري دي تقديم يې لپاره د اهتمام او تعظيم دی.

**درويش وايي**: چې بعض مفسرينو که څه هم دا احتمال بعيد بيان کړی دی چې مراد د عهد دي په منځ کي د دوو انسانانو وي، لکن مع هذا فهذا الاحتمال صحيح.

**سوال**: نو اضافت يې وخدای ﷻ ته ولي وکړی؟

**ځواب**: په دې سبب چې خدای ﷻ يې امر په ايفاء او محافظت يعني اضافت لپاره د ملابست دی. بيت

وفا عهد نکو باشد اربياموزی — وگر نه هرکه توبينی ستمگری داند
از دم صبح ازل تا آخر شام ابد — دوستی ومهر بريک عهد ويک بقا باشد

وهذا هو الحکم التاسع.

**درويش وايي**: چې "عهدالله" عرض عريض لري د هم دې سببه بايد مسلمان د شبهاتو څخه پرهېز وکړي، ولهذا ورد في الحديث الصحيح الذي رواه البخاري ومسلم من حديث نعمان بن بشير رضي الله عنه قال رسول الله ﷺ الحلال بين والحرام بين" يعني صريح حلال لکه اوبه مثلاً ظاهر دي او صريح حرام لکه شراب مثلاً هم ښکاره

دی "وبينهما مشتبهات لايعلمها كثير من الناس" لكه بعض بيوع فاسدة المروجة في المسلمين في العصر الحاضر كالبيع بالشرط الذي لا يقتضيه العقد المذكور في الفقة. نو هغه څوک چي له مشتبهاتو څخه ځان وساتي. نو د خپل ابروي او دين پاک وساته يعني څوک په منت نه پر کوي چي دا کار خو ناروا دی تا ولي وکړی او دين يې هم پاک وساتی كما في المثال المذكور الى اخير الحديث.

## ذٰلِكُمْ وَصّٰىكُمْ بِهٖ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ

دا مذکورات منهيات يا اوامر صورةً هغه دي چي خدای ﷻ تاسي په امر کړي ياست ددې لپاره چي پند واخلئ او دغه کارونه ونه کړئ که منهيات وه که اوامر وه.

## وَاَنَّ هٰذَا صِرَاطِيْ مُسْتَقِيْمًا فَاتَّبِعُوْهُ

او دا مذکوره زما لاره يعني ماته موصل لاره ده سمه. نو تاسي يې متابعت وکړئ.

**يوه سه:** چي بعض قرا لفظ د "ان" په کسره د همزه وايي او جمله مستانفه يې بولي. او جمهور قرا يې په زور د همزه وايي كما في المصاحف المروجة، قرا رحمهم الله يې وجه د فتح داسي بيان کړې ده. تقديره واتل عليكم ان هذا الخ. او بعض قاريان ان په تخفيف وايي. نو مخفف د مثقل يې بولي اسم يې ضمير شان محذوف بولي اى انه يعني شان دادی چي هذا الخ. او قاضي بيضاوي او روح البيان لام د تعليل ورسره مقدر بولي او علت مقدم د فاتبعوه يې بولي.

**يوه سه:** چي مشار اليه د هذا تول هغه ماذكر في هذه السورة من التوحيد والنبوة والشرائع. او بعض وايي چي مشار اليه ما في هذه الايات. بغوي رحمه الله وايي چي تېر سوي آيتونه محکم دي هيڅ شي نه دي منسوخ کړي وهي محرمات في جميع الشرائع على بني آدم وهن ام الكتاب من عمل بهن دخل الجنة ومن تركهن دخل النار انتهى.

## وَلَا تَتَّبِعُوا السُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَنْ سَبِيْلِهٖ

او تاسي متابعت مه کوئ د نورو لارو. نو زائل به کړي دغه لاري او لېري به مو کړي له لاري څخه د خدای ﷻ چي ستا متابعت دی د قرآن کريم او ستا متابعت دی د سنت نبوي وسير الصحابة الكرام رضي الله عنهم. فان مقتضى متابعت الكتاب والسنة فيما ادركه العقل وفيما لايدركه، او مقتضى د ارا فاسده وو دا دی چي که ددوی له رايو

سره قرآن او سنت برابر وه هغه قبلوي او که نه وه برابر هغه نه قبلوي او د سنت رسول الله ﷺ تاویل کوي او د خپلو فاسدو رايو سره يې برابروي كيف كان التأويل يقبله العقل السليم اولا. وهذا هو السر في اختلاف الأمة الى فرق كثيرة كالروافض والخوارج والشيعة والجبرية والمجسمة والقدرية وغيرهم من الفرق المذكورة في كتاب الملل والنحل لعبد الكريم الشهرستاني.

**درويش وايي:** چي دا يو په زړه پوري کتاب دی په بيان کي د فرق الحق والضلال لکن په اوسنی زمانه کي يې پيدا کېدل ډېر مشکل دی. ولي چي کتاب فروشان د داسي بې رواجه کتاب له چاپولو څخه ډډه کوي لكن هو انفع من تفاريق العصى.

## ذَٰلِكُمْ وَصَّاكُم بِهِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ۝

په دغه اتباع د وحي خدای ﷻ امر او وصيت کوي ددې لپاره چي تاسي له خدای ﷻ وبېرېږئ له ضلال او تفرق څخه، له عبد الله بن عمر ؓ څخه روايت دی ده وويل چي رسول الله وويل لا يؤمن احدكم حتى يكون هواه تبعاً لما جئت به رواه البغوي في شرح السنة.

**درويش وايي:** چي له عبد الله بن مسعود ؓ څخه روايت دی چي احمد او نسائي او دارمي راوړی دی چي عليه الصلوٰة والسلام موږ ته يو خط مستقيم يعني په ګوته مبارکه وکښی او وه يې ويل هذا سبيل الله. او بيا يې خطونه وکښل په يمين او شمال د هغه خط مستقيم ډېر خطونه او وه يې ويل چي دا لاري دي چي پر هره لار شيطان دی چي خلګ وربولي آه.

سعدي شيرازي ﷫ وايي

خلاف پيمبر کسی ره ګزید
که هرګز بمنزل نخواهد رسید
محالست سعدی که راه صفا
توان رفت جز درپی مصطفی



که و خدای ﷻ ته رسېده غواړي عبيده تيښگوه لمن د مصطفی
بېله دې رسېده نسته نه وخدای نه وجنت ته دا خبره به معلومه سي صبا

## ثُمَّ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ

بیا موږ ورکړی دی موسیٰ ﷺ ته کتاب، دا جمله عطف ده پر "وصکم" باندي او ثم لپاره د تراخي ده في الاخبار يعني ثم اخبركم انا اتينا موسى الكتاب. او يا عطف دی پر "قل هلم آه" باندي پتقدير قل ای ثم قل آتينا موسى الكتاب آه. او يا ثم په معنی د واو عاطفه دی، كما قال النحاة الحروف العاطفة يجئ كل واحد منها بمعنى الآخر لمناسبة المقام كما في قوله تعالى ثم الله شهيد آه.

## تَمَامًا عَلَى الَّذِيْٓ اَحْسَنَ

تماما ای للنعمة والكرامة فهو مفعول له، على الذي احسن ای القيام بالشرائع المقدمة، ولي هغه څوک چي ايمان پر خدای وحده نه لري او شرائع مذکوره نه پر ځای کوي فلا انتفاع له في التوراة ولا بالقرآن ولم يتم النعمة عليه والمراد بالذي احسن موسى ﷺ دی.

## وَتَفْصِيْلًا لِّكُلِّ شَيْءٍ

او تورات تفصيل او بيان د هر شي چي په امورو کي د دين حاجت ورته وي.

**پوه سه:** چي "تفصيلاً" عطف دی پر "تماماً" عطف العلة على العلة ويمكن الحالية في المعطوف عليه والمعطوف.

## وَهُدًى وَّرَحْمَةً لَّعَلَّهُمْ بِلِقَآءِ رَبِّهِمْ يُؤْمِنُوْنَ ۝

عطف دی يا پر قريب يا پر بعيد وحكمه في الاعراب حكمه، او د هدايت او رحمت.

**پوه سه:** چي لعل په معنی د لام کی دی يعني ددې دپاره چي په ملاقات د رب ددوی چي مراد ځني يوم القيامة ايمان به راوړي، نو به له عذاب څخه د هغې ورځي هم وبېرېږي، ولي څوک چي ورځ د قيام نه مني لکه مشرکين، نو له عذاب يې هم نه بېرېږي لان يوم القيامة ظرف للعذاب فمن ينكر الظرف ينكر المضروف ايضاً كما لا يخفى.

وَهٰذَا كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ مُبٰرَكٌ فَاتَّبِعُوْهُ وَاتَّقُوْا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ﴿۱۵۵﴾

او دا قرآن کتاب دی چي موږ نازل کړی دی يعني بعد کتاب موسیٰ کثير البرکة دی نو تاسي متابعت وکړئ ددې کتاب او له خدايه وبېرېږئ په عدم متابعت کې د قرآن کريم لپاره ددې چي پر تاسي به رحم وکړل سي په سبب د متابعت د قرآن مبارک.

## اَنْ تَقُوْلُوْٓا

**درويش وايي:** چي "ان تقولوا" خطاب دی و اهل مکې ته بلکې وټولو مشرکانو ته د عربو قياساً. دا علت دی د "انزلناه" په حذف د مضاف ای کراهتة ان تقولوا يعني تاسي به و اياست يا اهل مکة او يا په حذف سره د لئلا يعني لئلا تقولوا.

اِنَّمَآ اُنْزِلَ الْكِتٰبُ عَلٰى طَآئِفَتَيْنِ مِنْ قَبْلِنَا ۪ وَاِنْ كُنَّا عَنْ دِرَاسَتِهِمْ لَغٰفِلِيْنَ ﴿۱۵۶﴾

يعني چي نه وُ نازل سوی کتاب مگر نه پر دغو قومو يعني يهود او نصارىٰ. والحصر المفهوم من انما لان الكتب السماوية الاخر لم يعرفوها اهل مكة بلكې دوی دغه دوه کتابه چي تورات او انجيل دي په نامه پېژندل.

**پوه سه:** چي کلمه د "ان" مخفف ده له مثقل څخه او اسم چي ضمير شان دی محذوف دی يعني شان دادی چي موږ وو له راست يعني ژبې څخه ددوی يعني يهود او نصاری غافله، يعني نه پوهېدلو چي بيا نو تورات او انجيل مطالعه کړی وای او د خدای ﷻ په احکامو مو څان پوه کړی وای، ولې چي امت امي يو.

**سوال:** دمخه خو طائفتين تثنيه ذکر سوه، نو ضمير د جمع يې په "دراستهم" څرنگه ورته راجع سو؟

**ځواب:** دغه دوې طائفې په معنی کې ډېر کسان دي، نو په ضمير کې يې مراعات د معنی وکړی وهذا شائع، نو لپاره ددغه عذر د دفعې خدای ﷻ عليه الصلوٰة والسلام چي ژبه يې عربي وه او قرآن پاک يې د عربو په مورنۍ ژبه نازل کړی او ددوی عذر يې زائل کړی فيكون هذا الرسول وهذا القرآن حجةً على اهل مكة وغيرهم من العرب.

أَوۡ تَقُولُواْ لَوۡ أَنَّآ أُنزِلَ عَلَيۡنَا ٱلۡكِتَٰبُ لَكُنَّآ أَهۡدَىٰ مِنۡهُمۡۚ

دا عطف دی پر تقولوا سابق باندي والتقدير او كراهة ان تقولوا كه چېرې نازل سوی وای پر موږ کتاب موږ به پر هدایت وای تر یهودو او نصاری وو. د مکې د کفارو دا عقیده وه چې موږ په فهم کې د خبرو او په متابعت کې د حق تر یهودو او نصاری وو بالا یو.

**فائده**: دوی په خپلو اشعارو او قصیدو او په اخبارو د اعاجمو لکه رستم او اسفندیار ډېر غره وه ولهذا قالوا لکنا آه.

فَقَدۡ جَآءَكُم بَيِّنَةٞ مِّن رَّبِّكُمۡ وَهُدٗى وَرَحۡمَةٞۚ

**پوهه**: دا جمله بیان ده یعني جزا د شرط محذوف یعني ان صدقتم فیما قلتم یعني لو انا انتزل علینا الکتاب، نو هغه دی راغلی تاسي ته حجت واضحه چې هم په پوهېږي ولي چې ستاسي په ژبه سره دی له جانبه څخه د خدای ستاسي.

**پوهه**: چې قرآن مبارک ته یې په دې حجت ووایه چې تاسي د راتیگ د کوچني سورت عاجزه کړاست کما مر في سورة البقرة وان کنتم في ریب مما نزلنا علی عبدنا فأتوا بسورة من مثله او دا کتاب لاربسوونه ده د هغه چا لپاره چې په غور بلا عناد وتعصب فکر پکښې وکړي، او دا کتاب رحمت دی د هغه چا لپاره چې عمل په مقتضی ددې کتاب وکړي في الدنيا والآخرة.

فَمَنۡ أَظۡلَمُ مِمَّن كَذَّبَ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ وَصَدَفَ عَنۡهَاۗ

**پوهه**: چې استفهام انکاري دی یعني لا احد لوی ظالم تر هغه چا چې تکذیب وکړي د آیاتو د خدای ﷻ یعني دروغ یې وبولي، او روی گرداني یې له قبول څخه وکړي لکه کفار د مکې او نور لکه یهود او نصاری.

سَنَجۡزِي ٱلَّذِينَ يَصۡدِفُونَ عَنۡ ءَايَٰتِنَا سُوٓءَ ٱلۡعَذَابِ بِمَا كَانُواْ يَصۡدِفُونَ ١٥٧

ژر دی چې موږ به وهغو کسانو ته چې اعراض یې کړی وي او کوي یې له آیاتو څخه په عدم قبول سره بد عذاب یعني په ورځ د اخیرت یا په دنیا کې کما في یوم بدر په سبب ددې چې دوی وه یصدفون.

**پوه سه**: چي اضافت د سوٴ العذاب اضافت دی د صفت وموصوف ته ای العذاب السیٴ.

**پوښتنه**: الذين يصدقون خو دمخه ذکر سوي وه، نو څه حکمت دی د خدای ﷻ چي داسي یې نه وویل سنجزیهم. بلکي اسم ظاهر یې په ځای کي د ضمیر راوړی؟

**ځواب**: حکمت یې مبالغه ده په ذم کي ددوی.

**فائده**: په حدیث کي د بخاري وغیره راغلي دي "انزل القرآن علی سبعة احرف" واختلف العلماء في المراد بسبعة احرف، صحیح داده چي مراد اووه لغتنه د عربو دي چي مشهور په فصاحت سره وه (۱) قریش (۲) هذیل (۳) هوازن (۴) اهل یمن (۵) بني طی (٦) ثقیف (۷) اهل البادیة. لپاره د تسهیل او اسانی پر دوی تاچه هر طائفه یې په مایوافق لغتهم ووایي لکن بشرط السماع من النبي ﷺ. او په دي کي حکمت دادی چي که ټوله عرب مکلف سي په یوه لغت سره لشق علیهم. ولي چي د مالوفه شي څخه جلا کول سخت دی، او دا معنا د حدیث مذکور هم صحیح ده چي له سبعه احرف څخه دي مراد اووه قرائته وي چي له علیه الصلوٰة والسلام څخه په شهرت رانقل سوي دي او امت ضبط کړي دي واضافت کل حرف الی من کان اکثر قرائته علی ذالک الحرف من الصحابة ﷺ اوبیا ضبط کړل سوي دي الی من اختارها من القراٴ السبعة وهم نافع رحمه الله وابن کثیر رحمه الله وابوعمرو رحمه الله وابو عامر رحمه الله وعاصم رحمه الله وحمزة رحمه الله والکسائي رحمه الله.

**مسئله**: منکر له قرآتو سبعه وو څخه کافر دی، او منکر له باقي څخه چي قرآت شاذه یې بولي مبتدع دی او گناه کاره دی.

**درویش وایي**: چي اصل مقصود عمل دی لامجرد القرائة کما هو المشهور في هذا الزمان،،،،، دو بیت

نقد عمرت زفکرت معوج خرج شد دررعایت مخرج
صرف کردش همه حیات سره درقرآت سبعه و عشره

له حضرت علي ﷺ څخه روایت دی "من قرأ القرآن وهو قائم في الصلوة

كانت بكل حرف حسنة ومن قرأ على غير وضوء يعني من حفظه بدون المس فعشر حسنات.

## هَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا أَن تَأْتِيَهُمُ الْمَلَٰئِكَةُ

انتظار نه کوي اهل مکه في ایمانهم بالقرآن وبالنبي ﷺ مگر چي ودوی ته راسي ملکي يعني ملائكة الموت او ملائكة العذاب او ملائكة يشهدون عياناً بصدق الرسول ﷺ وحقيقة القرآن کما قالوا هلاجاً معه الملائكة يعني د شاهدی لپاره "هل" استفهام انکاري دی.

**پوه سه**: چي چونکه ملائکه مونث غیر حقیقي دی نو تذکیر يأتيهم او تانيث د تأتيهم مروي د قرأ سبعه وو يعني بعض به تذکیر وايي او بعض بي تانيث كما هو القانون النحوي في المونث الغير الحقيقي حيث جوزوا تذكير الفعل اليه وتانيثه. والحاصل چي د قريشو تمنا خو پر ځای سوه يعني رسول عربي والقرآن العربي بیا هم دوی ایمان نه راوړی، نو شاید دوی په ایمان راوړلو كي انتظار د ملکو لري مع ان الايمان وقت مجئ الملائكة غير مفيد لهم لان المقبول عند الله هو الايمان بالغيب.

## أَوْ يَأْتِيَ رَبُّكَ

يا به راځي خدای ﷻ بلاكيف لپاره د فصل د قضأ بين العباد في موقف القيامة. او هغه ایمان هم بي فائدي دی.

**درویش وایي**: چي ما په يو كتاب کي ولیدل چي لا يدخل النار الا المؤمنون فتحيرت فالهمني الله ﷻ ان المراد المؤمنون في يوم القيامة فقط وهذا صحيح لان جميع طوائف الكفار يؤمنون يومئذ بما ينكرونه في الدنيا.

## أَوْ يَأْتِيَ بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ

او يا به راځي بعض آيات د قدرت الهي چي د عظیم د اشراطو څخه د قیامت دي وفسره اكثر المفسرين بطلوع الشمس من مغربها او په هغه وخت کي هم ایمان فائده نه لري.

**درويش وايي:** چي كه څه هم مظهري رحمه الله د اشراطو د قيامت په بيان كي علحده فصل مشتمل پر درو صفحو وضع كړى لكن داسي الفاظ ستهٔ چي مبتدي يې ادارك نه سي كولاى لكن مالايدرك كله لايترك كله زه به مجملاً خوى او بوى د قرب القيامة بيان كړم، الدخان في جو السماٗ ودابة الارض وخسف بالمشرق وخسف بالمغرب وخسف بجزيرة العرب، والدجال وطلوع الشمس من مغربها ويأ جوج ومأ جوج ونزول عيسى عليه السلام ونار تخرج من عدن، او تر دې تولو آياتو دمخه ظهور د مهدي كېږي، روى ابن مسعود رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ كه نه سي پاته له دنيا څخه مگر يوه ورځ خداى جل جلاله به هغه اوږده كړي تر هغو چي بعث كوي به خداى جل جلاله يو سړى مني اومن اهل بيتي شك د راوي دى چي برابر به وي نوم د هغه سړي زما د نامه سره يعني محمد ﷺ او برابر به وي نوم د پلار د هغه سړي د نامه سره زما د پلار يعني عبدالله چي مځكه به ډكه كړي په قسط يعني عدالت سره لكه دمخه تر دې چي ډكه وه له ظلم او جور څخه.

يَوْمَ يَأْتِي بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ لَا يَنفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِن قَبْلُ أَوْ كَسَبَتْ فِي إِيمَانِهَا خَيْرًا ۗ

هغه ورځ چي راسي بعض آياتونه د خداى جل جلاله ستا نفع نه كوي هيڅ نفس ته ايمان د هغه.

**پوه سه:** چي جمله د "لم تكن" صفت د نفساً ده والمعنى هغه نفس چي نه يې راوړي ايمان تر دغو آياتو دمخه او يا يې كسب نه وي كړى په ايمان كي د خير د كار.

**پوه سه:** چي په دغه آيت سره دليل وايي هغه طائفه چي وايي چي ايمان مجرد له عمل څخه اعتبار نه لري، دوى وايي چي د آيت معنا داده انه لا ينفع الايمان حينئذ نفساً لم يؤمن قبل ذالک اليوم ولانفساً لم تكسب قبل ذالک اليوم خيراً في ايمانها، وهذا خلاف مذهب اهل السنة، ولي چي مذهب د اهل سنتو خو دادى چي ايمان مجرد له عمل څخه نافع دى، ولي د خلود في النار څخه خو يې خلاصوي.

**درويش وايي:** چي حضرت الشيخ الشهر بالهدائي الاسكندرائي قدس سره په واقعات كي وايي چي ماته ښكاره سوى په توفيق ددې آيت د مذهب سره د

اهل سنت والجماعة دوي وجهي، اول دا چي دا قول او کسبت معطوف دی پر آمنت المقدر باندي نه پر آمنت مذکور باندي، والتقدير لاينفع نفعاً ايمانها لم تكن آمنت من قبل سوا كان ايماناً مجرداً او كسبت في ايمانها خيراً. والثاني ان يكون معطوفاً پر آمنت مذکور باندي لكن يعتبر في اللف مقدراً فيكون النشر على ترتيبه. والتقدير لايعتبر نفساً ايمانها ولاكسبها خيراً لم تكن آمنت من قبل او كسبت في ايمانها خيراً انتهى، وهذان الجوابان ينبغي ان يكتبا بمداد الذهب على قرطاس الاذهان والله اعلم بمراده تعالى في كتابه.

او مظهري رحمه الله داسي جواب ورکړی دی چي دا آیت پر دې دلالت نه کوي چي ایمان د من لم يكسب خيراً مطلقاً نفع نه کوي یعني لافي الدنيا ولا في الآخرة بلکې پر دې دلالت کوي چي په دغه ورځ چي بعض آيات د خدای ﷻ راسي ایمان مجرد عن كسب الخير فائده نه کوي او په اخيرت خو يې کوي، ولې چي د خلود في النار ځخه خو خلاصېږي چي ایمان مجرد يې دمخه تر دغه يوم وي که څه خير نه وي ورسره وهذا يوافق مذهب اهل السنت.

**قُلِ انْتَظِرُوا إِنَّا مُنْتَظِرُونَ ۝ إِنَّ الَّذِينَ فَرَّقُوا دِينَهُمْ وَكَانُوا شِيَعًا**

ته ورته ووایه اهل مکه ته تاسي انتظار کوئ موږ هم انتظار کوو، یعني د هغې ورځي چي موږ لره فوز بالجنة وي او تاسي لره عذاب النار وي.

**پوه سه**: چي بعض قرا کلمه "فرقوا" فارقوا وايي له باب ځخه د مفاعله. والمعنى خرجوا من دينهم وتركوه وهم المرتدون، او بعض قرا يې فرقوا وايي له باب ځخه د تفعيل يعني آمنوا ببعض وكفروا ببعض، او بعض مفسرين يې پر تقدير د باب د تفعيل يې دا ترجمه کوي صاروا فرقاً مختلفة باهوائهم الزائغة من هذه الامة كما جا في الحديث النبوي المروي عن عبدالله بن عمرو قال قال رسول الله ﷺ ليأتين على امتي كما آتى على بني اسرائيل حذوا النعل بالنعل حتى من دانوا منهم آتى امه علانية لكان من امتي من يضع ذالك.

**ترجمه**: علیه الصلوٰة والسلام وویل چي هر آئینه راسي زما پر امت لکه چي پر بني اسرائيلو راغلي و لکه یوه چوته چي پر بلې چوتې سرې برابروي حتى که

څوک له بني اسرائيلو څخه خپلې مور ته علانيةً ورتلى يعني زنا يې ورسره کوله زما په امت کې به هم داسې څوک پيدا کيږي چې د مور سره به علانيةً زنا کوي "وان بني اسرائيل تضرقت على ثنتين وسبعين ملة وتفرق امتي على ثلث وسبعين ملة كلهم في النار الا واحدة منهم"

**ترجمه:** بني اسرائيل دوا او يا ډلې شوي دي او زما امت به درواو ويا متفرقې ډلې شي ټول له فرق به په اور کې وي مګر نه يوه ډله "قالوا من هي يا رسول الله ﷺ قال ما انا عليه واصحابي رواه الترمذي.

**درويش وايي:** چې په مثل ددغه حديث سره د اختلافه د بعض الفاظو نور ډېر احاديث راغلي دي چې عمده په هغو کې د عرباض بن ساريه رضي الله عنه قال صلى بنا رسول الله ﷺ ذات يوم ثم اقبل بوجهه فوعظنا موعظة بليغة (عليه الصلوٰة والسلام يوه ورځ موږ ته لمونځ راکړی بيا يې موږ ته مخ راواړوی نو موږ ته يې وعظ او نصيحت وکړی داسې نصيحت چې د بلاغته ډک ؤ) وزرفت منها العيون ووجلت منها القلوب. فقال رجل يا رسول الله كان هذا موعظة مودع (چې تر سترګو د سامعينو اوښکې توی سوې او زړونه ددوی ډېر يډل. نو يو سړي وويل چې يا رسول الله چې دا وعظ ستا ګويا وعظ دی د رخصت اخستونکي) فاوصنا فقال اوصيكم بتقوى الله والسمع والطاعة وان كان عبداً حبشياً (نو موږ ته وصيت وکړه. عليه الصلوٰة والسلام ورته وويل چې وصيت کوم تاسې ته په ېره د خدای جل جلاله او اورئ به خبره د امير او په خوله به يې کوئ که څه هم دا امير حبشي مريي وي) فان من يعش منكم بعدي فسيرى اختلافاً كثيراً فعليكم بسنتي وسنة الخلفا الراشدين المهديين وعضوا عنها بالنواجز (ولې هغه څوک چې خدای جل جلاله ژوند ورکړي وده ته زما وروسته. نو ژر دی چې هغه به وويني ډېر اختلاف يعني په امت کې نو پر تاسې لازمه ده چې زما سنت او طريقه او طريقه د خلافاً راشدينو يعني چې پر تاسې آمران وي. اشاره ده وه خلافت ته د ابوبکر، عمر، عثمان او علي رضي الله عنه چې دوی پر هدايت دي او بل ته هم هدايت کوي. او ټينګ کړئ دغه زما او خلفاً راشدينو مهديينو سنت د زامي

په غابنو سره) وایاکم ومحدثات الامور فان کل محدث بدعة وکل بدعة ضلالة، رواه احمد وابو داؤد والترمذي وابن ماجه (او ځان ساتئ له محدثو کارو او لارو څخه يعني چي نه په شريعت نه په صريح قرآن او نه په اشاره د قرآن او نه په دلالة النص سره ثابت وي او نه په حديث نبوي سره که څه هم خبر واحد وي او نه قول د خلفاً راشدينو او نه په اجتهاد د څلورو امامان د دين ابو حنيفه نعمان بن ثابت، محمد بن ادريس شافعي، امام مالک بن انس او امام احمد بن حنبل رحمهم الله تعالى ثابت وي، ولي چي محدث په معنا مذکور سره بدعت دی يعني له شريعت نبوي څخه خارج او هر بدعت گمراهي ده.

**درویش وایي:** چي بدعت هغه فعل نه دی لکه بعض جاهلان چي وايي چي دعاً بالهيئة الاجتماعية او يا دعاً بعد السنن بدعت او گمراهي ده بلکې هر فعل او قول چي په شريعت غراً کي اصل ولري ولو مرةً هغه نه بدعت دی او نه گمراهي.

**پوښتنه:** په حديث شريف کي کمامر تېره سوه چي زما امت به دراواويا (۷۳) ډلي سي ټوله به په اور کي وي يعني په دوږخ کي مگر نه يوه ډله الى اخيره، له حديث څخه مراد دادی چي ابدي به يې ځای دوږخ وي او که څرنگه؟

**ځواب:** هر هغه بدعت د يوې ډلي ددغو دواوويا ډلو څخه يعني چي هغه ناجيه څني وباسي که مفضي وکفر ته وه لکه غلاة الروافض او يا د خوارجو وامثالهم د هغو خو ابدي ځای دوږخ دی او که يې بدعت وکفر ته مفضي نه ؤ نو هغو لره ابدي دوږخ نسته لکن د بدعت د عقيدې عذاب ورته سته، حاصل دادی چي فرقه ناجيه چي ټوله عمل د شرع شريف سره برابروي هيڅ عذاب النار ورته نسته، او د نورو ډلو عمل که څه هم د شرع شريفي سره برابر وي لکن د عقيدې د مخالفت موقت دوږخ ورته سته فتامل في الفرق المذکور.

لَسْتَ مِنْهُمْ فِي شَيْءٍ ۚ إِنَّمَا أَمْرُهُمْ إِلَى اللَّهِ ثُمَّ يُنَبِّئُهُمْ بِمَا كَانُوا يَفْعَلُونَ

ته نه يې اې محمد ﷺ له دوی څخه په هيڅ شي يعني ته له دوی څخه بېزاره يې دوی له تا څخه بېزاره دي، په تحقيق سره ددوی امر يعني جزاً او مکافات مفوض وه خدای ﷻ ته دي يعني په قدر ددوی له حق څخه به جزاً ورکړي او

وروسته به دوی خبر کړي په هغه شیانو چي دوی یې فعل او عمل کاوه، یعني چي دوی به په ورځ د قیامت حاضر کړه سي اولاً به د تفرق په دین کي وسواً اعتقادهم جزاً ورکړل سي، وروسته به بیا جزاً د معاصیو ددوی ورکول کېږي.

**درویش وایي:** چي ددې آیت مضمون مامر منا قریباً یعني په ځواب کي د پوښتني.

**فائده:** ټوله عذابونه چي موعود دي مربوط په مشیت پوري د خدای ﷻ دي یعني ان شا عفی عنه لان العفو من الکرم. مګر په عذاب کي د کافر امید د عفوه نسته بدلائل من القرآن الکریم وبدلائل من الآحادیث المشهورة البالغة حد التواتر وباجماع الامة المرحومة.

**درویش وایي:** چي په روح البیان کي راغلي دي جزٔ ثامن سورة الانعام ص۱۲۵ قال الشیخ الشهیر بافتاده افندي مخاطباً لحضرة الهدائی قدس الله اسرارهما اشکر الله علی عدم اقترانک بالملاحدة فان الالحاد کمرض الجزام بعید عن الاصلاح قال واظن انهم لایخرجون من النار لانهم في دعوی المقال دون الحال انتهی قول الشهیر با فتاده، وروسته روح البیان ویلي دي ومن المدعیین القلندریة وهم الذین یحلقون لحاهم وشعورهم قال الحافظ الفارسي

قلندری نه بریشست و موی ویابرو
حساب راه قلندر بدانکه موی بموست
گذشتن ازسر مو درقلندری سهلست
چو حافظ انکه زسر بگذر قلندر اوست

ومن الفرق المبتدعة الجوالقیة دا هغه کسان دي چي ډېري خریي او بوریاوي یا نور خیرن کالي اخوندي، وقد نهی النبي ﷺ عن لباس الشهرة سواً کان من جنس الرقیق او الغلیظ بقصد الشهرة وامتیازه عن المسلمین قال علیه الصلوٰة والسلام کن کواحد من الناس آه ولاینفع الجوالق والکساٗ الغلیظ اذا کان المرء صاحب الریاٗ، قال السعدي قدس سره

بروی وریاٗ خرقه سهلت دوخت    گرش باخدا درفروشی نکوست

گر آوازه خواهی دراقلیم خاش برون حله کن گو درون حشوه باش
ور غزا کند مرد باید بود بر مخنث سلاح جنگ چه سود

**درویش وایي:** چي حاصل د کلام دادی چي عمل که لږ وي او که ډېر وي باید خالصتاً لله وي، لکن په اوسني زمانه کي ریاً او سمعه دومره عامه ده چي نه عالم ځني خالي دی نه عامي الا ما شاالله تعالی ومن الله التوفیق.

**مسئله:** که یو چا کوم عبادت شروع کړی په اخلاص د نیت په منځ کي د عبادت خلګو ولیدی او ده ته يې په زړه کي خوند ورکړی یعني شائبه د ریاً يې په زړه کي پیدا سوه، دا عبادت يې پر اول نیت باقي دی ریاً عارضه تاوان نه ورته کوي.

**مسئله:** که یو سړي یو څو ورځي د ریاً لپاره عبادت کاوه په اخیر کي يې ریاً له زړه څخه ووتله او هغه عبادت يې عادت وګرځېدی اخیري عبادت يې مقبول دی.

مَنْ جَآءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهٗ عَشْرُ اَمْثَالِهَاۚ

که چا راتګ وکړی په یو نېک خصلت سره نو دلره ثواب د لس مثله د هغه خصلت حسنه ستة وذالک ادناه، نو په عبارت کي حذف د مضاف ستة وهو لفظ الجزاً ای جزاً عشر امثالها کما اشرنا الیه في ترجمة عبارة الآیة، او ما ادنی ذکر کړی ولي د ثواب په اخلاص پوري د نیت اړه لري او دغه رنګه په وخت پوري، نو د چا دا مثل په لس مثل سره وي رفته رفته الی سبعمائة الی ماشاً الله.

**پوه سه:** چي له "من جاً بالحسنة" څخه مراد مؤمن دی اذ لاحسنة بدون الایمان کالصلوة بغیر وضوء، قاضي عیاض رحمه الله وایي چي اجماع د امت پر دې ده په هره نوع چي کافر وي که مشرک وي او که دهري او که نصاری وي یا یهودي وغیرهم لاتنفعهم اعمالهم ولایثابون علیها ولایخفف عنهم العذاب، لکن بعضهم اشد من بعض عذاباً بحسب جزائهم انتهی بزیادة. لکن اذا اسلموا یثابون علی اعمالهم وقت الکفر لما ورد في الحدیث النبوي ﷺ حسنات الکفار مقبولة بعد اسلامهم.

**فائده:** الزیادة المذکورة في الحسنات فضل من الله تعالی.

**درویش وایي:** چي حکمت الهي په تضعیف کي د حسنات دادی چي مؤمن

مفلس نه سي چي خصماً پر جمع سي، يعني سب هذا وضرب هذا وسرق مال هذا وامثال هذه فيدفع اليهم من المضاعفات العشرة الى غير نهايت حسب مشية الله تعالى لان التضعيف فضل من الله واصل الحسنة الواحدة عدل منه. وفي الحديث ويل لمن غلب احاده على عشراته.

وَمَنْ جَآءَ بِالسَّيِّئَةِ فَلَا يُجْزَىٰٓ إِلَّا مِثْلَهَا وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ

که چا راتګ وکړي په سيئاتو سره هر څوک چي وي او هره سيئه چي وي، نو هغه ته جزا نه ورکول کېږي مګر نه په مثل سره د هغه شي د عمل.

**پوښتنه:** کفر د کافر خو يو څو کاله وي، نو دی مستحق د عذاب ابدي ولي دی، نو به څرنګه ترجمه موږ کوو ددغه آيت ومن جا بالسيئة آه، او مسلمان چي تر مرګه پوري په يوه ګناه اخته وي او بې توبې مړ سي. ولي که خدای ﷻ دوږخ هم ورکړي او وه يې نه بخښي عذاب يې منقطع دی؟

**ځواب:** د کافر خو دا عزم ؤ په دنيا کي که تر ابده زه ژوندی يم پر دغه کفر به يم، نو چي عزم دده مؤبد ؤ نو جزا في النار يې هم مؤبده سوه او مسلمانان که څه هم ګناه کوي لکن په زړه کي يې داوي چي صبا به توبه کاږې هفته وروسته به توبه کاږې، وهکذا دده په زړه کي د توبې نيت سته. نو ځکه يې جزا في النار منقطع کېږي، وهذا ماذهب اليه اهل السنة والجماعة رحمهم الله تعالى.

بغوي رحمه الله په سند سره د ابي ذر رضي الله عنه وايي چي عليه الصلوٰة والسلام وايي چي خدای ﷻ ويلي دي "من جا بالحسنة فله عشر امثالها وازيد" يعني تر لس يې وربالا کوم تر اوويا پوري تر اووه سوه پوري الى ماشا الله ومن جا بالسيئة فجزا سيئة مثلها واغفر يعني يوه جزا د سيئه وربخښم يعني ان شئت ومن تقرب الي شبراً تقربت منه ذراعاً" که ماته نژدې سي يوه لوېښت زه وهغه ته يو ګز ورنژدې کېږم.

**درويش وايي:** چي دا ټوله تمثيلات دي ددې چي قرب د خدای ﷻ وبنده ته ډېر دی تر قرب د بنده وخدای ﷻ ته "ومن تقرب الي ذراعاً تقربت منه باعاً" که بنده نژدې سي وماته يو ګز زه وده ته نژدې کېږم يو باع يعني په قدر د مد اليدين

**درویش وایي:** چي وقس هذا على ماقبله يعني في كونه تمثيلاً "ومن آتاني يمشي آتيته هرولة" كه څوك ماته راروان سي په عادي تګ سره زه په ځغاسته ورځم. دا هم محمول پر تمثيل دی والا فالهرولة انما يتصور في الاجسام والله تعالى منزه عن الجسمية ولوازمها "ومن يأتيني بقراب الارض خطيئة لايشرك بي لقيته بمثلها مغفرة" كه څوك راسي ماته يعني په ورځ د قيامت په دومره ګنهو سره چي مځکه په ډکېږي زه ورسره په مثل د هغه راځم په بخښنه سره.

**درویش وایي:** چي په اتفاق د مفسرينو او د محدثينو داسي حديثونه مقيد دي په ان شئت سره فافهم.

**درویش وایي:** چي يوه ډله چي مرجيه يې بولي دغه احاديث پر ظاهر حمل کوي يعني د ان شئت قيد نه ورسره وايي ددوی مذهب دادی چي سره د توحيده يعني عدم الشرک هيڅ ګناه که ترکه اوامروي او که ارتکاب د منهياتو په ورځ د قيامت سبب د دخول النار ولو موقتاً او مانع د دخول الجنة نه ګرځي، دا مذهب باطل دی په آياتو د وعيد په قرآن مجيد کي او په احاديثو سره چي متواترة المعنى دي چي پر ترک د مأموراتو او پر فعل د منهياتو عذاب سته، وايضاً باطل باجماع الامة المرحومة فلابد في الحديث المذکور وامثاله من قيد ان شئت.

قُلْ إِنَّنِي هَدَانِي رَبِّي إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ دِينًا قِيَمًا مِلَّةَ إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿١٦١﴾

ته ووايه اې محمده ﷺ وکفارو ته د مکې چي په تحقيق ماته هدايت کړی دی زما رب ولاري سمي ته چي توحيد او دين د اسلام دی په دلائل عقليه وو سره او په وحي او ارشاد سره او په عقل سليم سره ثابت دی.

**يوه سه:** چي "ديناً" بدل دی له محل څخه د "الى صراط" ولي د ديناً معنا داده چي هداني صراطاً مستقيماً.

**يوه سه:** چي بغوي رحمه الله وايي چي معنا د قيماً او مستقيماً يوه ده چي هغه ملت د ابراهيم عليه السلام دی "ملة ابراهيم" عطف بيان دی د "ديناً" او نه و ابراهيم له مشرکينو څخه او د حنيفاً معنا مائل له باطل څخه چي شرک دی وحق ته چي توحيد دی.

**بوه سه:** چي په دې آيت سره رد دی پر مشرکينو د مکې، ولي چي دوی دا دعوه کوله چي مونږ پر ملت ابراهيم يو.

قُلْ إِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿١٦٢﴾

ته ووايه اې محمده ﷺ چي په تحقيق زما لمونځ کول او زما نسک. بعض مفسرين وايي چي مراد له نسک څخه ذبيحه د حج او عمرې ده، او مقاتل رحمه الله وايي چي مراد څني حج دی او بعض وايي دين دی وقيل عبادتي کما في القاموس والصحاح او حيوة يعني ژوند زما او مرگ زما خدای ﷻ لره دي چي رب د ټولو عالميانو دی لانه تعالی هو يحي ويميت.

لَا شَرِيكَ لَهُ

چي شريک نسته ده لره، او هغه ترجمه چي مظهري رحمه الله کړې ده يعني لا اشرک به احداً غيره معنی د لفظ قرآن نه ده، ولي چي عبارت د قرآن خو جمله اسميه ده او لا اشرک به آه خو جمله فعليه ده الا ان يقال انه تفسير باللازم فافهم.

وَبِذَٰلِكَ أُمِرْتُ وَأَنَا أَوَّلُ الْمُسْلِمِينَ ﴿١٦٣﴾

او په دغه دين زه امر کړه سوی يم، او زه اول د مسلمانانو يم يعني ما تاسي اهل مکې ته هغه خوښ کړی چي د ځان لپاره مي خوښ کړی دی، او دا قانون دی چي د هيڅ چا پر ځان بده نه ده پېرزو نو پر تاسي مي هم بده نه ده پېرزو.

ع،،، بنده راسه د خدای خپل سه لکه پر ځان داسي پر بل سه

بغوي رحمه الله وايي چي کفارو د قريشو و عليه الصلوٰة والسلام ته دا دعوت ورکړی چي د خپل آبا او اجداد دين ته راسه فانزل هذه الآية.

قُلْ أَغَيْرَ اللَّهِ أَبْغِي رَبًّا وَهُوَ رَبُّ كُلِّ شَيْءٍ

ته ووايه وکفارو ته د مکې چي آيا زه غير طلب کړم رباً يعني بتان د خدای ﷻ سره شريک وگنم. استفهام انکاري دی يعني داسي خو نه سم کولای، او حال دادی چي خدای ﷻ رب د هر شي دی.

**پوه سه:** چي دا جمله حاليه ده قائمقام د علت د انکار ده والحاصل ان کل

ماسواه مربوب لا يصلح للمعبودية فكيف اتخذه رباً. بغوي رحمه الله له ابن عباس رضي الله عنه
څخه روايت کړی دی چي وليد بن المغيرة به قريشو ته ويل اتخذوا سبيلي يعني
عبادة الاصنام زه به ستاسي ګنهونه ټوله پر ذمه واخلم فانزل الله تعالى هذه الآية.

وَلَا تَكْسِبُ كُلُّ نَفْسٍ إِلَّا عَلَيْهَا ۚ

کسب او عمل نه کوي يعني ګناه مګر نه پر خپل ځان يعني چي هغه ګناه اثم
او عذاب دده پر ذمه دی، نو نفع نه سي رسولای يو کافر به بل کافر ته په عبادت
کي د غير الله حتى چي متحمل سي د شرک د هغه په ورځ کي د قيامت.

وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ ۚ ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّكُم مَّرْجِعُكُمْ فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ﴿١٦٤﴾

او نه سي اخستلای يو نفس وازرة يعني ګناه کاره ګناه د بل نفس ګناه کاره
لان کل نفس رهينة بماکسبت وروسته يعني په ورځ د قيامت ورب ته ستاسي
رجوع ستاسي ده، نو خدای جل جلاله به تاسي خبر کړي په هغه شي چي تاسي به
اختلاف درلودی من الاديان المختلفة، نو خدای جل جلاله به سره جلا کړي محق له
مبطل څخه او هر يوه ته به جزا مناسبه ورکړي يعني حق والا ته به جنت ورکړي او
مبطل ته به دوزخ ورکړي.

وَهُوَ الَّذِي جَعَلَكُمْ خَلَائِفَ الْأَرْضِ

او خدای جل جلاله هغه ذات دی چي تاسي يې ګرځولي ياست خليفه ګان په مځکه
کي فالاضافة بمعنى في. يعني اهل د قرون ماضيه ؤ يې هلاک کړه او مځکه
يې په ميراث تاسي ته درکړې ده يا امت محمد صلى الله عليه وسلم.

وَرَفَعَ بَعْضَكُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجَاتٍ لِّيَبْلُوَكُمْ فِي مَا آتَاكُمْ ۗ

او پورته کړي يې دي بعض ستاسي لوړ تر بعض ستاسي. چي ستاسي امتحان
وکړي مع العلم الازلي په هغه کي يې تاسي ته درکړي دي من الجاه والغنى
والرياسة وغير ذالک من الامور الدنيوية هل تشرکون اولا او هل تطيعون اولا.

**يوه سه:** چي "درجات" منصوب دی علی التمييز من النسبة في رفع فکانه

قیل رفع درجات فوق درجات بعض یعني غني پر مسکین په مال کي او شریف پر وضیع په جاه کي او مطیع پر عاصي په قرب الی الله کي.

إِنَّ رَبَّكَ سَرِيعُ الْعِقَابِ

او په تحقیق خدای ﷻ ژر عذاب ورکونکی دی لاعداه یعني که يې چېري اراده د سرعت سي، فلا یرد ان بعض الاعدا یعیشون طول الحیوة بلا عقاب، وجه الرد ان سرعة العقاب مقید بارادة الباري ﷻ، او یقال چي عذاب د دښمنانو که څه هم په قبر کي بعد الموت دی او په ورځ کي د اخرت دی لکن ما آت فهو سریع، مثلاً یوم القیامة قریب من امس لان یوم القیامة طال او قصر مدة اتیانه والامس الماضي لایعود ابداً.

وَإِنَّهُ لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ

په تحقیق خدای ﷻ بخښونکی د گنهو دی وه مؤمنانو ته او مهربانه هم دی پر دوی زائد تر مغفرت د گنهو.

**نکته**: عقاب خدای ﷻ په سرعت سره موصوف کړی او اضافت يې ځان ته ونه کړی او د مغفرت نسبت يې وځان ته وکړی او رحمت يې هم ورضم کړی، او غفور يې په صیغه د مبالغې د لام مؤکد راوړی لپاره ددې چي غفران صفت ذاتي د خدای ﷻ دی او ذات د خدای ﷻ خو کثیر الجود دی او عقاب صفت عارضي د خدای ﷻ دی په سبب د کفر او معاصي د بندگانو کذا قال بعض محققي اهل التفسیر، وجا في الحدیث القدسي سبقت رحمتي علی غضبي انتهی سورة الانعام. له ابن عمر ﷺ څخه روایت دی قال قال رسول الله ﷺ انزلت سورة الانعام جملة واحدة یعني په یوه شپه کي په همراهي د اوویا زرو ملکو چي دوی لره وږوږ و په تسبیح ویلو کي او په حمد ویلو کي رواه الطبراني وابو نعیم

**سوال**: په شان نزول کي د بعضي آیتو د سورة انعام په تفسیر کي داسي راغلي دي چي دا آیت په فلانی موضوع کي نازل سوی دی او فلانی آیت په فلانی قصه کي نازل سوی دی کمامر في هذا التفسیر نو دا متفرق شان نزوله په منافي نه وي د نزول سره جملةً واحدةً؟

**ځواب**: چونکه دغه واقعات چي په شان نزول کي ذکر سوي دي په نژدې

ورځو کي د سورة الانعام پښتني سوي دي، نو دا منافات نه لري د نزول سره د سورة جملة واحدة والله اعلم بالصواب.

**درویش وايي:** چي لله الحمد والمنة والتوفيق تفسیر د سورة الانعام په ورځ د جمعې لس بجې په اوائل د سنه ۱۴۲۸ ه يعني په اخير کي د ربيع الاول ويا يه تکميل ته ورسېدی وارجو منه عزوجل ان يوفقني لاتمام هذا التفسير الى اخيره بالصحة والسلامة ويجعله لهذا الفقير خيراً باقياً الى يوم القيامة انه تعالى على كل شئ قدير وبالاجابة جدير.

التماس درویش از مطالعه کنندگان این است و از دانشوران زمان ودقیقه شناسان دوران امید درویش همان طور است که عدم رعایت دربعض از فقرات تفسیر وتساهل درتقدیم وتاخیر برخي از عبارات این تفسیر دل پذیر است دست رد برسینه پرکین نگذارند وبرجهل ونادانی حمل ننمائید بلکه از سهو ونسیان شمارند که این عقود لآلی را از بحور تفاسیر متفرقه وکنوز صفائح متشته بدست آورده وبمشقت تمام دررشته انتظام درآورده است والعذر عند کرام الناس مقبول تفسیر قرآن کریم از بس کارگران بوده لکن خالق لایزال درویش را برین کار گماشته، کریمه والله خلقکم وماتعملون گواه قول درویش است.

گرتوخواهی دردوعالم زندگی بنده گی کن بنده گی کن بندگی
کارکن تامزد یابی بر مزید کان ترا از بهر این کار آفرید

الهی بیزارم از طاعتی که مرا بعجب آورد
وبنده آن معصیتی که مرا بعذر آورد
الهی صحبت دوستان تو آب جانست
وصحبت غیر ایشان تاب جانست
الهی گل بهشت درچشم عارفان خار است
و جوینده تو با بهشت چه کار است
الهی شب فراق اگرچه تاریک است
دل خوش داریم که صبح وصال نزدیکست

درویش میگوید که تام تفسیر من تفسیر حنیفي ایوبي است حنیفي ازین

جهت که معتقد مذهب امام المسلمین ابو حنیفه رحمه الله میباشم وایوبي ازین سبب است که خودرا بپدر بزرگوار خود محمد ایوب رحمه الله منسوب کرده است یاسني مرحوم چه خوش گفته است.

ای سواری توخود بمرکب لنگ — که خبرداری از منازل سنگ
کی رسی سوی آستان حبیب — که تو دوری هزار هافرسنگ
پیشوا یی بگیر راه شناس — تا بمنزل رسی بغیر درنگ
مانده باشی بدست بی ره ورو — گرت آید از پیشوائی ننگ
ورتو کیش امام بگذاری — شیشه عمر را ازنی برسنگ
با ئمه نفاق گرداری — بررخ خود زدین نداری رنگ
غیر تقلید راه سنت نیست — تو ازین راه میشوی دل تنگ
تو کجا راه امام کجا — لافها میزنی چو روبه لنگ

---

سُورَةُ الأَعْرَافِ مَكِّيَّةٌ وَهِيَ مِائَتَانِ وَسِتُّ آيَاتٍ — بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ — فيها أربع وعشرون ركوعاً

رب یسر ولاتعسر بیدک الخیر

## الٓمٓصٓ ۝ كِتَٰبٌ أُنزِلَ إِلَيْكَ

صحیح داده چي دا له حروف مقطعیه وو څخه دی الذي لایعلم تأویله الا الله وحظنا منه، الاعتقاد بان کل ما اراد الله به حق ثابت.

**درویش وايي**: چي تفصیل او بیان د حروف مقطعه وو په سورة بقره کي تیر سو "کتاب" خبر د مبتدأ محذوف دی ای هذا کتاب. والمراد به القرآن العزیز چي نازل کړه سوی دی وتاته یعني له جانبه څخه د رب العالمین.

## فَلَا يَكُن فِي صَدْرِكَ حَرَجٌ مِّنْهُ

نو نه دي سي پیدا په سینه کي ستا یعنـي قلبـک تنګي له دې کتاب څخه.

**یوه سه**: چي مراد له ضیق الصدر څخه په قول د مجاهد رحمه الله شک دی او د شک تعبیر يې په لازم سره وکړی. ولي شکمن سړي ته ضیق الصدر هرومرو ورپېښېږي لکه متیقن سړی انشراح الصدر ورته حاصلېږي.

**فائده**: دا آیت مثل د هغه آیت دی فان کنت في شک مما انزل الیک مثلیت په دې معنا چي ظاهراً په دواړو آیتو کي خو مخاطب علیه الصلوٰة والسلام دی لکن مراد څني امت دی ای لاترتابوا ولاتشکوا في حقیة القرآن وکونه من عند الله، او ابو العالیة رحمه الله وايي چي مراد له حرج څخه حقیقت ضیق الصدر دی یعني ته سینه مه تنګوه په تبلیغ کي د قرآن پاک ومشرکینو ته د مکي مخافة ان یکذبوک فانه علیه الصلوٰة والسلام یخاف تکذیب قومه ایاه واعراضهم عنه. وجه النهي ان الانکار علی الرسل من جانب الکفار عادة قدیمة، نو د یو شي سره موافق چي بلا چي عامه سي نو اسانه سي او کلمة د فا یا لپاره د عطف ده پر "انزل الیک" او یا جواب د شرط محذوف ده یعني اذا انزل الیک فلا تکن آه.

لِتُنْذِرَ بِهٖ وَذِكْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۲﴾

چي ته وېرول په دغه کتاب سره کافران او پند به سي د مؤمنانو لپاره.

**پوه سه:** چي "لينذر" متعلق دی په "انزل" پوري او يا په "فلا يكن آه" پوري، والثاني اولى لانه اذا ايقن من عند الله دلاور كېږي پر انذار باندي، او دغه رنگه چي دی نه بېرېږي د کافرانو څخه او يا په دې چي خدای ﷻ توفيق درکوي پر ادا د رسالت او انذار.

**پوه سه:** چي "ذكري" مرفوع دی تقديراً عطف دی پر کتاب باندي، او يا خبر د مبتدأ محذوفي دی ای هذا ذكرى للمؤمنين او يا منصوب په اضمار د فعل ای تذكر ذكري للمؤمنين والى هذا اشار صاحب روح البيان بقوله ولتذكر المؤمنين تذكيراً وصرح به المظهري رحمه الله وصاحب روح البيان.

اِتَّبِعُوْا مَآ اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ مِّنْ رَّبِّكُمْ

او تاسي متابعت وکړي د هغه کتاب چي نازل کړل سوی دی تاسي ته يعني له جانبه څخه د خدای ﷻ په واسطه د رسول كريم ﷺ. او بعض مفسرين وايي چي له ما انزل څخه مطلق مراد دی يعني كه وحي جلي وي لكه قرآن او كه وحي خفي وي. نو سنن نبويه ته هم شامل دی لكن درويش وايي چي تعميم د سياق سره مناسب نه دی ولي چي له "كتاب انزل" څخه تر دې ځايه پوري خبره تړله په قرآن كي وه چي وحي جلي دی.

وَلَا تَتَّبِعُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اَوْلِيَآءَ ۭ قَلِيْلًا مَّا تَذَكَّرُوْنَ ﴿۳﴾

او تاسي متابعت مه كوئ پرته د خدای ﷻ د اولياً يعني د دوستانو كه انسانان وي او كه شيطانان وي چي تاسي په معصيت او شرک سره امر كوي.

**پوه سه:** چي "من دونه" حال دی له "اولياً" څخه وانما قدم الحال لكون ذی الحال نكرة كما هو القانون النحوي. او فائده د "من" د قيد داده چي هغه كسان به ووزي چي ولايت په جانب كي د خدای ﷻ وي كالانبياً عليهم السلام والعلماً الحقانيين، او "قليلاً" يا مفعول مطلق دی ای تذكراً قليلاً يا ظرف زمان دی ای زماناً قليلاً او كلمة د ما زائده ده لپاره د تاكيد د قلت، وهذان التقديران جاريان

في جميع القرآن في امثال ماههنا مثل قليلاً ماتشكرون وغير ذالک.

**پوه سه**: چي د "تذكرون" اصل تتذكرون ؤ يوه تايي ځني حذف كړه.

## وَكَمْ مِّنْ قَرْيَةٍ أَهْلَكْنٰهَا

**پوه سه**: چي "كم" خبريه دى مفيد د كثرت دى مبتدا ده "من قرية" يې تميز دى او اهلكناها يې خبر دى. او دېر له اهل قريه ؤ ځخه چي موږ يې اراده د هلاک كړې ده يعني وروسته تر ارسال الرسل واتمام الحجة عليهم او هلاک يې هم بالاستيصال وي.

## فَجَآءَهَا بَأْسُنَا بَيَاتًا أَوْ هُمْ قَآئِلُوْنَ ﴿۴﴾

نو راسي وه اهل ته د قرى عذاب زموږ هر نوع د عذاب چي ؤ د شپې.

**پوه سه**: چي "بياتاً" مصدر دى من البيوته شپه تېرول كه په خوب وي او كه په ويښه او دا مصدر دلته په معنى د بائتين دى حال دى له ضمير ځخه د جائها. داسي عذاب پر قوم د لوط عليه السلام مسلط كړه سوى دى او يا دوى قائلون دي داخل وي په قيلولة وهي استراحة نصف النهار سواً كان معه نوم اولاً لكه قوم د شعيب عليه السلام.

**پوه سه**: چي دا جمله عطف ده پر "بياتاً" عطف الجملة على المفرد او دا عطف روا دى چي جملې لره محل د اعراب وي كما ههنا لان الجملة منصوب محلاً فهي في حكم المفرد حال دى من القرية په معنى د اهل قريه.

**سوال**: واو عطف يې ولي نه راوړى يعني او وهم؟

**ځواب**: اجتماع د دوو حرف عطف چي او واو دى ممتنع دى په نحو كي، وحاصل الآية انه جائها العذاب في وقت غفلتهم غير منتظرين او ذكر ددغو وختو يې ددې لپاره وكړى چي دغه دوه وختونه د سخت غفلت دي فالعذاب فيها اشد من غيرهما كما لايخفى.

## فَمَا كَانَ دَعْوٰىهُمْ إِذْ جَآءَهُمْ بَأْسُنَآ إِلَّآ أَنْ قَالُوْٓا إِنَّا كُنَّا ظٰلِمِيْنَ ﴿۵﴾

نو نه وي دعا ددوى او تضرع ددوى هغه وخت چي راسي ودوى ته عذاب زموږ مگر دا قول ددوى چي په تحقيق موږ ؤ ظالمين يعني اقرار په ظلم او كفر سره او اظهار د پښېمانى ولا ينفعهم ذالک في دفع العذاب. شيرازي مرحوم وايي

تو پيش از عقوبت درعفوه كوب    كه سودى ندارد فغان زيرچوب

فَلَنَسْـَٔلَنَّ الَّذِيْنَ اُرْسِلَ اِلَيْهِمْ وَلَنَسْـَٔلَنَّ الْمُرْسَلِيْنَ ۝

هر آينه به موږ پوښتنه وکړو له هغو کسانو څخه چي رسولان دوی ته استول سوي وه په دې معنا چي تاسي قبول د قول د رسولانو وکړی او که مو رد او انکار وکړي، او هر آينه به موږ پوښتنه وکړو له راستول سوي کسانو څخه چي انبيآ عليهم السلام دي په دې معنا چي تاسي وظيفه د تبليغ او د انذار ددغو کسانو چي تاسي وراستول سوي واست پر ځای کړه او که نه.

**پوهه**: چي غرض له دې پوښتني څخه الزام د کفارو دی او استحقاق ددوی د عذاب الهي، له ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي بيهقي په خپل کتاب کي راوړي دي في تفسير هذه الآية نسال الناس جميعاً عما اجابوا المرسلين ولنسالن المرسلين عما بلغوا. عبدالله بن المبارک رحمه الله له وهب بن منبه څخه داسي روايت کړی دی چي ورځ چي د قيامت سي اسرافيل عليه السلام به وبلل سي يعني د خدای جل جلاله له خوا څخه په داسي حال کي د خوب چي د ورو غوښي به يې رپېږدي چي تا څه وکړه په هغه چي لوح محفوظ تاته سپارلي ؤ؟ اسرافيل عليه السلام به ووايي چي هغه ما جبرائيل ته ورساوه، بيا به جبرائيل عليه السلام راوغوښتل سي يعني د خدای جل جلاله له خوا څخه ترعد فرائصه چي تا څه وکړه په هغه چي اسرافيل تاته سپارلي ؤ؟ جبرائيل به ووايي چي ما و رسولانو ته ورساوه بيا به له رسولانو څخه پوښتنه وکړل سي چي تاسي څه وکړه په هغه شي چي جبرائيل تاسي ته سپارلی ؤ رسولان به ووايي چي موږ هغو خلګو ته ورساوه يعني فقبله بعضهم ورده اکثرهم الخ. مسلم له جابر رضي الله عنه څخه روايت کړی دی چي عليه الصلوٰة والسلام په خپله خطبه کي چي په حجة الوداع کي يې ايراده کړه مسلمانانو ته وويل انتم تسئلون عني فهل انتم قائلون. قالوا نشهد انک قد بلغت وادیت ونصحت. فقال عليه الصلوٰة والسلام اللهم اشهد.

فَلَنَقُصَّنَّ عَلَيْهِمْ بِعِلْمٍ وَّمَا كُنَّا غَآئِبِيْنَ ۝

او موږ به بيان وکړو د رسولانو ته او مرسل اليهم ته په هغه وخت کي چي امتيان د انبيآ عليهم السلام له تبليغ څخه د رسولانو منکر سي او امت د عليه الصلوٰة والسلام شاهدي پر ادا کړي "بعلم" يعني زموږ په معلوماتو سره. نو

مصدر په معنا د مفعول دی او یا معنا داده متلبسین بعلم یعني عالمین بظواهرهم وبطوانهم، او موږ نه وو غائب په تبیلغ کي د رسولانو او نه له امتو څخه غائب وو فیما انکروا علی الانبیاء او دغه رنګه فیما شهد علیهم امة محمد ﷺ.

**پوښتنه**: نو د سوال کولو له رسولانو څخه او له مرسل الیهم څخه چي خدای غائب نه ؤ څه فائده؟

**ځواب**: مقصود په سوال کي سرزنش د کافرانو دی او اظهار د شرف د انبیاء علیهم السلام دی او تفضیل د امت د علیه الصلوٰة والسلام دی چي ددوی په شهادت کفار محکوم سوه په دوږخ سره.

## وَالْوَزْنُ يَوْمَئِذٍ الْحَقُّ

او تلل د عملو په ترازو کي للتمییز بین جیدها وردیها وثقیلها وخفیفها.

**بوه سه**: چي "الوزن" مبتدا ده "یومئذ" یې خبر دی ای کائن یومئذ، او مراد له یومئذ څخه هغه ورځ ده چي پوښتنه له رسولانو څخه او د مرسل الیهم څخه وکړه سي او الحق خبر د مبتدا محذوفي دی ای هو الحق لاشبهة فیه او دا له اجزاؤ څخه د مؤمن به دی. بیهقي په باب البعث کي د ابن عمر ﷺ او هغه له عمر ﷺ څخه داسي روایت کړی دی په هغه طویل حدیث کي چي جبرائیل عليه السلام له علیه الصلوٰة والسلام څخه سوال وکړی یا محمد ما الایمان" نو علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل الایمان ان تؤمن بالله یعني بالتوحید وملائکته چي د هغه بندګان دي او د خدای ﷻ لوڼي نه دي لکه مشرکانو چي به ویل الملائکة بنات الله. او ایمان دی پر رسولانو د خدای ﷻ چي ټول پر حق دي او ته به ایمان لرې پر جنت او نار، او ایمان به لرې پر میزان باندي او ته به ایمان لرې بعث بعد الموت او ته به ایمان لرې چي ټوله خیر او شر له جانبه د خدای ﷻ دی، جبرائیل عليه السلام ورته وویل اذا فعلت هذا فانا مؤمن؟ علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل نعم جبرائیل عليه السلام وویل صدقت.

**درویش وایي**: چي دا حدیث په غایت طول سره بخاري روایت کړی یعني مالایمان ثم مالاسلام ثم مالاحسان، لکن په هغه حدیث کي لفظ د میزان نسته

والله اعلم بالصواب. عبدالله بن المبارک رحمه الله په صحیح روایت له ابن عباس رضي الله عنهما څخه داسي روایت کړی دی في المیزان انه له لسان وکفتان لکن قدیماً وحدیثاً په کیفیت کي د وزن الاعمال بالمیزان اختلاف موجود دی، مشهوره په نیږ د جمهور داده چي صحیفه د اعمال حسنه په یوه پله کي ایښول کېږي او صحیفه د اعمال سیئه وو یې په بله پله کي د ترازو ایښول کېږي بیا نو هره یوه که درنه سوه که د حسنه وو دا درنه سوه فهو من اهل الجنة او که د سیئه وو دا یې درنه سوه فهو من اهل النار ان لم یغفرله العزیز الغفار ولم یشفعه النبي المختار، او بعض علماً وایي چي هر یوه ته د ښه عمل او د بد عمل خدای جل جلاله صورت حسنه او صورت سیئه ورکوي بحسب علمه نو دا صور چي اجسام دي سره تلل کېږي.

**درویش وایي**: چي سبب ددې توجیهاتو دادی چي خودي اعمال خو اعراض دي والوزن مختص بالاجسام. والدلیل علی قول الجمهور هغه حدیث دی چي ترمذي، ابن ماجه. ابن حبان او حاکم یې روایت کړی دی له ابن عمر رضي الله عنه ده وویل چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل چي یو سړی به زما له امت څخه په حضور د خلکو راوستل سي په ورځ د قیامت. نو هغه ملکي نشر او خلاص کړي نهه نیوي (۹۹) کاغذه چي هر یو به دومره اوږد وي لکه مد البصر او دا نهه نیوي کاغذه ټول له د سیئاتو وي نو هغه سړي ته وویل سي چي په دغو کاغذو چي نوشته دي ته انکار څني لرې، آیا پر تا ظلم کړی دی حافظانو د اعمالو یعني ملکو چي ستا ښه او بد یې نوشته کول دی ورته وو ایي لا یارب یعني نه انکار لرم او نه چا ظلم راسره کړی دی، نو خدای پاک ورته وو ایي چي هو ته یوه حسنه لرې او نن ورځ ظلم نسته، نو یوه کوچنۍ پارچه په لاس ورکړي چي په هغې کي صرف اشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمداً رسول الله نوشته وي او ورته وو ایي چي ورسه په مېزان کي یې سره وتله هغه سړی خدای پاک ته وو ایي چي زه پوهېږم چي نه نیوي (۹۹) کاغذان د بدو عملو پر دې کوچني کاغذ باندي ډېر او بېخي بالا دي نو مېزان ته څه ضرورت سته. الله جل جلاله ته ورته وو ایي نن ورځ هیڅ ظلم نسته نه به لاچاره دا نهه نیوي سجلات او کوچنی کاغذ سره تلي په مېزان کي، نو

چونکه د خدای ﷻ له قدرته څو څوک مخالفت نه سي کولای په ورځ د قیامت، نو سري زره ناره ورسي کوچنۍ کاغذ د میزان په یوه پله کي او نهه نيوي سجلات په بله پله کي سره کښيږدي، نو د کوچني کاغذ پله پر مخکه پرته وي او نهه نيوي سجلات په هوا کي وي لانه لايثقل مع اسم الله شئ.

**درويش وايي**: چي دا خو ډېر د اميد حديث دئ او ددې په وياړ بايد هيڅ څوک د امت محمدي چي منافق نه وي که هر څو گناه کاره هم وي دوزخ ته به ولاړ نه سي، ولي چي د هر مؤمن سره شهادتين لساناً او قلباً ورسره وي لکن په حديث صحيحه مشهوره کي راغلي دي چي بخاري او نورو کتابو يې روايت کړی دی چي بعض افراد د امت د عليه الصلوٰة والسلام په سبب د گنهو موقتاً دوزخ ته ځي فما وجه التوافق بين الحديث الطويل المذكور وهذه الاحاديث المروية؟ ددې ځواب دادی چي دا حديث د خدای ﷻ په مشيت سره مقيد دی هذا ما عندي في جواب السوال المذكور والعلم عند الله.

**نصيحت**: امام زين العابدين رحمه الله الذي مرت في اخير الجلد السادس مناجاته وبعض الابيات التي قالها تحت استار الكعبة المباركة برواية الاصمعي

عجبت للمتكبر الفخور الذي كان بالامس نطفة
ويكون غداً جيفة
وعجبت كل العجب لمن شك في الله وهو يرى خلقه
وعجبت كل العجب لمن انكر انشاة الآخرة
وهو يرى النشاة الاولى
وعجبت كل العجب لمن يعمل لدار الفنا وترك دار البقا

انتهى بعبارته المضيئة المباركة.

**درويش وايي**: چي دليل د بعضو د قول چي دمخه تير سو چي به عمل خدای پاک يو صورت حسنه ورکوي آه. هغه اخير حديث د بخاري د کتاب دی چي روايت يې ابو هريره رضي الله عنه کړی دی قال قال رسول الله ﷺ كلمتان خفيفتان على اللسان ثقيلتان في الميزان حبيبتان الى الرحمٰن (دوي کلمې دي چي

سپکې دي پر ژبه او درنې دي په ترازو کې او د خدای ﷻ په نیز ډېرې محبوبې دي "سبحان الله وبحمده سبحان الله العظيم" وجه الاستدلال بهذه الحديث لقول البعض ان نفس الكلمة لايكون لها ثقل، فعلم انه يعطى لهاتين الكلمتين صورتين حسنتين ثقيلتين في الميزان، وايضاً يدل على مذهب ذالک البعض ماروی مسلم عن ابي مالک الاشعري رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ الطهور شطر الايمان والحمد لله يملأ الميزان آه لان الملئ انما يكون بالجسم.

**درويش وايي:** چې والمعتزلة انكروا الميزان وتاولوا الآية المذكورة والتفصيل مذكور في كتب علم الكلام.

**فَمَنْ ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ**

که د چا درنې سي حسنات دده التي توزن فالموازين جمع الموزون ويحتمل چې موازين دي جمع د ميزان وي والجمعية باعتبار اختلاف الموذونات هذا ماقاله صاحب روح البيان، او مظهري چې وايي که جمع د ميزان سي نو جمعيت بې پر دې دلالت کوي چې هر سړي لره جلا ميزان دی فهو ليس لشئ ولم ينقل من احد ممن يعبأ به.

**فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿٨﴾**

نو هغه کسان دي فائز په ثواب او نجات سره.

**پوه سه:** چې جمع راوړل د "اولئک" په اعتبار د معنا د من دی او "هم" ضمير فصل دی لپاره د تخصيص د مسند دی چې فلاح د په مسند اليه پورې چې اولئک دی.

**وَمَنْ خَفَّتْ مَوَازِينُهُ فَأُولَٰئِكَ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنفُسَهُم بِمَا كَانُوا بِآيَاتِنَا يَظْلِمُونَ ﴿٩﴾**

او د چا چې سپک سي موذونات دده، نو دا هغه کسان دي چې په تاوان کې واقع کړي خپل ځانونه يعني په ضائع کولو سره د فطرة سليمه التي فطر الله الناس عليها كما في الحديث النبوي كل مولود يولد على فطرة الاسلام آه چې دوی وه چې زموږ پر آيتو ظلم کاوه چې په ځای کې د تصديق بها يې تکذيب کاوه.

**پوه سه:** چې "من خفت موازينه" که څه هم عام دی کافر لره چې حسنه اصلاً نه لري لعدم شرط الحسنة فيه وهو الايمان وللمؤمن الذي ترجحت حسناته على سيئاته.

لکن مراد ځني دلته کافران دي په قرينه ددې چي غالباً عادت الهي د خدای ﷻ په قرآن کي دادی چي کفار وروسته تر ابرار ذکر کوي هذا ماقاله المظهري رحمه الله.

**درویش وايي:** چي قطع نظر له عادت الهي ځخه د من شرطي جزاً چي په فاولئک آه پر مذکوره تفسیر ده فاولئک الآية پر مؤمن چي سيئات يې تر حسناتو بالا وي نه صادقيږي ولي چي مؤمن مذکور خو په ماکانوا بآياتنا يظلمون نه دی داخل، ولي چي مراد د ظلم بالآيات سره تکذيب د آياتو دی او دا تفسير د فاولئک الاية متفق عليه دی د مظهري، برسوي او سيد آلوسي بغدادي فتامل.

**فائده:** په حديث صحيح کي راغلي دي ما وضع في الميزان احسن من حسن الخلق" ولي حسن الخلق له اخلاق ځخه د رب العالمين دی والعباد ماموروں بالتخلق باخلاقه تعالی کما ورد في الحديث الصحيح تخلقوا باخلاق الله.

**فائده:** نقل دی چي يو سړی به وي چي پله د حسناتو به يې ډېره سپکه وي نو د وريځي په شکل به يو شی راسي په پله د حسناتو کي به ولوېږي، نو ملکي به ورته ووايي دا فضيلت د هغه علم دی چي تا خلګو ته ښووی.

**سوال:** تعليم خو له جملې ځخه د حسناتو دی، نو ولي اولاً په پله کي د حسناتو نه ايښوول کيږي؟

**ځواب:** اظهاراً لفضيلة التعليم عند كافة الناس الحاضرين عند الميزان.

**فائده:** تعليم د علم عام دی که په خوله وي او که په کتابت او که تصنيف في العلوم الدينية.

**فائده:** په احوال د آخرت داسي راغلي دي چي که د يو سړي د حسناتو او د سيئاتو پله سره برابره وي، نو خدای پاک ورته ووايي يعني په ذريعه د ملکو لست من اهل الجنة ولا من اهل النار، نو يوه ملکه راسي چي ببخي کوچني کاغذ راوړي چي فقط أف پکښي نوشته وي اشارةً الى قوله تعالى ولا تقل لهما أف يعني مه وايه مور او پلار ته کلمه د اف چي په عربي لپاره د زجر ده دا کوچنی کاغذ يې په پله د سيئاتو کي وراچوي د سيئات پله يې ډېره درنه سي، نو خدای پاک امر وکړي ملکو ته چي دوږخ ته يې بوزئ، دی چي د دوږخ وخواته روان کړي، نو دی ملکو ته

ووايي چي ما يو وار خداى پاک ته ورولئ خداى پاک ملكو ته ووايي چي رايي ولئ، نو خداى پاک ورته ووايي يا ايها العاق لاى ماتطلب الرد؟ دا سړى ورته وايي چي زه اور ته روان وم ولابد لي منها او زه عاق د پلار وم، نو زما پلار هم ملكو د اور پر خوا روان كړى ؤنو زما د پلار عذاب هم پر ما واچوه چي زما عذاب مضاعف سي خو زما پلار جنت ته بوزئ، د حديث لفظ خو داسي دى "فيضحك الله" لكن حقيقةً ضحك مراد نه دى بلكي مراد ځني اظهار د ضا دى نو خداى پاک وزوى ته ووايي چي عققته في الدنيا وبررته في الآخرة خذ بيد ابيک والطلقا الى الجنة.

وَلَقَدْ مَكَّنّٰكُمْ فِى الْاَرْضِ وَجَعَلْنَا لَكُمْ فِيْهَا مَعَايِشَ قَلِيْلًا مَّا تَشْكُرُوْنَ ﴿۱۰﴾

لام موطئه د قسم محذوف دى، په تحقيق موږ قدرت دركړى دى تاسي ته پر استوګني پر ځمکه كي والتصرف فيها بانواع التصرفات "معائش" جمع د معيشت ده يعني اسباب د ژوندانه د چارو لكه كښت د انواعو د حبوب او لكه ميږي غواوي د خوراک مواد د ځنګلو اوبه او كسبونه او تجارت "قليلاً ماتشكرون" اى شكراً قليلاً. نو قليلاً مفعول مطلق دى د تشكرون او زماناً قليلاً، نو قليلاً ظرف دى د تشكرون،

وَلَقَدْ خَلَقْنٰكُمْ ثُمَّ صَوَّرْنٰكُمْ ثُمَّ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ ﴿ق﴾

يعني موږ اندازه كړي ياست في العلم الازلي چي ستاسي به اعيان ثابته جوړيږي، بيا مي تاسي ته صورتونه دركړه يعني صورنا آباكم آدم جعل تصوير آدم تصوير الكل لان تصوير آدم كانه تصوير الكل، او ابن عباس رضی الله عنه وايي اى صورنا اصولكم وآبائكم وصورناكم في ارحام امهاتكم.

**يوه سه**: كه مراد له ضمير ځنه د خطاب يوازي آدم عليه السلام وي فلا كلام في التراخي المفهوم من كلمة ثم، ولي چي امر د سجدې متراخي تر خلق د آدم عليه السلام ؤ، او كه مراد په ضمير كي د خطاب ذرية وي فلا موقع لتاخير الامر بالسجود من خلق الذرية فكلمة ثم بمعنى الواو فافهم.

**يوه سه**: چي شرح ددې آيت په كمال تفصيل سره په تفسير كي د سورة بقره تېر سوى دى،

**پوه سه:** چې مراد له سجدې څخه تحيه ده او تکريم چې صرف سر کښته کول دي لا السجود الشرعي وهو وضع الجبهة بقصد العبادة لان هذا السجود لغيره تعالى شرک او که مراد سجوده شرعي وي نو دا سجده خدای ﷻ ته ده آدم يې صرف جهت دی، لکه کعبه شريفه د مسلمانانو لپاره.

فَسَجَدُوٓا۟ إِلَّآ إِبْلِيسَ لَمْ يَكُن مِّنَ ٱلسَّٰجِدِينَ ﴿١١﴾

نو ملکو ټولو بېله درنگه سجده وکړه مگر نه ابليس چې دی نه سو له سجده کونکو څخه و آدم ؑ ته.

قَالَ مَا مَنَعَكَ أَلَّا تَسْجُدَ إِذْ أَمَرْتُكَ

دا جمله مستأنفه بيانيه ده کانه قيل فماذا قال الله حينئذٍ يعني چې ابليس سجده ونه کړه، نو معنا دا چې خدای پاک ورته وويل چې ته څه شی منع کړې له دې څخه چې تا سجده کړې وای، نو کلمه د لا صلة يعني زائده ده ولي که زائد نه سي نو معنا خو داسي کېږي څه شي ته منع کړې له عدم سجده څخه منع له عدم سجده څخه خو سجده ده او ده سجده نه وکړه چې ما ته امر کړې په سجده سره.

قَالَ أَنَا۠ خَيْرٌ مِّنْهُ خَلَقْتَنِى مِن نَّارٍ وَخَلَقْتَهُۥ مِن طِينٍ ﴿١٢﴾

شيطان وويل چې مانع له سجدې څخه د آدم دا ؤ چې زه تر آدم افضله وم په دې دليل چې زه تا له اوره پيدا کړی يم او آدم دې له خټو څخه پيدا کړی دی، او اور جوهر مضئ دی او خټې يو حقير مظلم جوهر دی، نو چې زه افضل وم تر آدم نو افضل نه ښايي چې مامور دې په سجده سي و مفضول ته. نو ابليس امر ته د خدای ﷻ د حقارت او اهانت په سترگو وکتل وکان ذالک سبباً للعنة الابدية لابليس لانفس عدم السجود بعد الامر الالٰهي لان من المومنين من لا يصلى فانه لا يصير بذالک ملعوناً وان کان ترک الصلوة معصية لکن دی ملعون خطا وتی چې افضليت په اعتبار د عنصر او ماده وباله بل الافضلية باعتبار الاطاعة. قال ابن عباس ؓ اول چا چې قياس وکړی او په قياس کي خطاوتی هغه ابليس ؤ نو څوک چې قياس د ديني امورو په رأيه سره هغه به د ابليس ملگری وي.

**پوښتنه**: ائمه اربعه پر دې متفق دي چي قياس يو له ادله اربعه وو څخه د احکام شرعيه وو دی، نو له انکار څخه پر قياس د شيطان نفي د قياس شرعي نه لازميږي؟
**ځواب**: قياس شرعي خو هلته حجت دی چي په هغه حکم يا مسئله کي نص آيت يا حديث نه وي موجود د شيطان په قياس کي نص موجود ؤ وهو قوله تعالى قال ما منعک الآية، او ابليس سره د امر الهي قياس وکړی بقوله خلقتني من نار آه، فما قلنا حکم بتخطية قياس لابنفي القياس.
**درويش وايي**: چي په تخطيه د قياس د ابليس اهل الظواهر وغيرهم من منكري القياس ډېر خوشحاله دي، دوی وايي چي خدای ﷻ په قرآن کي عمل بالقياس د ابليس باطل وباله، نو معلومه سوه چي قياس په شرعه کي حجت نه دی، ع. . . . ببين تفاوت راه تاکجا به کجا.
**سوال**: د فقهي شريفي په کتابو کي راځي چي خطأ د مجتهد معفو ده؟
**ځواب**: خطأ د هغه مجتهد معفو ده چي دی طالب د حق وي او بازل د خپل جهد وي په طلب کي د حق لاخطأ اجتهاد الباغي المتکبر الطالب للعلو کابليس عليه اللعنة، او دليل پر دې باندي دادی چي خدای ﷻ پاک چي ملکو ته وويل "اني جاعل في الارض خليفة" ملکو قياساً على الجن ورته وويل "اتجعل فيها من يفسد فيها الآية" نو چونکه دا استفهام او قياس د ملکو د رد د حکم الهي لپاره نه ؤ بلکي خپل ځانونه يې پوه کول په حکمت الهي په خلق کي د ابو البشر صلى الله عليه وسلم، نو ځکه خدای ﷻ دوی مردودي نه کړې لکه ابليس بلکي صرف اشارةً يې دا جواب ورکړی "اني اعلم مالا تعلمون"
**درويش وايي**: چي ډېر ښه ويلي دي هغه چا چي دا شعر يې ويلی دی

صورت خاک ارچه دارد تيره در تيره گی
نيک بنگر کزره معنا صفا اندر صفا است
اين همايون خاک کاندر وصف او صاحبدلی
نکته گفتش که ازوی ديده جانرا صفا است
جستن گو گرد احمر عمر ضائع کردنست
روی برخاک سياه آور که يکسر کيميا است

وفي المثنوي

گفت نار از خاک بی شک بهتر است — من ز نار او ر خاک اکدر است
پس قیاس فرع بر اصلش کنیم — او ز ظلمت من ز نور زوشنیم
گفت حق بلکه لا انساب شد — زهد وتقوی فضل را محراب شد
این نه میراث جهان پانی است — که بانسابش بیان جانیست
بلکه این میراث های انبیاً است — وارث اینحال جانهای اتقیاست
پور آن بوجهل شد مؤمن عیان — پور آن نوح بنی از گمرهان
زاده خاکی منور شد چو ماه — زاده آتش تو ئی ای روسیاه

**پوه سه**: چي پور و زوی ته وايي چي له پور ابوجهل څخه عكرمه بن ابوجهل ﷺ مراد دی چي مؤمن و" د پور نوح څخه كنعان بن نوح مراد دی.

## قَالَ فَاهْبِطْ مِنْهَا

خدای ﷻ وابليس ته وويل چي ده استكبار مختار كړی، كښته سه له جنت څخه يعني جنت ځای د مستكبرينو نه دی، وقيل من السماً يعني چي په اسمان كي ملائكه كرام اوسېږي نه مستكبر شيطان، وكلمة الفاً لجواب قوله انا خير منه يعني ان كنت متكبراً فاهبط منها فانها للمتواضعين المطيعين.

## فَمَا يَكُونُ لَكَ أَنْ تَتَكَبَّرَ فِيهَا

نه وه وړ او نه وه صحيح تا لره چي تكبر دي كولای په جنت يا په اسمان كي، نو له دې څخه دا معلومه سوه چي تكبر د اهل جنت سره نښايي فانه من خواص الكبير المتعال ﷻ، او دا هم معلومه سوه چي ابليس چي خدای ﷻ وشاړه له خپله درباره په سبب د تكبر، قال السعدي الشيرازي

تكبر عزازيل راخوار كرد — بزندان لعنت گرفتار گرد

له عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روايت دی چي مسلم راوړی دی قال قال رسول الله ﷺ "لا يدخل الجنة احد في قلبه مثقال ذرةٍ من خردل من ايمان (نه سي داخلېدای وجنت ته هيڅ څوک چي په زړه كي يې په مقدار د يوې ذرې د سپلنې وي) فقال رجل الرجل يحب انيكون ثوبه حسناً ونعله حسناً (يو سړي و عليه الصلوٰة والسلام ته وويل چي د هر سړي دا خوښه ده چي كالي يې ښائسته وي او

چوتي يې ښائسته وي مطلب دا چې ددې سائل په خيال کې دا وه چې دا به کبر وي) قال عليه الصلوٰة والسلام ان الله جميل يحب الجمال (عليه الصلوٰة والسلام ووېل چې په تحقيق خداى ﷻ جميل دى يعني په ښوو صفاتو د جمال، نو جمال د بنده يې هم خوښ دى، يعني ښه جامې او ښې چوتي) الكبر بطر الحق وغمط الناس (كبر دادى چې هغه شى چې خداى ﷻ يې حق بولي او دى باطل بولي کتوحيد الله وعبادته لکه ابليس چې خداى ﷻ سجده وه آدم ﷺ ته حق وګڼل او ابليس غلطه وبلل، او د متکبر خوى دادى چې خلګو په نظر د استهانت او استحقار ګوري يعني په سپکاوي.

**درويش وايي:** چې پر دې تقدير د تفسير د کبر چې عليه الصلوٰة والسلام وکړى بعض ملايان چې وايي چې دا حديث صرف لپاره د تشديد دى حقيقت يې نه دى مراد غلطه خبره ده، ولي چې پر تفسير مذکور خو داسي سړى کافر دى، نو خود او يقيناً جنت ته نه سي داخلېداى، په متفق عليه حديث کي يعني چې بخاري او مسلم دواړو راوړي دي راغلي دي چې عليه الصلوٰة والسلام ووېل چې زه تاسي ته خبر نه درکړم په اهل جنت سره هغه څوک دى چې ضعيف وي يعني بېچاره او خوار وي او خلګ هم د خوارى او بېچارګى په سترګه ورته ګوري لکن لو اقسم على الله لابره که پر خداى ﷻ قسم واخلي يعني زما دي قسم وي په خداى چې فلانى کار به کېږي يا به سږ کال ښه بارانونه کېږي الى غير ذالک، خداى ﷻ په قسم کي دى حانثوي بلکې هغه کار هغسي کوي، بيت

بر فلک برتر بود اسرار او شيئاً لله شيئاً لله کار او

عليه الصلوٰة والسلام زياته کړه الا اخبركم باهل النار كل عتل جواظ مستكبر (زه خبر درنه کړم په اهل النار سره هر جفا کاره يعني ظالم، جواز چې جمع کونکى يعني د مال له لارې چې وي او منع کونکى يعني د زکوٰة وي او متکبر وي.

فَاخْرُجْ إِنَّكَ مِنَ الصّٰغِرِينَ ﴿١٣﴾

ووځه له جنت څخه چې ته له ذليلانو او سپکو څخه يې يعني چې پر خداى ﷻ او پر اولياو د خداى سپک او ذليل يې چې ستاذم به کوي هر انسان او

پرتا به لعنت وايي هر لسان، په حديث شريف کي راغلي دي چي روايت يې بيهقي کړی دی له عمر ﷺ څخه که چا تواضع او عاجزي مختاره کړه لپاره د خدای ﷻ يعني د خدای ﷻ له مخلوقه سره رفعه الله فهو في نفسه صغير يعني حقير وفي اعين الناس عظيم ومن تکبر وضعه الله (که چا ځان غټ سړی باله يعني په جامعه کي د انسانانو خدای ﷻ به يې کښته کړي "فهو في اعين الناس صغير" يعني دی په سترګو کي د خلګو حقير او سپک سړی وي "وفي نفسه کبير" دده په نفس کي ځان ډېر غټ او محترم سړی ورځي "حتی لهو اهون عليهم من کلب وخنزير " حتی هر آئينه به دی سپک وي پر خلګو تر سپي او تر سرکوزي.

**حکايت**: يو قاضي يوه ورځ ابو يزيد بسطامي قدس سره ته ورغلی، او ورته وه يې ويل چي زه هغه شيان پېژنم چي ته يې پېژنې يعني توحيد د خدای ﷻ، جنت او دوزخ الی غير ذالک لکن په تاثير يې نه پوهېږم؟ بايزيد ﷺ ورته وويل چي يو اندازه جوز مثلاً يو يا دوه کيلو په توبره کي واچوه او په غاړه يې وځړوه او په بنار کي ناره وهه چي هر چا چي زه يوه چپلاخه ووهلم يو جوز ورکوم، تر هغو پوري چي جوز خلاصېږي که دي داسي وکړه نو په تاثير به يې پوه سې، قاضي وويل استغفرالله، بايزيد ورته وويل دا استغفار دي بله ګناه وکړه، زه تاته هغه شی دربنيم چي تا له کبره خلاص کړي وانت تستغفر من ذالک لکمال کبرک، ابو جعفر بغدادي ﷺ وايي چي شپږ خويه دي چي د شپږ قسمه خلګو سره نازېبا دي (۱)طمع په علماؤ کي (۲)تلوار په حکم کي د اميرانو سره (۳)بخل د اغنياؤ سره (۴)کبر د فقراؤ سره (۵) بې عقله خبري کول د مشائخ سره (٦)لوم پر چا ويل د خاوندانو سره د حسب او رتبې.

**درويش وايي**: چي دا شپږ سره خويونه په ډکه پېمانه په مسلمانانو کي مروج دي الا من عصمه الله ﷻ، وفي المثنوي.

علتی بدتر ز پندار کمال | نيست اندر جانت ای مغرور وضال
ازدل وازديده بس خون رود | تا زتو اين معجبی بيرون شود
علت ابليس انا خير بد است | اين مرض درنفس هر مخلوق هست

گرچه خود را بس شکسته بیند او — آب صافی دان وسرگین زیر جو
چون بشو رانی مراورا زامتحان — آب سرگین رنگ گردد درزمان
درنگ جو هست سرگین ای فتی — گرچه جو صافی نماید مر ترا

والمقصود ان پند از الکمال درهر نفس ودل موجود است اگرچه او خودرا صاف از پندار گمان وعجب وتکبر صاف می نماید لکن بامتحان حال او پندار کمال درنفس ظاهر میشود چناچه سرگین زیر جو بشوریدن آب جو ظاهر میشود درویش میگوید والامر کک الامن عصمه الله.

قَالَ أَنظِرْنِي إِلَىٰ يَوْمِ يُبْعَثُونَ ﴿١٤﴾

وویل ابلیس هغه چي خدای ﷻ دی له جنت څخه وشړی چي ماته مهلت راکړه یعني اوس مي مه وژنه تر هغه ورځي پوري چي اولاد د آدم ﷺ بعث کبږي یعني له قبرو څخه غرض یې داو چي تر نفخه ثانیې پوري ما مه وژنه.

قَالَ إِنَّكَ مِنَ الْمُنظَرِينَ ﴿١٥﴾

خدای پاک ابلیس ته وویل چي ته له منظرینو څخه یعني اوس دي نه وژنم.

**پوه سه**: چي په بل آیت کي د ابلیس د مهلت په باره کي داسي راغلي دي انک من المنظرین الی یوم الوقت المعلوم، وهو النفخة الاولی ده چي په هغه کي به تول له ژوندي انسانان او ذی روح شیان مري، نو ددې معنا داده چي ابلیس به هم په هغه ورځ مري.

**سوال**: ابلیس خو په دمخه آیت کي مهلت غوښتی ؤ الی یوم یبعثون پوري چي نفخه ثانیه وه او په هغه بل آیت کي خو مهلت تر نفخه اولی پوري ورکړه سو نو ددې دوو آیتو تر منځ به منافات نه وي؟

**خواب**: د شیطان خو غرض په دې مهلت کي داؤ چي وروسته به راسي چي اولاد د آدم گمراه کوم او د حق له لاري به یې د باطل ولاري ته راکاږم، نو په نېږ د نفخه اولی چي انسانان تول له منځه ولاړ سي. نو شیطان په منځ کي د نفختین څوک گمراه کوي، نو د نفخه اولی او د نفخه ثاني پر ابلیس څه فرق دی، نو خود په نفخه اولی کي به ابلیس هم مري، نو گویا د ابلیس مراد له الی یوم یبعثون

وَلَا تَجِدُ أَكْثَرَهُمْ شٰكِرِيْنَ ﴿۱۷﴾

نو ته به نه کړې پیدا اې خدایه ډېر د بني آدم په قول د ابلیس شاکران یعني مسلمانان.

**پوښتنه**: ابلیس خو علم غیب نه درلودی نو له څه درکه ده ویل ولاتجدن آه؟

**ځواب**: د علم او یقین څخه دا خبري نه دي کړي بلکې له ظن څخه لقوله تعالی ولقد صدق علیهم ابلیس ظنه.

**سوال**: ظن خو منشأ غواړي نو منشأ د ابلیس د ظن څه وه؟

**ځواب**: ابلیس په ادمیانو کي اسباب د شر ډېري ولیدلې منها الشهوة او د شهوت څخه زنا، لواطت پیدا کېږي، او بل غضب چي له هغه څخه قتل وقتال پیدا کېږي وحب المال چي له هغه څخه سود، رشوت، سرقه، قطع الطریق وغیره پیدا کېږي او امید د خیر ډېر چي عقل سلیم دی نو ځکه یې دا ظن وکړی ولاتجد اکثرهم الآیة، سعدي شیرازي وایي.

ابلیس درحق ما طعنه زد — کز ایشان نیاید بجز کاربد
فغان ازبدیها که درنفس ماست — که ترسم شود ظن ابلیس راست
چو ملعون پسند آمدش قهرما — خدایش بر انداخت از بهرها
کجا سربر آریم ازین عارونگ — که با او به صلحم وباحق بجنگ

قَالَ اخْرُجْ مِنْهَا مَذْءُوْمًا مَّدْحُوْرًا لَمَنْ تَبِعَكَ مِنْهُمْ لَأَمْلَئَنَّ جَهَنَّمَ مِنْكُمْ أَجْمَعِيْنَ ﴿۱۸﴾

خدای ﷻ ابلیس ته وویل چي ووځه له جنت څخه په داسي حال کي چي محقر او ذلیل به یې یعني عند الله وعند الملائکة وعند الناس، او په داسي حال کي چي ترټلی او لېري به یې د خدای ﷻ له رحمت عامه څخه، لام موطئه د قسم دی یعني قسم په ذات زما دی چي زه به ډکوم جهنم له تاسي څخه، یعني ستا او ستا له اتباعو څخه، په منکم کي یې تغلیب د حاضر وکړی چي ابلیس ډېر غالب باندي چي دده اتباع وه.

**پوښتنه**: څه حکمت الهي دی چي ابلیس ته یې مهلت ورکړی او سره ددې چي شیطان وخدای ﷻ ته داسي موجب د غضب الهي الفاظ استعمال کړه ولاتجد اکثرهم شاکرین؟

**سوال:** من فوقه خو هم سري مدعي وړلای سي چي له طیارې څخه دي بمباري پر وکړي او لاندي تر پښو يې هم وړلای سي چي په لاره کي مين ورته ښخ کړي؟

**ځواب:** دا مثل د پخواني زماني پر رواج رواړه سوی دی، او بعض مفسرين وايي چي من فوقهم يې نه دي وويلی ځکه چي فوق محل د رحمت الهي دی ابليس يې مانع نه سي کېدای، او من تحت ارجلهم يې نه دي وويلی چي په دې کي د ابليس ذلت دی.

**درويش وايي:** چي بغوي رحمه الله وايي په روايت د علي، بن طلحه عن ابن عباس رضي الله عنه چي له من بين ايديهم څخه اخرت مراد دی چي زموږ تولو ورته مخ دی، يعني د اخرت په باره کي شکوک په زړو کي وراچوم يعني چي اخرت نسته، او له من خلفهم څخه مراد دنيا ده چي د تولو خلکو ورته شا ده يعني د دنيا په جمع کولو کي من حرام به رغبت ورکوم لکه رشوت، شراب فروشي الی غير ذالک، او له عن ايمانهم څخه مراد دادی چي زه به امور د دين پر دوی مشتبه کوم، او د "عن شمائلهم" مراد دادی چي زه به د معاصيو شهوت ددوی په زړو کي پيدا کوم کل ذالک بالوساوس.

**درويش وايي:** چي که څوک داسي دعا هره ورځ کوي "يارب العالمين اعيذ بوجهک الکريم من وساوس الشيطان الرجيم، امن من تلک الوساوس بعون الله الکريم، او عطيه او قتاده په روايت د ابن عباس رضي الله عنه داسي تفسير کړی دی من بين ايديهم د دنيا له لاري چي هم دا اوس حاضره ده، يعني دنيا به ددوی په سترګو کي ښائسته کوم تاچه د حلال او حرام فرق نه کوي، او له من خلفهم څخه مراد اخرت دی چي اوس غائب دی لکه د سړي شا يعني دا به يې په زړه کي وراچوم چي نه بعث بعد الموت سته او نه جنت او نه اور، او له "من بين ايديهم" څخه مراد حسنات دي يعني له حسناتو څخه به يې مانع ګرځم، او له "عن شمائلهم" څخه مراد سيئات دي يعني پر سيئاتو به يې باعثه کوم چي اخير يې کفر دی.

**درويش وايي:** چي دا ټول له تفاسير صحيح او محتمل د عبارت د قرآن عظيم دي والعلم الحقيقي عند من انزل القرآن وذکر فيه هذه العبارة ويعد امثال هذه العبارات من معجزات القرآن الکريم کما لايخفی.

څخه یوم النفخة الاولی ده، فتامل فهذا سانح عزیز قل من تعرض له، او یا ځواب دادی لکه صاحب د روح البیان چي اشاره ورته کړې ده چي د سوال د ابلیس انظرني الی یوم یبعثون بعض د سوال دده قبول سو یعني النفخة الاولی کمابیین في الآية الاخری لانه تعالی یعلم غرض ابلیس په دې مهلت اغوا د بني آدم او په مابین النفختین کي خو بني آدم نسته چي ابلیس یې ګمراه کړي فیتم مرام ابلیس عند النفخة الاولی پوره سو فلهذا یموت هو ایضاً عند النفخة الاولی.

**پوه سه**: چي مابین النفختین څلوېښت کاله دي چي په منځ کي یې هیڅ موجود نسته من الانس والجن والملک کما حکی الله تعالی اشارةً الی ذالک لمن الملک الیوم ثم یجیب نفسه للواحد القهار.

قَالَ فَبِمَآ أَغْوَيْتَنِى لَأَقْعُدَنَّ لَهُمْ صِرَٰطَكَ ٱلْمُسْتَقِيمَ ﴿١٦﴾

**پوه سه**: چي کلمه د "فا" لپاره د تعقیب ده یعني بعد امهلتني وکلمة البا للسببية یعني بسبب اغوائک ایای په واسطه د ادمیانو اقسم بک وبعزتک زه به کوشش کوم په اغوا کي د آدم د اولاد په هره طریقه چي اغوا وماته ممکنه وي "لاقعدن" جواب للقسم المحذوف یعني زه به لکه قطاع الطریق چي وقافلې ته منتظر وي زه به هم دوی ته داغسي منتظر یم "صراط" یعني په لار کي چي ایمان او اسلام دی.

**پوه سه**: چي د "صراطک" نصب علی الظرفية دی في صراطک چي مستقیمه لاره ده یعني له سلوک څخه د هغې لاري مستقیمي به یې راګرځوم وکفر او ضلالت ته.

ثُمَّ لَءَاتِيَنَّهُم مِّنۢ بَيْنِ أَيْدِيهِمْ وَمِنْ خَلْفِهِمْ وَعَنْ أَيْمَٰنِهِمْ وَعَن شَمَآئِلِهِمْ ۖ

او وروسته به زه ورځم بني آدم ته لپاره د اضلال ددوی له بین څخه د لاسو یعني د مخ د خوا او د شا د خوا او د رسته لاسو ددوی او د چپه لاسو ددوی یعني د ټولو جهتو له خوا لپاره د ګمراه کولو ددوی.

**پوه سه**: چي دا عبارت بعض مفسرین حمل کوي پر مثال باندي یعني یو سړی چي ده لره مدعي وي نو له هر جهته څخه چي لار پر پیدا کړي وژني یې او د داسي دښمن لاري دغه څلور دي، نو ځکه یې من فوقهم ومن تحت ارجلهم ونه وایه، ولي چي د لوړې خوا او د ښکو لاندي د خوا څخه څوک پر مدعي بری نه سي پیدا کولای.

**ځواب:** ابلیس ته یې مهلت لپاره د امتحان د خلګو ورکړی چې په علم ظهور سره چې په منطقو کې یې علم تفصیلي بولي چې څوک به متابعت د حق ثابت من عندالله علی السنة الرسل سره د معجزاتو متوافره سره کوي او څوک متابعت د کاذب مطلق په صرف وسوسه بلا حجت کوي مثلاً په ابلیس فرق راغلی په منع کې د صدیق اکبر رضي الله عنه او په منع کې د عدو مطلق د خدای ﷺ یعني ابوجهل لعنة الله وهکذا بین جمیع المؤمنین المتبعین للرسل ولکتب الله وبین جمیع الکافرین التابعین لابلیس لعین وهم الکفار باجمعهم. او دغه رنګه د دار الابرار چې جنت دی او دار الاشرار چې جهنم دی د خلګو امتیاز وسي وهذه هي الحکمة للحکیم المطلق.

وَيَآدَمُ اسْكُنْ أَنتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ فَكُلَا مِنْ حَيْثُ شِئْتُمَا وَلَا تَقْرَبَا هَٰذِهِ الشَّجَرَةَ فَتَكُونَا مِنَ الظَّٰلِمِينَ ۝١٩

والتقدیر وقلنا یا آدم اوسېږه ته او ستا زوج چې حوا ده په جنت کې، نو خوراک کوئ په جنت کې له هر هغه ځای څخه چې ستاسي خوښ وي، او مه نژدې کېږي تاسي وذغې درختي ته، نو تاسي به وګرځي د ظالمانو له ډلې څخه.

**پوه سه:** چې دا وینا و آدم علیه السلام ته هغه وخت خدای ﷺ وکړه چې ابلیس یې له جنته وشاړه. اسکن معنا داده چې لازم الاقامة والسکنی لکن پر طریقه د اباحت او د تکریم لاوجه الوجوب.

**فائده:** د "انت" لفظ لپاره د تاکید د ضمیر مستتر دی په اسکن کې. ولي چې نحات وایي چې عطف پر ضمیر مستتر نه دی روا بې له تاکیده په ضمیر منفصل سره او یا په فصل سره.

**فائده:** زوج نر او ښځي دواړو ته شامل دی او په مؤنث کې یې تا راوړل مخالفت دی له قرآن څخه کما ههنا لانه تعالی اراد بالزوج حواءً ولم یورد بالتاً.

**فائده:** له جنت څخه جنت متعارف مراد دی چې دار الخلد دی په نېز د اکثر اهل العلم ودلائله مذکورة في کتبهم. او بعض مفسرین وایي چې یو باغ و په اسمان کې چې آدم او حواً یې له دار الخلد جنت څخه و هغه ته راکښته کړه او یا په ځمکه

کي چي هغه ډېره لوړه وه تر بقاعو په هغه ځمکه کې یو باغ و ذات اشجار مثمرة وظلال ونعیم ونضرة وسرور. دا جنت خدای ﷻ جوړ کړی ددوی د امتحان لپاره.

**درویش وایي**: چي بعض محققان د علم ظاهر او باطن پردغه رایه دي، دلیل دوی دا وایي چي دوی خدای ﷻ مکلف په تا تاکلوا من هذه الشجرة ولا تکلیف في الجنة المعروفة في الشرع، او دغه رنګه په حدیث شریف کي راغلي دي چي پر آدم علیه السلام خدای ﷻ خوب مسلط کړی حتی چي یوه چپه پښتی یې ځنی وکښله او د حوا انا ماده یې وګرځول، ولا نوم في الجنة المعروفة او له هغه جنته خدای ﷻ وه ایستی. له جنت معروفه وروسته دخول اخراج نسته او دغه رنګه ابلیس ورغلی و هغه جنت ته او ددوی سره یې خبري وکړې بقوله هل ادلکما علی شجرة الخلد الآیة او ابلیس خو وروسته تر طرد جنت ته نه سي ورتلای.

**درویش وایي**: چي هغه چي علما او مفسرینو د دخول د شیطان وجنت معروفه ته بیان کړی دی عقل یې مني کذا في روح البیان.

**فائده**: خدای پاک لاتقربا ووایه او مقصود خو خوراک للمبالغة في النهي عن الاکل کما في قوله تعالی ولاتقربوا الزنی.

**فائده**: د شجره مشهوره معنا خو داده چي د غنم درخته وه، څوک وایي اینځر وه څوک وایي انګور وه. لکن په اکام المرجان کي وایي چي دا درخته خدای ﷻ په ابهام سره راوړه که یې په تعین سره یو مصلحت وای خدای ﷻ به معینه کړې وای، نو ښه داده چي هره درخته چي وه مقصود ابتلاد د حوا او د آدم وه فلا حاجة الی الاختلاف في تلک الشجرة.

**سوال**: که دا جنت په ځمکه کي وای نو ددې آیت به څه معنا وای چي "اهبطوا" ولي چي هبوط له لوړ ځایه کښته ځای ته ورتلو ته وایي؟

**ځواب**: علما کرام وایي چي موږ دمخه وویل چي دا باغ د ځمکي پر یو لوړ ځای و، نو د هبوط معنا داده چي ارض الهند ته ولاړ سئ.

**فائده**: د "تکونا من الظالمین" تاسي به وګرځئ له ظالمانو څخه پر خپلو ځانو چي له نعیم الجنة څخه به محروم سئ.

**درویش وایي:** چي د راتلونکو آیتو تفسیر پر مذهب د جماهیرو د مفسرینو دی او ددوی د تأویلاتو او توجیهاتو موږ په تفسیر کي د سورة بقره په تفصیل ذکر کړی اوس صرف ترجمه د آیتو بیانېږي.

فَوَسْوَسَ لَهُمَا الشَّيْطٰنُ

**یوه سه:** چي وسوسه حدیث النفس والشیطان ته وایي مما لانفع فیه کذا في القاموس او لام په لهما کي لپاره د اجل دی یعني لاجل تخطیتهما بالوقوع في اکل الشجرة المنهی عنه.

لِيُبْدِيَ لَهُمَا مَا وٗرِيَ عَنْهُمَا مِنْ سَوْاٰتِهِمَا

چي ښکاره کي شیطان هغه ځای چي پټ کړه سوی ؤ له عوراتو څخه ددوی.

**یوه سه:** چي عورت ته سوئت وایي په دې سبب چي لځوالی د عورت سړی په غم کي اچوي، او آدم او حوا نه هر یوه وخپل عورت ته او نه یې یو د بل عورت ته سره کتل لپاره د آدب.

**مسئله:** له دې آیت څخه دا معلومه سوه چي کشف د عورت په خلوت وعند الزوج من غیر حاجة لکه خرېل په خلوت یا عند الزوج وقت الجماع بد کار دی طبعاً وعقلاً، اوس بیان د شیطان د وسوسې کوي.

وَقَالَ مَا نَهٰىكُمَا رَبُّكُمَا عَنْ هٰذِهِ الشَّجَرَةِ اِلَّآ اَنْ تَكُوْنَا مَلَكَيْنِ اَوْ تَكُوْنَا مِنَ الْخٰلِدِيْنَ۝

تاسي نه یاست نهي کړي رب ستاسي له دې درختي څخه یعني له اکل څخه د مېوې ددې درختې، مګر نه ددې لپاره چي خدای مکروه بولي چي تاسي دي ملکي سئ او دا معنی د الا أن تکونا ملکین، او یا ددې لپاره چي تاسي به همېشه ژوندي یاست مړی به نه، ولي چي دا درخته شجرة الخلد بولي چي څوک خوراک څني وکړي هغه په همېشه ژوندی وي مړي به نه.

**پوښتنه:** ملکیت څه د رغبت شی ؤ چي شیطان ودوی ته پېش کړی او سره ددې چي آدم ؈ خو په دې پوهېدی چي زه تر ملکو افضل یم چي ملکې خدای ﷻ ما ته په سجده مأموري کړې؟

**خواب:** د ملکو بعض کمالات سته چي په انسان کي نسته لکه په خپلو وزرو



Scanned by CamScanner

سره هر ځای تلل کوي في ادنی وقت وغیر ذالک لکن دا تفضیل جزي دی تفضیل په کثرة الثواب په عبادت کي او په اقربیت الی الله ﷻ وخواص البشر افضل دی تر خواصو د ملکو في هذا الباب کما تقرر في کتب العقائد. نو شیطان دا تفضیل جزوي د آدم په زړه کي ښه ورواچاوه.

## وَقَاسَمَهُمَآ إِنِّي لَكُمَا لَمِنَ النّٰصِحِينَ ۝

او ابلیس قسم بالله ورته واخستی چي په تحقیق زه تاسي لره هرو مرو نصیحت کونکی یم.

**بوه سه:** چي شیطان د آدم علیه السلام د خطا ایستلو لپاره څو مره مؤکده خبره ورته وکړه، اول قسم بالله بیا تاکید په ان سره بیا لام د ابتدائیه ذکر کړی تاچي د آدم او د حوا وزړه ته ولو یږي دده خبره.

**بوه سه:** چي "لمن الناصحین" جواب د قسم دی قال قتاده رحمه الله چي ابلیس په قسم بالله سره آدم او حوا خطا ایستله او مؤمن گاهي په قسم بالله سره خطاوزي، او شیطان دا هم ورته وویل چي زه تر تاسي دمخه پیدا سوی یم او زه د هري درختي د میوي په خواصو خبریم تاسي زما متابعت وکړئ په خورک کي د میوي د شجرة الخلد.

**فائده:** ابلیس چي قسم بالله کاذباً اخستی دی او د آدم علیه السلام دا خیال سو چي قسم بالله کاذباً هیڅ څوک نه اخلي ځکه یي د شیطان په خوله وکړه.

## فَدَلّٰىهُمَا بِغُرُورٍ

دوی یي خطا ایستل په باطل قول سره، او بعض مفسران وایي چي فَدَلّٰهُمَا دوی دوی راکښته کړه له خپلي درجه عالیه څخه ودرجه سافل ته یعني من مقام الطاعة الی مقام المعصیة.

## فَلَمَّا ذَاقَا الشَّجَرَةَ بَدَتْ لَهُمَا سَوْءٰتُهُمَا

چي دوی صرف خوند وڅکی او د اکل یي نوره اراده وه او پوره اکل یي نه وکړی یعني ځانونه یي نه وه په ماړه کړي چي عقوبت پر راغلی او شوم د معصیت دوی ونیوله چي کالي ځني توی سوه او برېنډ سوه دواړه کالي ځني توی سوه. او ښکاره

سول ودواړو ته فرجين ددوی يعني رئ كل واحد فرجه وفرج الآخر نو دوی وشرمېدله.

**وَطَفِقَا يَخْصِفٰنِ عَلَيْهِمَا مِنْ وَّرَقِ الْجَنَّةِ**

نو دوی شروع وکړه چي پټول يې عورات خپل ويلزقان عليهما له درختي ځخه د جنت چي د اينځر بلګونه وه حتی چي فرجين يې په پټ کړه.

**وَنَادٰىهُمَا رَبُّهُمَآ اَلَمْ اَنْهَكُمَا عَنْ تِلْكُمَا الشَّجَرَةِ وَاَقُلْ لَّكُمَآ اِنَّ الشَّيْطٰنَ لَكُمَا عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ﴿۲۲﴾**

وناداهما يعني نعره وکړه خدای ﷻ پر دوی آیا ما نه واست تاسي نهي کړي له دغي درختي ځخه يعني له خورکه، او ما تاسي ته نه وه ويلي چي په تحقيق شيطان ستاسي دښمن دی او بين العداوة يعني ولي مو خورک کاوه او ولي مو د شيطان په خوله کوله يعني شيطان داسي نه وه ويلي لاقعدن لهم صراطك المستقيم.

**پوه سه:** چي په دې آيت کي عتاب او سرزنش دی و آدم او حوا ته پر مخالفت د نهي، او توبيخ دی چي په قول د دښمن مبين مو ولي کول.

**فائده:** په دې آيت دليل دی چي نهي مطلق لپاره د تحريم دی والا لما تترتب على فعل آدم وحوا مايترتب يعني بدئت لهما سوأتهما آه هذا ماقاله المظهري.

**درويش وايي:** چي حفظ د مراتبو د مرتکب د منهي عنه يې په کار دی چونکه مرتبه د آدم عليه السلام په نېز د خدای ﷻ ډېره لوړه وه چي ملکي يې وده ته په سجده سره امر کړي، نو دداسي شخصيت مکروه تنزيهي هم سبب د ماجری عليه کېدای سي ولهذا ورد حسنات الابرار سيئات المقربين.

**قَالَا رَبَّنَا ظَلَمْنَآ اَنْفُسَنَا وَاِنْ لَّمْ تَغْفِرْ لَنَا وَتَرْحَمْنَا لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ﴿۲۳﴾**

آدم او حوا وويل اې زموږ ربه ظلم وکړی موږ پر خپلو ځانو يعني ضرر د معصيت موږ ته راجع دی که ته موږ ته بخښنه ونه کړې او پر موږ رحم ونه کړې، نو هر آئينه موږ به وګرځو له هغو کسانو هالکينو ځخه په سبب د معصيت.

**پوه سه:** چي مظهري دمخه ويلي وه چي دا آيت ددې دليل دی چي نهي مطلق لپاره د تحريم دی، او اوس يې داسي ويلي دي فيه دليل على ان الصغائر معاقب

علیها ان لم تغفر، نو صغائر گنهونه خو په نهي تحریمي سره نه وي ثابت، ولي که نهي د تحریم وي خو بیا گناه کبیره وي بل غایة امر الصغائر النهي التنزیهي.

**تبصره:** بعض ناپوهان خلگ وایي چي آدم علیه السلام چي اکل من الشجرة نه وای کړی، نو اولاد به یې د دنیا په خواری نه وای اخته لکن دا خبره غلطه ده، ولي چي جنت ځای د توالد او تناسل نه دی، نو نور انسانان به چیري وای.

**پوښتنه:** حکمت الهي څه و چي آدم او حوا یې اکل ځخه د شجرة منع کړل، بیا چي له دوی ځخه دا ذلت صادر سو، نو امر د اهبطوا یې ورته وکړی؟

**ځواب:** د آدم علیه السلام تر خلقت دمخه خدای جل جلاله د ملکو سره په مشوره کي ویلي وه "اني جاعل في الارض خلیفة قالوا اتجعل" نو که دا ذلت له آدم علیه السلام ځخه نه وای صادر سوی، نو ډیره به آدم او حوا ته گرانه تمامه سوې وای، چي له جنت غوندي ځایه ځخه به سپیرې مځکي ته راشوه کېدای، او وروسته تر ذلت په امید د مغفرت ومځکي ته په ډیره خوشالی راکښته سوه چي د اهبطوا امر ورکړه سو لکه پښتانه چي وای په مرگ یې ونیسه په تبه یې راضي کړه، او آدم وحوا ومځکي ته په راکښته کېدو کي څه تاوان وکړی که په جنت کي وای خو دوه په دوه به وای چي له جنت ځخه را ووتله بیر ته په ورځ د آخرت به د کروړو او ملیارو اولادو سره چي په جمله کي د هغو به یو لک او څلیرویشت زره زیات او کم پیغمبران وي، او د نورو جنتیانو یوازي خدای جل جلاله علم لري، له یو عارف ځخه چا پوښتنه وکړه چي آدم علیه السلام ولي په جنت کي د غنم دانه وخوړل؟ عارف ورته وویل چي آدم علیه السلام نه و خبر چي زما په اولاد کي به نور محمدي هم وي، نو که خبر وای غنم به یې د درختي سره خوړلای وای.

قَالَ اهْبِطُوا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ

خدای پاک وویل آدم او حوا ته چي کښته سئ له اسمانه ځخه ومځکي ته چي بعض ستاسي په دښمن وي د بل بعض.

**پوه سه:** چي مخاطب په دې امر سره آدم او حوا دي او جمعیت د ضمیر د اهبطوا په اعتبار د اشتمال ددې دوو پر اولاد د دوی، او بعض مفسرین وایي چي خطاب و آدم، حوا او ابلیس ته دی دا خبره نازیبا ده، ولي چي ابلیس خو دمخه په

اهبطوا امر سوی او چا چي توجیه د معیت د ابلیس کړي ده بقوله کرر الامر تبعاً آه عقل یې نه مني.

**پوه سه**: چي "بعض کم عدو لبعض" په تأویل د مفرد حال دی له ضمیر څخه د اهبطوا ای متعادین.

**درویش وایي**: چي عداوت د اولاد د آدم عليه السلام دده په ژوند شروع سوی دی چي د هابیل او قابیل تر منځ ؤ کما نص به القرآن چي قابیل هابیل مړ کړی هغه وخت چي آدم عليه السلام حج ته تللی ؤ، ثم وثم الی یوم القیامة، اول عداوت خو د مسلمانانو او کافرانو تر منځ دی، بیا وروسته په مسلمانانو کي قبیله وي او عقیده وي او حزبي او وطني عداوتونه موجود دي کل ذالک ظاهر لادنی عاقل.

وَلَكُمْ فِي الْأَرْضِ مُسْتَقَرٌّ وَمَتَاعٌ إِلَىٰ حِينٍ ﴿٢٤﴾

او تاسي لره په مځکه کي استقرار سته، که مستقر مصدر میمي وي او یا ځای د قرار سته که ظرف وي او تمتع او نفع اخستل سته تر یو وخته پوري الی ان قضاً آجالکم.

قَالَ فِيهَا تَحْيَوْنَ وَفِيهَا تَمُوتُونَ وَمِنْهَا تُخْرَجُونَ ﴿٢٥﴾

خدای پاک وویل چي تاسي به په مځکه کي ژوند تېروئ او په مځکه کي به مرئ او له مځکي څخه به راوزئ للجزا یعني یوم القیامة. بغوي رحمه الله وایي چي عربو به د جاهلیت په دور کي پر بیت الله شریفي باندي طواف نر او ښځو په لڅه سره کاوه او دوی به ویل چي موږ په هغو کالو کي طواف نه کوو چي موږ معصیت پکښي کړی وي لکن نرو به د ورځي طواف کاوه او ښځو به د شپې فنزلت هذه الآیة.

يَا بَنِي آدَمَ قَدْ أَنْزَلْنَا عَلَيْكُمْ لِبَاسًا يُوَارِي سَوْآتِكُمْ وَرِيشًا

ته ووایه اې محمد ﷺ اې اولاده د آدم موږ نازل کړی دی یعني پیدا کړی مو دی په اسباب سماویه سره لکه باران چي وسي پسونه وړی وکړي یا کتان راشنه سي، نو له هغو تاسي جامې جوړوئ، نو ځکه یې انزلنا ووایه کالي چي پټوي دا کالي ستاسي عورت نو تاسي ولي په لڅ بدن طواف کوئ.

**درویش وایي:** چي له خلق څخه تعبیر په نزول په بل ځای کي د قرآن کریم هم راغلی دی، کما في قوله تعالی وانزلنا الحدید، وانزلنا لکم من الانعام، نو وسپنه یا انعام خو له اسمانه نه دی نازل سوي بلکي معنا يې داده چي خلقنا لکم الحدید وخلقنا لکم من الانعام.

**پوه سه:** چي "وریشاً" عطف دی پر لباساً باندي "ریش" په لغت عربي کي ملبوسات فاخره ته وايي یعني د زینت کالي چي اغوستونکی يې فخر په کوي، موږ نازل کړی دی داسي لباس چي ستاسي صرف عورت په پټېږي یعني د فخر نه وي، او نازل کړی مو دی داسي لباس چي تاسي فخر په کوئ او ځانونه په ښائسته کوئ په اعناد وغیره کي.

**وَلِبَاسُ التَّقْوٰى ذٰلِكَ خَيْرٌ**

**پوه سه:** چي "لباس التقوی" اضافت دی مشبه به ومشبه ته، یعني تقوی چي لکه کالي داسي دي له "لباس التقوی" څخه بېره د خدای ﷻ ده، او قتاده رحمه الله وایي چي مراد ځني عمل دی یعني لکه په جامه چي سړی د حر وبر څخه ساتل دغه رنګه په تقوی یا عمل صالح سړی د حر د جهنم او د بر د زمهریر ساتل کېږي

**فائده:** لباس التقوی مبتداً ده او جمله د "ذالک خیر" يې خبر دی لان الرجل الفاجر وان کان لابس الثیاب الفاخرة ولکن عریان في الحقیقة، بیت

قلندر ان حقیقت به نیم جو بخرند  قبای اطلس آن کس که از هنر عاریست

**ذٰلِكَ مِنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُوْنَ ﴿۲۶﴾**

دغه انزال اللناس د آیاتو د فضل او رحمت د خدای ﷻ دی ددې لپاره چي خلګ په ددې نعمت الهي شکر ووایي.

**فائده:** اصل د "یذکرون" یتذکرون وُ تا په ذال کي مدغمه سوه.

**مسئله:** لڅ والی د عورت په خلوت کي هم مکروه دی، او مېړه او مېینه چي جماع سره کوي چي دواړه عریان وي وي هم مکروه دی، او حمام ته ورتله بېله لنګه وهلو هم مکروه دی که څه هم جلا خونه وي. او یا که په ویاله کي لمبېږي که څه هم ویاله تر نامه پوري وي، بېله لنګه مکروه دی.

يٰبَنِيْٓ اٰدَمَ لَا يَفْتِنَنَّكُمُ الشَّيْطٰنُ كَمَآ اَخْرَجَ اَبَوَيْكُمْ مِّنَ الْجَنَّةِ يَنْزِعُ عَنْهُمَا لِبَاسَهُمَا لِيُرِيَهُمَا سَوْاٰتِهِمَا

اى اولاده د آدم، ذكر بني دى مراد ځني مطلق اولاد دى كه نر وي او كه ښځي په فتنه كي وانه چوي تاسي شيطان يعني تاسي دي خطأ نه باسي او گمراهان، كافران او عاصيان چي د جنت د دخول مانع مو نه سي لكه په فتنه كي چي واقع كړى ستاسي پلار او مور، نو په لفظ كي ابويكم تغليب دى د اب پر ام باندي او له جنته يې راويستل په سبب د خوړلو د درختي منهي عنها ځكه لان المخرج من الجنة وان كان هو الله لكن السبب هو وسوسة الشيطان كمامر، نو ځكه يې نسبت د اخراج وه شيطان ته وكړى چي شيطان كالي ځني وكښل په سبب د خوراك د درختي منهي ځكه چي سبب يې وسوسه د شيطان وه وان كان منزع الثياب هو الله تعالى تاچه په دوى ووينې عورات يو د بل وقدمر من قبل قريباً.

**پوه سه:** چي په "كما اخرج" غايت تحذير دى د اولاد د آدم عليه السلام من اغوا الشيطان، ولي چي شيطان چي قادر سو پر اغوا د ابويكم نو ستاسي پر اغوا خوبه قدرت لري "ينزع لباسهما" حال دى من ابويكم.

اِنَّهٗ يَرٰىكُمْ هُوَ وَقَبِيْلُهٗ مِنْ حَيْثُ لَا تَرَوْنَهُمْ

په تحقيق شيطان تاسي ويني په سبب د غلظت او د كثافت ستاسي د اجسام لفظ د هو تاكيد دى د ضمير مستتر په يراكم كي ليعطف عليه وقبيله كما هو القانون النحوي، او مراد له قبيل ځخه ذريت او اولاد د شيطان دى له تاسي ځخه تاسي دوى نه وينئ لغاية رقة ولطافة اجسامهم كمالا يرى الهوا لغاية اللطافة. قال ذو النون المصري قدس سره هو اى الشيطان من حيث لاتراه يا ابن آدم فاستعن، نو ته كومك وغواړه پر شيطان باندي په هغه چا سره چي شيطان ويني وهو الواحد الستار.

**فائده:** كه ځوك داسي دعا ورد وگرځوي يارب العالمين اعوذ بوجهك الكريم من الشيطان الرجيم أمن من وساوس الشيطان.

**درويش وايي:** چي وقد جربته في عين حال الوسوسة فرد الله ﷻ تلك الوسوسة الواقع انا فيها بعونه تعالى والشرط حضور القلب.

**فائده:** که شیطان او جن په خپل صورت اصلي کې وي خو مونږ يې نه وينو او که دوی صورت بدل کړی يعني په صورت کثيف کې سوه بيا يې مونږ هم ليدلای سو كمايدل عليه الحديث الذي رواه البخاري وغيره ان رسول الله ﷺ وظف اباهريرة ﷺ على جميع صدقات الفطر اى حفظها في شهر رمضان قال ابو هريرة ﷺ بينا انا نائم انتبهت بان رجلاً يأخذ من صدقة الفطر في وعائه فاخذته الى اخير الحديث الطويل.

## إِنَّا جَعَلْنَا الشَّيَاطِينَ أَوْلِيَاءَ لِلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿٢٧﴾

مونږ ګرځولي دي شيطانان دوستان د هغو کسانو چې ايمان نه راوړي، ولې چې د شيطانانو او انسانانو تر منځ تناسب سته په اتباع کې د باطل والنافر من الحق، او يا په دې معنا چې شيطانان مسلط دي او خدای ﷻ تمكين او قدرت ورکړی پر کافرانو.

## وَإِذَا فَعَلُوا فَاحِشَةً

او چې کفار مکه وکړي فاحشه، فاحشه هغه ګناه ته وايي چې نهايت ته د قبيح رسېدلې وي وذالک هو الشرک، او ابن عباس او مجاهد چې فاحشه طواف عرياناً ته وايي او ظاهره داده چې مراد ځنې مطلق کبيره ګناه ده.

## قَالُوا وَجَدْنَا عَلَيْهَا آبَاءَنَا وَاللَّهُ أَمَرَنَا بِهَا

دوی وايي چې ناصح نصيحت ورته کوي او له هغې فاحشې څخه يې منع کوي چې مونږ پيدا کړی دی پر دغه فاحشه باندې خپل ابا، مراد له ابا څخه معنی د شامل و اجدادو ته، او خدای ﷻ مونږ امر کړي يو په دغه فاحشه سره. اول دليل يې تقليد د آباوو دی او دوهم دليل افتراً على الله ده، او خدای پاک په جواب کې د اول دليل څخه دده په دې ځای کې اعراض وکړی، او د دوهم دليل يې جواب ورکړی که څه هم په بل ځای کې د اول دليل هم جواب ورکړی دی بقوله اولوكان آبائهم لا يعقلون شيئاً ولا يهتدون الآية او د وهم جواب دادی.

## قُلْ إِنَّ اللَّهَ لَا يَأْمُرُ بِالْفَحْشَاءِ

ته ورته ووايه چې خدای ﷻ سړی نه امر کوي په فحشا سره لانها قبيحة والامر بالقبيح قبيح والله تعالى منزه عن الافعال القبيحة.

أَتَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ

آیا تاسي وایاست پر خدای ﷻ هغه شی چي تاسي علم نه پر لرئ والاستفهام للانکار ای لاتفعلوا ذالک، والدلیل علیه دادی چي طریق د علم یا اوربدل دي له خدای ﷻ څخه ابتداً بیله وساطته د رسول ﷺ، وانتفائه ظاهر لان مع الله بدون واسطة الرسول والملک عسیر جداً لم تیسیر الا الاحالد من الانبیاً فکیف مع هؤلاً الکفرة والفجرة، او یا په واسطه د نبي وي وهولاً الکفرة المشرکین نبوة علی الاطلاق فکیف یقولون والله امرنا بها.

قُلْ أَمَرَ رَبِّي بِالْقِسْطِ

ته ورته ووایه کفارو ته د مکې چي زه امر کړی یم خدای زما په قسط سره، ابن عباس رضی الله عنه او ضحاک رحمه الله د "قسط" ترجمه په لا اله الا الله اعني توحید سره کړې ده، او بعض رواتو یې ترجمه په عدل سره کړې ده یعني التوسط بین طرفي الافراط والتفریط.

وَأَقِيمُوا وُجُوهَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ

دا آیت یا مقوله د قول محذوف ده ای قال اقیموا او یا مقوله د قول مذکور ده یعني "وقل اقیموا وجوهکم آه" په هر صورت مراد اخلاص دی په سجده کي من قبیل ذکر الجز وارادة الکل ای الصلوة کله په نیز د هر وخت لمانځه او عند کل مکان السجود، یعني مسجد یا ظرف زمان دی یا ظرف مکان دی والاقامة المذکورة هٓ هو المعبر بالاحسان علی ماجاً في الحدیث الطویل المروي في البخاري الاحسان ان تعبد الله کانه تراه فان لم تکن حاضر سو، تو په دغه مسجد کي به لمونځ کوئ دا به نه وای چي ځم په خپل مسجد کي لمونځ کوم وبه قال ابو حنیفة رحمه الله لکن که دغه سړی امام و د خپل مسجد او یا داسي سړی و چي دده په حضور سره لمونځ د بل مسجد خلل پیدا کاوه تو هغه خروج روا دی.

وَادْعُوهُ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ ۚ

او تاسي عبادت کوئ د خدای ﷻ په داسي حال کي چي اخلاص درلودونکي یاست د خدای ﷻ سره په دین یعني په عبادت کي یعني عبادت به مو خلاص وي له شرک جلي او شرک خفي څخه چي ریا او سمعه ده . بیت

بروی وریا خرقه سهلست دوخت وگر باخدا درفروشی نکوست

كَمَا بَدَأَكُمْ تَعُودُونَ ﴿۲۹﴾

لکه په ابتدا کي چي تاسي من تراب ثم من نطفة پیدا کړي یاست تاسي به راگرځئ احیاً بعد الموت فیجازیکم باعمالکم ، وقیل کما بدأناکم حفاة عرات ناسنته کړي بیرته به هغسي ژوندي کېږي ، دلیل د قیل د مذهب هغه حدیث د عائشي ﷞ دی چي روایت یې بخاري او مسلم کړی دی ، دې وویل چي رسول الله ﷺ وویل چي تاسي به حشر کېږي په ورځ د قیامت حفات "لڅي پښې" عرات" لغړ پغړ "قالت الرجال والنسا" نر او ښځي دواړه "ینظر بعضهم الی بعض" چي نر او ښځي به یو د بل عورت ته سره گوري "قال علیه الصلوٰة والسلام یا عائشة الامر یومئذ اشد من ذالک" حال د ورځي د قیامت سخت دی تر دې چي نر دې د ښځي عورت ته وگوري یا دې ښځه د نر عورت ته وگوري یعني هر سړی په خپل غم اخته وي.

فَرِيقًا هَدَىٰ وَفَرِيقًا حَقَّ عَلَيْهِمُ الضَّلَالَةُ ۗ إِنَّهُمُ اتَّخَذُوا الشَّيَاطِينَ أَوْلِيَاءَ مِن دُونِ اللَّهِ وَيَحْسَبُونَ أَنَّهُم مُّهْتَدُونَ ﴿۳۰﴾

یوه ډله به پر هدایت وي په سبب د هدیٰ د خدای ﷻ او اعمال صالحه به وي په توفیق د خدای ﷻ یعني په دنیا کي ، او بله ډله به ثابته پر گمراهي او کفر به مقتضي د قضا الهي په دنیا کي ، دې دویمي ډلي شیطانان خپل خپل دوستان گرځولي وه ماسوی له خدایه یعني په قول د شیطانانو یې کفر او شرک مختاره کړی او توحید د خدای ﷻ یې نه کاوه او دوی گمان کاوه چي موږ پر هدایت یو په بت پرستی او په عصیان کي د خدای ﷻ.

**یوه سه:** چي جهل د کافر عذر نه سي کېدای ، او مخطئ او عامد سره برابر

دي په استحقاق د دوزخ كما يدل عليه الآية المذكورة، په روايت كي د مسلم راغلي دي چي يوې ښځي په جاهليت كي طواف كاوه ټول بدن يې لڅ و صرف پر فرج باندي يې يو ټوكړ و او دې به دا شعر وايه.

اليوم يبدؤ بعضه او كله　　　　ومابدا منه فلا احله

نو دا آيت نازل سو.

**يٰبَنِيْٓ اٰدَمَ خُذُوْا زِيْنَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ**

اې اولاده د آدم عليه السلام ذكر خاص مراد تري عام دى يعني كه ابن وي او كه بنت تاسي اخلئ خپل د زينت كالي په نيز د هر مسجد كه په مسجد كي طواف كوئ او كه لمونځ.

**درويش وايي:** چي مراد له زينت څخه دومره كالي دي چي عورت په پټ وي باجماع أهل التفسير كه څه هم يو اوږد قميص وي.

**وَّكُلُوْا وَاشْرَبُوْا وَلَا تُسْرِفُوْا ۚ اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الْمُسْرِفِيْنَ ﴿۳۱﴾**

او خورئ غوښي او نور حلال شيان او څښئ او اسراف يعني تر حدود د خداى تجاوز مه كوئ په تحريم د ما احل الله لكم من اللحم والدسم وزينة اللباس وغير ذالك، په تحقيق خداى ﷻ خوښ نه لري مسرفان خلگ الذين يفعلون ذالك اى لن يريضى الله بفعلهم ذالك. قال ابن عباس رضي الله عنه كل ما شئت والبس ماشئت ما اخطائتك خصلتان شرك ومخيلة اخرجه ابن ابي شيبة. يو روايت راغلى دى چي هارون رشيد يو شخصي طبيب درلودی چي په دين نصارى و او ډير حاذق طبيب و، او هغه طبيب و علي بن الحسين بن الواقد ته وويل اليس في كتابكم شئ من علم الطب مع ان العلم علمان علم الاديان وعلم الابدان فقال له على قد جمع الله في كتابه في نصف آية الطب كله وهو قوله تعالى كلوا واشربوا ولا تسرفوا. نصراني طبيب ورته وويل چي آيا ستاسي له رسول څخه په علم طب كي يو شى مروي سته؟ فقال علي رضي الله عنه قد جمع رسولنا الطب كله في الفاظ يسيرة، حيث قال المعدة بيت الدآ، والحمية يعني پرهېز كول رأس كل دوآ، واعط كل بدن ماعودته، فقال النصراني الطبيب ماترك كتابكم ولانبيكم لجالينوس شيئاً.

**پوه سه:** چې بعض قريش وبني عامر بن صعصعة وبعض بطون بني كنانة لاياكلون اللحم ولا ياتون البيوت الا من ادبارها. او د زينت كالي يې هم نه اغوستله، فنزلت هذه الآية.

**قُلْ مَنْ حَرَّمَ زِيْنَةَ اللّٰهِ الَّتِيْٓ اَخْرَجَ لِعِبَادِهٖ وَالطَّيِّبٰتِ مِنَ الرِّزْقِ**

ته ورته ووايه اې محمد ﷺ انكاراً على هؤلاء المذكورين چې چا حرام كړې دی زينت د خدای ﷻ اي الثياب الفاخرة وسائر مايتجمل بها هغه كالي چې خدای را ايستلي دي يعني اصول د هغو ثيابو كالقطن والكتان من الارض والصوف من الغنم والقز يعني وريښم من الدود، او را ايستلي يې دي طيبات د رزق والطيبات المستلذات لکه خرما، انار، انګور وغيرها يعني لم يحرم خالقها ومالكها او هيڅ قدرت پر تحليل او تحريم هيڅ څوک بې له خدايه نه لري فما لهؤلاء يحرمون الثياب في الطواف واللحم والدسم في الحج والسوائب والوصيلة وغير ذالک.

**فائده:** له دې آيت څخه چې اصل في المطاعم والمشارب والثياب الحل دي مالم يثبت تحريمها من الله ورسوله لکه د ميتة غوښې او يا د ما احل لغيره في المطاعم او يا خمر په مشاربو کې يا وريښمينه جامه د نرو لپاره الى غير ذالک.

**قُلْ هِيَ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا خَالِصَةً**

ته ورته ووايه اې محمد ﷺ چې دغه زينت او طيبات لپاره د هغو كسانو دي چې ايمان يې راوړی وي په دنيا کې خالصاً حتى چې دوی نفع پر واخلي او شكر د خدای ﷻ ووايي پر دغو شيانو او پر عبادت د خدای ﷻ قوت پيدا کړي.

**سوال:** كافران خو هم په شيانو کې ورسره شريكان دي بلکې بعض كافران په دغو شيانو کې تر مؤمنانو زيات دي، نو دا شيان څرنګه خالص دي د مسلمانانو لپاره؟

**ځواب:** خدای ﷻ كفار هم ورشريكان كړي دي تبعاً للمؤمنين د ابتلاء او امتحان د دوی.

**پوه سه:** چې "خالصة" په نصب سره حال مقدرة يعني مقدرين الخلوص من الغم والامراض.

يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۗ كَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ

د قیامت په ورځ، واما في الدنيا فهذه النعم منغصة بالآلام ومشوبة بالمصائب. داغسې مونږ تفصیل د آیاتو کوو، يعني جلا والی د حلال او حرام کوو حيث امرنا باتيان الحلال وترک الحرام ومنع الاسراف وسائر الاحکام الدينية د هغه قوم لپاره چې دوی پوهېږي چې خدای ﷻ يو دی شريک نه لري.

قُلْ اِنَّمَا حَرَّمَ رَبِّيَ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ

ته ورته ووايه اې محمد ﷺ نه دي حرام کړي رب، مګر حرام کړي يې دي هغه ګنهونه چې قباحت يې ظاهر وي کطواف الرجل عرياناً بالکعبة، وقيل کالزنا علانية. او که باطن وي کطواف الکعبة ليلاً النسوة وقيل کالزنا سراً.

وَالْاِثْمَ وَالْبَغْيَ بِغَيْرِ الْحَقِّ

ای مايوجب الاثم والمعصية کسائر المعاصي، او ظلم يا کبر بې له حقه.

**پوه سه:** چې دا تعميم بعد التخصيص دی، او ضحاک رحمه الله وايي چې اثم هغه ګناه ده چې حد شرعي نه لري.

**سوال:** ظلم او کبر خو په اثم کې داخل وه، نو د جلا راوړلو يې څه فائده؟

**ځواب:** لپاره د مبالغې في النهي عنه، او بعض مفسرين وايي چې مراد له بغي څخه ياغي کېدل دي و سلطان عادل ته، او "بغير الحق" تاکيد دی د "بغي"

وَاَنْ تُشْرِكُوْا بِاللّٰهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهٖ سُلْطٰنًا

او دا يې حرام کړی دی چې تاسې شريکوئ د خدای ﷻ سره هغه شی چې بتان دي چې د هغه پر اشراک باندې کوم دليل نه وي.

**پوه سه:** چې دا قيد اتفاقي دی احتراز د هغه نه دی چې پر اشراک يې دليل وي چې هغه اشراک روا دی، ولې چې اشراک د خدای ﷻ ممتنع دی ولا دليل على الممتنع.

وَّاَنْ تَقُوْلُوْا عَلَى اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ

او دا چې تاسې وایاست پر خدای ﷻ باندې هغه شی چې تاسې علم نه پر لرئ کالولد وتحريم مالم يحرم ځوک چې پر شي دليل نه لري او په هغه حکم کوي دې ته تحکم وايي.

وَلِكُلِّ أُمَّةٍ أَجَلٌ ۖ فَإِذَا جَاءَ أَجَلُهُمْ لَا يَسْتَأْخِرُونَ سَاعَةً ۖ وَلَا يَسْتَقْدِمُونَ ﴿٣٤﴾

او هر امت لره د كافرانو اجل معين په علم كې د خداى ﷻ لپاره د نزول د عذاب پر دوى، نو امت كفار مكه دي هم پوه سي چي دوى لره هم اجل معلومه سته د عذاب لكه په بدر كي چي پر دوى نازل سو چي اوويا كسه صناديد د دوى په قتل ورسېدله په شمول د طاغي اعظم يعني ابوجهل.

چي اجل معلوم في علم الله راورسېږي نه سي دوى ځنډېدلاى يو ساعت يو اقصر او كوتاه وخت كه څه دوى مهلت وغواړي، او نه د مخه كېداى سي دا اجل تر خپل وخته پوري كه څه هم دوى دمخه والى وغواړي لكه دوى چي به ويل كه دا دين د اسلام حق وي موږ خو يه نه منو، نو پر موږ دي ډبري ووروي د اسمان له خوا څخه، او يا دي يو بل عذاب اليم راباندي مسلط كړي.

يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ إِمَّا يَأْتِيَنَّكُمْ رُسُلٌ مِّنكُمْ يَقُصُّونَ عَلَيْكُمْ ءَايَٰتِي ۙ

اې اولاده د آدم كه چېري راسي وتاسي ته رسولان ستاسي له نوع څخه يعني هغه هم انسانان وي او بيان درته كوي زما د آيتو پر تاسي.

**پوه سه:** چي اصل د "اما" انما" ؤ او ان شرطيه دى، او ما زائده دى لپاره د تاكيد د نون شرط، نو ځكه فعل شرط مؤكد كړى په نون ثقيله سره.

**سوال:** ايتان الرسل خو يقيني ؤ، نو څه حكمت دى چي خداى ﷻ په ان شرطيه چي د شك دى راوړى؟

**ځواب:** تنبيه يې پر دې وكړه چي ارسال الرسل پر خداى ﷻ واجب نه دى بلكې دا يې تفضل او احسان دى پر بندګانو باندي.

فَمَنِ ٱتَّقَىٰ وَأَصْلَحَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٣٥﴾

**پوه سه:** چي "فمن اتقى" جواب دى د شرط، يعني هغه څوك چي ځان وساتي له شرك څخه او له تكذيب څخه د رسولانو او عمل صالح وكړي يعني خالصاً لپاره د خداى ﷻ، نو بېره نسته پر دوى حين يخاف الناس في القبر او يوم القيامة، او نه به دوى غمجن وي چي كفار دوزخ ته استوي.

وَالَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَاسْتَكْبَرُوا عَنْهَا أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿٣٦﴾

او هغه کسان چي تکذیب وکړي د آیتو زموږ چي په کتاب کي مو نازل کړي دي او طلب د کبر وکړي له آیاتو څخه یعني عن الایمان بها، نو دغه کسان ملازمان د دوږخ دي. او دوی به په دوږخ کي همېشه وي یعني ابداً.

**پوه سه:** چي په دمخه آیت کي ضمیر د جمع په "علیهم" کي په اعتبار د معنی د "من" دی که څه هم لفظ مفرد دی.

فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا أَوْ كَذَّبَ بِآيَاتِهِ ۚ

الاستفهام للانکار، یعني نسته لوی ظالم تر هغه چا چي په قصد درواغ وایي پر خدای ﷻ.

**پوه سه:** چي کذباً مفعول مطلق دی د افتری. وذالک الافتراٗ یا داده چي خدای پاک لره شریک یا ولد ووایي یا ملائکه بنات الله وبولي. او یا دادی چي تحریم د سوائب وامثالها د خدای ﷻ په امر وبولي یا طواف عریاناً مامور به د خدای ﷻ وبولي یا عیسیٰ ابن الله وبولي.

**فائده:** دا یت په عموم سره شامل دی روافضو ته هم چي دوی وایي چي د قرآن لس جز نور هم وه چي صحابه وو له قرآن څخه ساقط کړي دي.

**مسئله:** قائلین ددې قول کافران دي بالاجماع لقوله انا انزلنا القرآن وانا له حافظون، او بل چي موجود قرآن کریم دی د اصحاب کرامو ﷡ په اجماع سره ثابت دی الی یومنا هذا.

أُولَٰئِكَ يَنَالُهُمْ نَصِيبُهُمْ مِنَ الْكِتَابِ ۖ

دغو کسانو ته به ورسېږي في الدنیا برخه د کتاب یعني ماکتب لهم في صحف الملائکة الموکل بهم من الارزاق والتمتعات والاعمال والمکاسب والمصائب والآجال، او بعض مفسرین وایي چي مراد له کتاب څخه لوح محفوظ دی والله اعلم بمراده في کتابه.

حَتّٰٓى اِذَا جَآءَتْهُمْ رُسُلُنَا يَتَوَفَّوْنَهُمْ قَالُوْٓا اَيْنَ مَا كُنْتُمْ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ

تر هغه وخته پورې چې ودوی ته راسي رسولان زموږ يعني ملک الموت واعوانه چې قبض د روحانو ددوی کوي "قالوا آه" جواب د "اذا" دی يعني عزرائيل او اتباع دده به ووايي دغه کافرانو ته.

**پوه سه:** چې "اين" استفهاميه دی او کلمه د "ما" موصوله ده بايد جلا سره ليکل سوې وای لکن په ټولو مصاحفو کې متصل نوشته دي متابعة لرسم المصحف العثماني، استفهام لپاره د سرزنش دی، والمعنى چېرې دي هغه خدايان چې تاسي يې عبادت کاوه ماسوٰی له خدای ﷻ څخه من الاصنام.

قَالُوْا ضَلُّوْا عَنَّا وَشَهِدُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ اَنَّهُمْ كَانُوْا كٰفِرِيْنَ ﴿۳۷﴾

کافرانو وويل په ځواب کې د ملکو چې زموږ خدايان چې موږ يې عبادت کاوه غائب دي زموږ څخه، او کافران پر خپلو ځانو شاهدي ادا کړي يعني په نېږ د ليدلو د عذاب چې موږ کافران يعني مشرکان وو.

قَالَ ادْخُلُوْا فِيْٓ اُمَمٍ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِكُمْ مِّنَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ فِي النَّارِ

يعني خدای پاک ودوی ته ووايي په ورځ د قيامت. او هغه احتمال چې مظهري رحمه الله راوړی دی چې يا ملک الموت ورته په وخت کې د توفّٰی آه هغه ترجمه به هلته صحيح وايي چې له وخت څخه د توفّٰی دوی بالفور دوږخ ته ورتلای، وليس کذلک الا ان يقال انه قال عليه الصلوٰة والسلام القبر روضة من رياض الجنان او حفرة من حفر النيران"

**ترجمه:** ودوی ته ووايي خدای ﷻ چې داخل سي في امم ای حال کونکم داخلين في جملة چې هغه تېر سوي وه تر تاسي دمخه من الجن والانس ای الکفار منهم في النار متعلق په ادخلوا پورې دی.

**پوه سه:** چې تقديم د جن پر انس باندې يا په اعتبار د خلقت دی او يا له دې سببه چې دا مقام د اهانت دی.

كُلَّمَا دَخَلَتْ أُمَّةٌ لَعَنَتْ أُخْتَهَا

هر وخت چي داخل سي يو امت و اور ته لعنت وايي پر اخت خپل په دين کي مراد له امت اخت څخه هغه مقتدايان ددوی دي چي دوی يې گمراهان کړي وه باقتدائها بهم واطلاق الاخت مجاز دی وذکر الاخت دون الاخ اعتبار تانيث امة دی فيلعن اليهود المتاخرين اليهود الذين اسّسوا بنيان الكفر لهم وهكذا يلعن النصاری النصاری ويلعن الاتباع على القادة يعني مشران.

حَتَّىٰ إِذَا ادَّارَكُوا فِيهَا جَمِيعًا

چي سره جمع سي په اور کي ټول له اتباع او متبوعين.

**پوه سه:** چي اصل اذا تداركوا و، نو تا يې په دال واړول او په دال کي يې مدغمه کړه.

قَالَتْ أُخْرَاهُمْ لِأُولَاهُمْ

نو وايي هغه کسان چي اخير دوزخ ته داخل سوي وي چي اتباع دي و اولو ته دخولاً چي متبوعين او قاده د دوی وه فان المتبوعين يدخلون اولاً يعني رؤساً الكفر.

**پوه سه:** چي دوی يعني اتباع ومتبوعينو ته دا خبره کوي نه دي مراد ولي په دې خبره کي د اتباع څه فائده سته بلکې معنی داده چي تابعان خدای پاک ته وايي په باره کي د متبوعينو كما يدل عليه الآية المتصلة.

رَبَّنَا هَٰؤُلَاءِ أَضَلُّونَا فَآتِهِمْ عَذَابًا ضِعْفًا مِّنَ النَّارِ ۖ

يا ربه زموږ هؤلاً يعني دغه کسان چي زموږ رئيسان وه، موږ يې گمراهان کړو له هدايت څخه چي دوی به دعوت راکاوه او موږ يې پر کفر مجبور کولو، نو ته خدايه ورکړې ودغو مشرانو ته د ضلال عذاب دوه چنده د اور.

**فائده:** د اتباع غرض په دې قول کي دا وو چي زموږ عذاب هم پر دوی واچوه او موږ برئ الذمة کړه، ولي چي موږ خو دوی مجبور کړي وو پر ضلال، او يا دا و چي زموږ زړونه په ساړه سي.

قَالَ لِكُلٍّ ضِعْفٌ وَلَٰكِن لَّا تَعْلَمُونَ ﴿۳۸﴾

خدای پاک ووایي چي د هري ډلي د متبوعینو او د تابعینو عذاب متضاعف دی لکن تاسي نه پوهېږي اما الرؤسا ددوی عذاب چي مضاعف دی په سبب د ضلال او اضلال او د تابعینو دا چي مضاعف دي په سبب د ضلال او تقلید في الباطل، او نه پوهنه ددوی په سبب ددې ده چي د یوه په عذاب بل څه پوهېږي، پښتانه وایي چي مخکه هغه سوځي چي اور پر بلېږي.

وَقَالَتْ أُولَاهُمْ لِأُخْرَاهُمْ فَمَا كَانَ لَكُمْ عَلَيْنَا مِن فَضْلٍ

او ووایي اوله ډله چي رئیسان وه دوهمي ډلي ته چي تابعان وه هغه وخت چي اخری پر اولی دعوه وکړه ربنا هؤلاء اضلونا الآیة. او هغه وخت چي رئیسانو د خدای ﷻ جواب هم واورېدی حیث قال لکل ضعف. او معنی د آیت داده چي اولی گروپ وتابعانو ته وویل نسته تاسي لره پر موږ من فضل یو بالاتوب په عذاب چي ستاسي عذاب دی، نصف زموږ د عذاب وي، ولي چي خدای ﷻ وویل "لکل ضعف" نو موږ او تاسي په عذاب کي سره برابر یو. او بعض مفسران وایي چي اولی واخری ته ووایي چي موږ تاسي پر ضلال نه یاست مجبوره کړي بلکي تاسي په خپل هوا نفساني کفر مختاره کړی دی، نو تاسي فضیلت نه لرئ چي ستاسي عذاب نیم زموږ د عذاب وگرځي بلکي موږ او تاسي په کفر کي اختیاري او په هوا نفساني سره برابر یو، نو په عذاب کي به هم سره برابر یو.

**درویش وایي:** چي دا ؤ حاصل د مخاصمې د رئیسانو د کافرانو او د تابعانو په ورځ د قیامت عند رب العزة.

فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنتُمْ تَكْسِبُونَ ﴿۳۹﴾

نو وڅکئ او برداشتوئ عذاب د دوزخ اې تابعینو او متبوعینو په سبب د کسب ستاسو، نو ما مصدریه دی، او که ما موصوله سي نو عائد محذوف دی ای بالذي کنتم تکسونه، او په هر تقدیر مراد ځني کفر دی او دا قول د خدای پاک وتابعینو او متبعینو ته په واسطه د ملکو دی لا بالذات ولي کلام د خدای ﷻ بالذات لوی نعمت دی والکفار محرمون منها.

إِنَّ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَاسْتَكْبَرُوا عَنْهَا لَا تُفَتَّحُ لَهُمْ أَبْوَابُ السَّمَاءِ

په تحقيق هغه كسان چي تكذيب يې كاوه د آياتو زموږ چي په قرآن كريم كي نازل وه يعني چي كلام الله نه دی بلكې د عليه الصلوٰة والسلام خود ساخته كتاب دی او كبر يې كاوه له ايمان راوړلو څخه پر هغو ، نه خلاصيږي ودوی ته دروازې د اسمان يعني نه ددوی و روحانو ته او نه د دوی عملو ته. ابن عباس ﷺ وايي لارواحهم لانها خبيثة، نو اسمان ته يې صعود نه سي كېدای بلكې سجين ته يې غورځوي.

**درويش وايي:** چي په يو حديث طويل كي په روايت د براْ بن عاذب ﷺ چي روايت يې مالک او نسائي كړی دی چي په قول كي د عليه الصلوٰة والسلام په بيان كي د عبد كافر وويل چي ملكي چي تور مخان يې وي چي قبض كي روح د كافر وه يې پيچي په كراستو كي او ولاړيږي له هغه روح څخه د كافر لكه بدبويي د لوی جيفې "لاشې" چي د مځكي پر مخ وي، نو ملكي دا روح پورته كړي د اسمان وخوا ته، نو دا ملكي نه تيروي پر يو جماعت د نورو ملكو مگر هغه ملكي وايي چي دا څه خبيث روح ږ، نو ملكي ووايي چي دا روح د فلان بن فلان ږ په ډېر بد نامه يې ياد كړي هغه بد نوم چي دی په دنيا كي په يادېدی، حتی چي وه يې رسوي و اول اسمان ته او هغه ملكي چي دا روح يې راخستی دی طلب د خلاص والي د دروازې د اسمان وكړي، دروازه ملكي نه ورخلاصوي، ثم قرأ رسول الله ﷺ لا يفتح لهم ابواب السماْ، نو خدای پاک ووايي اكتبوا كتابه في سجين في الارض السفلى نو دا روح د كافر ملكي ور وه غورځوي هغه سجين ته الحديث.

وَلَا يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ حَتَّىٰ يَلِجَ الْجَمَلُ فِي سَمِّ الْخِيَاطِ

تر هغو چي نه سي داخلېدای وجنت ته چي داخل نه سي اوښ په سوري د ستنې، دا تعليق بالمحال دی، ولي اوښ چي ډېر غټ حيوان دی په سوري د ستنې چي ډېر كوچنی دی څه رنگه به امكان پذيره وي والمعلق بالمحال محال فدخول الكافر في الجنة محال.

**درویش وایي:** چي د عربو دا قانون دی چي د یو شي په نفي چي نهایت مبالغه کوي، نو یې معلق وګرځوي په داسي شي سره چي هغه محال وي، لکه یو شاعر چي په نفي کي د ورتلو خپل کور ته او خپل اهل ته مبالغه کوي او وایي

اذا شاب الغراب آتیت اهلي وصار القار کاللبن الحلیب

**ترجمه:** چي تک سپین سي کارګه نو زه به خپل اهل وعیال ته ورسم. او یا وګرځي دامبر چي لوک یې هم بولي لکه شیدې چي له غوا څخه ولوشل سي.

وَكَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُجْرِمِينَ ﴿۴۰﴾

او دغه رنګه جزا نا امیده کونکې له رحمت عامه څخه د خدای ﷻ مورې جزا ورکوو کافرانو ته.

لَهُم مِّن جَهَنَّمَ مِهَادٌ وَمِن فَوْقِهِمْ غَوَاشٍ ۚ وَكَذٰلِكَ نَجْزِي الظَّالِمِينَ ﴿۴۱﴾

دوی لره له اوره د جهنم فراش دی او که له لوړې خوا څخه پوښونکي شیان لکه تلتکان د اور دي یعني ان النار محیطة بجوانبهم.

**فائده:** اصل د "غواش" غواشي ؤ، نو یا چي حذف سوه تنوین عوض د یا محذوفي دی په نېز د سیبویه، یعني اوس هم غیر منصرف دی، ولي د یا عوض چي تنوین دی پاته دی ګویا یا پاته ده، نو وزن یې فواعل دی چي منتهی الجموع ده قائم د دوو سببو دی، او په نېز د غیر د سیبویه دا تنوین صرف یعني لفظ د غواش اوس منصرف دی لعدم بقا وزن منتهی الجموع.

**درویش وایي:** چي خدای پاک بیان د حال د مؤمنانو کوي پس له بیان څخه د حال د کافرانو کما هو عادته في القرآن، او وایي.

وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ

او هغه کسان چي ایمان یې راوړی وي او اعمال صالحه یې هم کړي وي لکه پینځه وخته لمونځ او یوه میاشت روژه چي دا د نر او ښځي غني او فقیر شریکه وظیفه ده، او یا زکوٰة او حج چي دا بیا په اغنیا پوري مخصوصه ده او نور نفلي ددغو عباداتو.

**پوه سه:** چي "والذین آمنوا الخ" مبتدا ده او جمله د "اولئک اصحب الجنة" تر پایه پوري خبر دی او جمله د لاتکلف جمله معترضه ده لپاره د دفع د توهم ددې چي په نحو کي قانون دی چي جمع محلي باللام له الفاظ څخه د عموم ده، نو بناً علی هذا القانون توهم ددې کېدی چي وعده د جنت مخصوصه په هغو خلگو پوري دی چي ټول اعمال صالحه يې کړي وي، یعني مسکین به هم زکوٰة ورکړي وي او حج به يې هم کړی وي، نو لپاره د دفع د توهم مذکور خدای پاک داسي وویل.

لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَآ

موږ تکلیف نه دی ورکړی هیڅ نفس ته مګر مطابق دده د توان او طاقت سره، مثلاً مسکین د زکوٰة توان نه لري او نه هم دی طاقت لري د حج، نو دی موږ نه دی مکلف کړی په ورکړه د زکوٰة او یا په ادا د حج بخلاف الغني فانه مطیق لهما فکلف بهما.

اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ

دغه کسان دي اصحاب د جنت یعني مالکان د جنت او اقامت کونکي په جنت کي یعني حسب مراتبهم او دوی په جنت کي همېشه لایخرجون منها ابداً الآبدین.

وَنَزَعْنَا مَا فِيْ صُدُوْرِهِمْ مِّنْ غِلٍّ

او موږ به وه باسو له سینو څخه ددوی یعني له زړو څخه هغه شی چي ددوی په سینو کي وُ د "غل" معنی حسد او عداوت دی چي ددوی په سینو کي وُ په دنیا کي.

**فائده:** نزعنا ماضي ده او دا نزع خو په جنت کي ده چي هغه مستقبل دی دا ددې لپاره چي یو شی که په مستقبل واقع کېږي لکن متیقن الوقوع وي لکه امر ماضي داسي دی، والحاصل ان اهل الجنة لایبقی في صدورهم الا التودد والمحبة وان کان في صدورهم غل وعداوة في الدنیا.

تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهِمُ الْاَنْهٰرُ

بهېږي به لاندي تر دوی یعني تر قصورو ددوی ولې، شیدې، اوبه، عسل او شراب.

وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي هَدَانَا لِهَٰذَا وَمَا كُنَّا لِنَهْتَدِيَ لَوْلَا أَنْ هَدَانَا اللَّهُ

او وايي به جنتيان حمد دي وي خداى ﷻ لره هغه خداى لره چي موږ ته يې هدايت وكړى دې جنت ته، وقيل للاعمال الموجبة للجنة يعني په دنيا كي او موږ نه وُ په خپل توان او طاقت سره چي موږ دې هدايت پيدا كړى واى كه چېرې خداى ﷻ هدايت موږ ته نه واى راكړى او توفيق يې نه واى راكړى، ولنعم ماقيل.

گر بدرقهٔ لطف تو ننماید راه		از راه تو هیچکس نگردد آگاه
آنگه که بره رسند وباید رفتن		توفیق رفیق نه شد واویلاه

له سدي رحمه الله څخه روايت دى ددې آيت په تفسير كي چي اهل جنت چي روان كړه سي وجنت ته په نېږ د دروازې د جنت يوه درخته چي په اصل ددې درختي دوې چينې وي فشربوا من احدهما فينزع مافي صدورهم من غل وهو الشراب الطهور كما جآ في القرآن في موضع آخر، واغتسلوا من الآخر فجرت عليهم نضرة النعيم او د سر ويښتان يې صاف سي رنگونه يې تازه سي او زېرى ورته وكړي ملكي د جنت دمخه ددوى داخلېدلو وجنت ته يعني داسي ورته ووايي "ان تلكم الجنة اورثتموها بما كنتم تعملون كما ورد في موضع آخر من القرآن.

**پوه سه:** چي لام په "لنهتدى" كي لام حجود او انكار لپاره د تاكيد د نفي دى او چونكه نهتدي فعل دى او حرف جر په قانون نحوي سره پر فعل نه داخلېږي، نو وروسته تر "لام" ان مصدري مقدر دى والمصدر المأول په معنى د فاعل دى خبر د كان دى، والتقدير ماكنا مهتدين.

**فائده:** د لولاً جواب محذوف دى دل عليه ماقبله. يعني لولاً هداية الله ماكنا مهتدين قاله المظهري رحمه الله بزيادة.

لَقَدْ جَاءَتْ رُسُلُ رَبِّنَا بِالْحَقِّ

لام موطئه د قسم محذوف دى په تحقيق راتگ كړى وُ رسولانو د خداى ﷻ په حق سره چي ددوى په ارشاد سره يې لار پيدا كړه، دا خبره ددوى صرف د خوشالۍ لپاره وكړه چي ما وعدهم الرسل يې په سترگو وليدل.

وَنُودُوٓا أَن تِلۡكُمُ ٱلۡجَنَّةُ أُورِثۡتُمُوهَا بِمَا كُنتُمۡ تَعۡمَلُونَ

او نعره وکړل سي وجنتیانو ته یعني ملائکه ندأ ورته وکړي، بعض مفسران وایي چي ندأ له لېږي ځخه پر وکړي چي دوی لا جنت ته نه وي رسېدلي کما یشعربه لفظ ندأ، او بعض وایي چي جنتیان چي جنت ته داخل سي، نو دا ندأ ورته وکړل سي، واختار السیوطي رحمه الله ویدل علیه تلک چي اسم اشاره ده. والمعنی نعره به وکړل سي وجنتیانو ته په دې سره چي دغه جنت په میراث درکړل سوی دی په سبب د اعمالو ستاسي، نو کلمه د ما مصدریه او کلمه د ان پلا پېښته سره ځایه کي تفسیریه دی.

صاحب المدارک وایي چي جنت ته میراث وویل سول په دې سبب چي عمل سبب ظاهري دی جنت محض فضل د خدای ﷻ دی چي خدای پاک یې وعده کړې ده پر طاعاتو، او ترک د منهیاتو کالمیراث من المیت لیس بعوض عن شئ بل هو صلة خالصة انتهی. مسلم له ابي سعید الخدري رضي الله عنه او له ابو هریره رضي الله عنه ځخه روایت کړی دی چي جنتیان چي جنت ته داخل سي یو نعره کونکی ندأ وکړي یعني یوه ملکه لپاره د زېري پر جنتیانو باندي "ان تصحوا فلا تمرضوا ابداً" چي تاسي لره دادی چي جوړ به یاست په بدن ابداً به نه ناجوړېږ کېږئ "وان لکم ان تحیوا فلا تموتوا ابداً" چي تاسي به ژوندي یاست مرئ به نه تر ابده پوري "وان لکم ان تشبوا فلا تهرموا ابداً" دا چي ځوانان به یاست زړېږئ به نه ابداً "وان لکم ان تنعموا فلا تبأسوا ابداً" او بل به په نعمتو کي یاست مسکینان کېږي به نه ابداً، نو دغه تفسیر دی د قول د خدای ﷻ.

وَنَادَىٰٓ أَصۡحَٰبُ ٱلۡجَنَّةِ أَصۡحَٰبَ ٱلنَّارِ أَن قَدۡ وَجَدۡنَا مَا وَعَدَنَا رَبُّنَا حَقّٗا فَهَلۡ وَجَدتُّم مَّا وَعَدَ رَبُّكُمۡ حَقّٗاۖ قَالُواْ نَعَمۡۚ

او نعره به وکړي اصحاب الجنة واصحاب النار ته چي په تحقیق موږ خو پیدا کړه هغه شیان چي وعده کړې وه رب زموږ حق ای الثواب والجنة آیا تاسي دوږخیانو پیدا کړی هغه شی چي ستاسي سره وعده کړې وه رب ستاسي من العذاب والنار دوږخیان وو وایي چي هو موږ ته هم موعود ورسېدی.

**سوال:** د دې ندا او اهل جنت او اهل نار ته فائده څه شی ده؟

**ځواب:** اظهار د خوشالۍ دی په خپل حال سره او اظهار د شماتت په حال د دښمنانو.

**پوښتنه:** د جنت او دوږخ تر منځ خو بعد المشرقين دی بلکې الى ما لا يعلمه الا الله، نو دا نعرې څرنګه سره اوري؟

**ځواب:** د دنيا صنعت په نننۍ زمانه کې د ټيلي فون په ذريعه يا د موبائيل په ذريعه تر بعد المشرقين بالا مسافت کې خلګ خبرې سره اوري. نو د خدای ﷻ وقدرت ته څه ځای د تعجب سته، قال السعدي الشيرازي

کنون باید ای خفته بیدار بود چو مرگ اندر آرد خوابت چه سود

تو پیش از عقوبت در عفو کوب که سودی ندارد فغان زیر چوب

فَأَذَّنَ مُؤَذِّنٌۢ بَيۡنَهُمۡ أَن لَّعۡنَةُ ٱللَّهِ عَلَى ٱلظَّٰلِمِينَ ۝٤٤

نو اعلان وکړي او نعره وکړي نعره کونکی، قيل هو اسرافيل په منځ کې د جنتيانو او د دوږخيانو يعني په داسي دول چې په دواړو فريقو يې واوري چې لعنت د خدای ﷻ دې وي پر ظالمانو يعني الکافرين.

ٱلَّذِينَ يَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ وَيَبۡغُونَهَا عِوَجٗا وَهُم بِٱلۡأٓخِرَةِ كَٰفِرُونَ ۝٤٥

دا موصول صفت دی د ظالمين مقرر ددوی د ظلم دی يا مرفوع على الذم دی بحذف المبتدا ای هم الذين آه، او يا منصوب دی على الذم بحذف اعني يا اذم يصدون ای يمتنعون بانفسهم، او يا منع کوي نور کسان له لارې څخه د خدای ﷻ چې اسلام دی او دوی طلبوي يعني عقيده لري او يا بل ته ورښيي لار د خدای ﷻ کږه يعني باطله يعني دين د شرک سمه لار بولي، او دوی په اخيرت سره چې د قيامت ورځ ده منکران وه، او چا چې ترجمه د اخيرت په خدای سره کړې ده هغه ترجمه غلطه ده، ابن عباس ﷺ يې داسي بيان کړی دی يصلون بغير الله ويعظمون مالم يعظمه الله وهم الاصنام.

**پوهه:** چې د يصدون معنا نه حال دی او نه استقبال، ولې اوس په دې آيتو کې خو مراد اخرة فالتقدير الذين يصدون في الدنيا كذا وكذا.

وَبَيْنَهُمَا حِجَابٌ ۚ وَعَلَى الْأَعْرَافِ رِجَالٌ

او په منځ کي د جنتيانو او د دوږخيانو پرده لويه، کما يدل عليه تنوين حجاب للتعظيم.

**پوه سه:** چي "اعراف" جمع د عرف ده په لغت کي لوړ شي ته وايي، نو ځکه د چرګ وچارخول ته عرف الديک وايي، او د اعراف معنا په دي ځای کي هغه لوی دېوال دی چي په سورة حديد کي خدای پاک ويلي دي فضرب بينهم ای بين اهل الجنة والنار بسور الآية والمعنى هٰ على اعالي السور رجال.

**درويش وايي:** چي ددې سور او دېوال عرض او طول او ارتفاع خدای ﷻ ته معلومه ده، په حديث کي د بخاري وغيره راغلي دي ان في الجنة مائة درجة مابين كل درجتين مائة عام، نو دا سور بايد دومره جګ وي چي له دې سببه جنتيان او دوږخيان نه سرهويني تاچه په بد بوي سره د دوږخيانو جنتيان نه سي ازار، نو هغه چي بعض علماؤ ويلي دي چي دا سور جبل احد دی چي دلته په منځ کي د جنتيانو او دوږخيانو فاصل ګرځي چي غلطه خبره ده، ولي چي د جبل احد نه دومره ارتفاع ده او نه يې دومره عرض سته چي د نهايت لويو جنتو او لويو دوږخو دي حائل وګرځي.

**درويش وايي:** چي په دې رجالو کي چي پر اعالي د سور او بل عبارت حجاب يې بولي څه قسم کسان دي، اعرف او اوجه او مشهوره يې داده چي دا هغه کسان دي چي حسنات او سيئات يې سره برابر وي، نو حسنات د دوی مانع له دخول څخه د نار دي او ددې څخه هم قاصر دي چي سبب د دخول د جنت دي وګرځي لتساوي السيئات معها مګر پر اعراف چي دوی وي دوږخيان په تور مخانو سره ووينې فيتعوذون منها او چي جنتيانو ته وګوري طمعوا فيها، نو ددې دوږخيانو په ليدلو او تعوذ سره ددوی حسنات مخ پر ډېرېدو سي، نو پر سيئاتو غالبه سي، او خدای جنت ته داخل کړي وبالجملة كونهم على الاعراف بسبب رويتهم اهل النار، نو نوع د عذاب ده، نو ځکه يې وروسته سبب د دخول وخت وګرځي نو اعراف دار القرار الى الابد نه دی، ومثل هذا جا في حديث ابن عباس ﷺ.

**درویش وایي:** چي بیهقي د ابن مجلز څخه روایت کړی دی چي اهل اعراف ملکي دي چي اهل جنت په خپلو علامو چي بیاض الوجوه دي او اهل النار په خپلو علامو چي سواد الوجوه دي پېژني فلیس بشئ لان الملائکة لا یسمون برجال او اهل الاعراف خدای ﷻ د رجال په نامه یاد کړي دي "وعلى الاعراف رجال" او روایت دی له مجاهد رحمه الله څخه چي اهل اعراف قوم د صالحانو فقهاؤ او علماؤ دی.

**درویش وایي:** چي مراد په دې آیت کي دادی چي دغو علماؤ فقهاؤ صالحانو نور اعمال سیئه کړي وي لکه کبر، حسد، عقوق د استاذانو الی غیر ذالک حتی چي دا ګنهونه ددوی د حسناتو سره ددوی برابر وي یعني خلطوا عملاً صالحاً اخر سیئاً فح ، یرجع هذا القول الی القول الاول.

**درویش وایي:** چي د اهل اعراف په بیان کي نور ضعیف اقوال هم سته نو ځکه ما صرف نظر کړه.

يَعْرِفُونَ كُلًّا بِسِيمَاهُمْ ۚ وَنَادَوْا أَصْحَابَ الْجَنَّةِ أَنْ سَلَامٌ عَلَيْكُمْ ۚ لَمْ يَدْخُلُوهَا وَهُمْ يَطْمَعُونَ ﴿٤٦﴾

اهل اعراف پېژني "كلا" ای کل فریق من المؤمنین والکافرین په علامه سره اهل الجنة چي پېژني په بیاض الوجوه سره او اهل النار په سواد الوجوه سره، او ناري وهي اصحاب الاعراف و اصحاب الجنة ته په دې لفظ سره سلام علیکم. خدای پاک وایي چي اصحاب الاعراف خو جنت ته تراوسه نه دي داخل سوي او دوی طمع د دخول د جنت لري. دلیل د طمع یې دادی چي موږ ته دا کرامت خدای پاک راکړی دی چي له اوره یې وساتلو. نو خدای ﷻ به ددوی سره نور کرامت هم وکړي چي جنت ته به یې هم داخل کړي. ولي چي د کریم کرامت مخ پر زیاتېدلو وي.

**بوه سه:** چي جمله د "لم یدخلوها وهم یطمعون" مستانفه ده محل د اعراب نه لري.

۞ وَإِذَا صُرِفَتْ أَبْصَارُهُمْ تِلْقَاءَ أَصْحَابِ النَّارِ قَالُوا رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا مَعَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ ﴿٤٧﴾

او چي واړول سي سترګي ددوی و طرف ته د اصحاب النار او ددوی عذابونه ووینې، نو وو ایي اصحاب الاعراف چي اې زموږ ربه ته موږ مه ګرځوه سره د قوم چي ظالمان دي یعني النار. مظهري وایي چي له سیاقه ددې آیت معلومېږي چي

اصحاب اعراف په منځ کې د خوف او رجا دي لاستوا حسناتهم مع سيئاتهم. ولايتصور ذالک في الانبياء والاولياء الذين لاخوف عليهم ولاهم يحزنون. نو هغه قول ضعيف دی بلکې باطل دی چې وايي اصحاب الاعراف انبياء عليهم السلام او ملائکه دي آه.

**درويش وايي:** چې صاحب د روح البيان پينځه لس (۱۵) قوله په بيان کې د اهل اعراف راوړي دي چې بعض مورِ سره د ماله وما عليه ذکر کړه او بعض مو رد کړه په قول د مظهري رحمه الله. او باقي اقوال يې محض احتمالات بلاسند ودليل دي فاعرضنا عن ذکرها لاجل ضعفها والله اعلم.

**وَنَادَىٰ أَصْحَابُ الْأَعْرَافِ رِجَالًا يَعْرِفُونَهُم بِسِيمَاهُمْ قَالُوا مَا أَغْنَىٰ عَنكُمْ جَمْعُكُمْ وَمَا كُنتُمْ تَسْتَكْبِرُونَ﴿٤٨﴾**

او ورناري کړي اصحاب الاعراف ته رجالاً يو څو کسانو يعني چې دوی به پيژني په علامو سره چې هغه غټان د کفارو وه په دنيا کې، او اصحاب الاعراف وهغو ته ووايي چې څه فائده وکړه تاسي ته جمع والي ستاسي يعني ډېر والي او خادمانو او اولادو او جمع کول د اموالو او هغه شي چې تاسي په هغه سره کبر کاوه پر خلګو او يا د حق له لاري څخه. قال الکلبي رحمه الله چې اصحاب اعراف داسي وايي يا وليد بن المغيرة يا اباجهل بن هشام ويا فلان مثلاً. پر دې ترجمه کلمه د ما استفهاميه ده. ويحتمل ان يکون نافيه يعني فائده يې ونه کړه په نجات د عذاب د دوزخ، بيا اصحاب اعراف وګوري و جنت ته چې په هغه ځای کې فقرا د مسلمانانو د عصر نبوي لکه سلمان فارسي، صهيب، بلال، خباب وامثالهم چې کفارو په دوی پسخند واهه. نو کفارو ته به.

**أَهَٰؤُلَاءِ الَّذِينَ أَقْسَمْتُمْ لَا يَنَالُهُمُ اللَّهُ بِرَحْمَةٍ ۚ ادْخُلُوا الْجَنَّةَ لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمْ وَلَا أَنتُمْ تَحْزَنُونَ﴿٤٩﴾**

اصحاب اعراف به اشاره وکړي وضعفاؤ ته د مسلمانانو آيا دغه کسان وه چې تاسي کافرانو به قسم اخستی چې دوی به خدای ﷻ ونه رسوي رحمت يعني

نعيم الجنة في القيامة، بیا د حق د خوا ملکي نداً وکړي واصحاب اعراف ته چي ځئ داخل سئ وجنت ته چي نه به بېره وي پر تاسي په آئینده کي د مکروه او نه به غم وي تاسي ته پر تېر سوي عمر په دنیا کي، ولي چي تاسي حقوق الله تړوله په دنیا کي پر ځای کړي دي بخلاف المقصرين بالاعمال في الدنيا لانهم يحزنون على تضييع العمر في الدينا بدون طاعة المولى.

**درويش وايي**: چي يو بل احتمال ادق من الاول سته چي بغوي رحمه الله هغه داسي بيان کړی دی چي اهل اعراف چي کفارو ته وايي "ما اغنى عنكم جمعكم الآية" کفار ودوی ته وايي چي هغه کسان چي جنت ته تللي دي هغه ولاړه او تاسي خو دلته پر اعراف بنديان ياست يعني پېغور ورکړي او اهل النار قسمونه واخلي چي تاسي به زمور ملګري ياست په اور کي، نو هغه ملکي چي اصحاب الاعراف يې په اعراف ساتله واهل نار النار ته ووايي اهولاً يعني اهل اعراف اقسمتم انهم لن ينالهم رحمة الله ثم قال الملائكة لاصحاب الاعراف ادخلوا الجنة لاخوف عليكم آه، بغوي رحمه الله وايي چي عطاً رحمه الله له ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت کړی دی چي اهل اعراف چي خدای جل جلاله جنت ته داخل کړي، نو د اهل النار هم د نجات طمع له اوره پيدا سي، او دوی ووايي يا رب مور خو اقرباً لرو په جنتيانو کي، نو مور ته اجازه راکړه چي مور دوی ووينو او ددوی سره خبري وکړو خدای پاک اجازه ورکړي، او خپل خپلوان په نعمتو کي د جنت ويني وه يې پېژني او جنتيان يې نه پېژني چي دا زمور قريبان دي لسواد وجوههم، نو يې بيرته دوږخ ته رد کړي.

**پوښتنه**: په دې کي د خدای جل جلاله څه حکمت و چي دوږخيانو ته يې اجازه ورکړه او خپل قريبان يې په نعمتو کي د جنت په وليدل، او بيرته يې اور ته رد کړه او په جنتيانو يې خپل قريبان نه وپېژندل؟

**ځواب**: حکمت الهي دادی چي دوږخيانو چي د خپلو اقرباؤ حال په جنت کي وګوري او بيرته دوږخ ته رد سي غم پر غم به يې بالا سي او دا به يې ارمان وي چي کاشکي مور هم په دنيا کي ددغو خپلو قريبانو جنتيانو لار مختاره کړې وای، نو مور به هم په نعيم مقيم کي وای لکه دوی چي دي، او په جنتيانو چي

يې خپل قريبيان نه وپېژندل حكمت يې دادى چې دوى ته كوم تأسف پر حال د اهل نار قريبانو په زړو كي پيدا نه سي.

**فائده**: په هغه آيت كي چې اهل اعرافو كفارو ته وويل "ما اغني عنكم جمعكم الآية" چي كوشش به يې كوى د مال او استكبار او افتخار بكثرة الخدم والاعوان والانصار لكه د اوسنى زماني خلگ چې يې كوي دا تيوله ډېر مذموم او بېكاره صفتونه دي، سعدي شيرازي قدس سره وايي:

نه منعم بمال از كسى بهتر است — خر ارجل اطلس بپوشد خراست
بدين عقل وهمت نخوانم كست — وگر ميرود صد غلام درپست
تكبر كند مرد حشمت پرست — نداند كه حشمت بحلم اندر است
چو منعم كند سفله را روز گار — نهد بر دل ريش درويش بار
چو بام بلندش بود خود پرست — كند لول وخاشاك بربام پست

وكان من دعا النبيﷺ اللهم حسن خَلقي وخُلقي، وقد مدحه الله بقوله "وانك لعلى خلق عظيم" او په صحيح روايت ثابته ده چې عليه الصلوٰة والسلام د فقرا او مساكينو مجلس كاوه، او دوى به يې ورسره خوړله او دى مبارك چي به په لاره كي تېرېدى كوچنيانو ته به يې سلام وايه، داسي نه ؤ لكه زما يو شاگرد چي د مسجد مقتديان يې زما خلاف دي، نو دى هم سلام نه را اچوى شاگرد هم ددوى د مسجد ملا دى ما ته سلام نه را اچوي متابعةً لاجل المسجد المخالفين.

**روايت**: يو سړى د عليه الصلوٰة والسلام ومجلس ته راغلى، نو د عليه الصلوٰة والسلام له ډېره هيبته ورېږدېدى، عليه الصلوٰة والسلام ورته وويل هوّن عليك فلستُ بملك انما انا ابن امرئة من قريش كانت تاكل القديد، او په صحيح روايت سره ثابته ده چي عليه الصلوٰة والسلام به گرده عمر د خلگو سره كښېنستى چي يو ناولده سړى به راغلى نه يې پېژندى چي عليه الصلوٰة والسلام كوم يو دى، نو پوښتنه به يې وكړه، نو دا تيوله د عليه الصلوٰة والسلام د تواضع كارنامې وې.

ذو النون مصري وايي چي علام د سعادت د سړي حب الصالحين والدنو منهم، وتلاوة القرآن وسهر الليل والناس نيام ورقة القلب ومجالسة العلما المتدينين.

وَنَادَىٰٓ أَصۡحَٰبُ ٱلنَّارِ أَصۡحَٰبَ ٱلۡجَنَّةِ أَنۡ أَفِيضُواْ عَلَيۡنَا مِنَ ٱلۡمَآءِ أَوۡ مِمَّا رَزَقَكُمُ ٱللَّهُۚ

او ناري کړي خلگ د دوږخ یعني و اصحابو ته د جنت او په نومانو به ورناري کړي او خپل قرابتونه به هم ورته بیان کړي چي مثلاً زه ستا پلار یم یا ستا زوی یم وامثال ذالک، او ورته وایي به چي تاسي خو راتوی کړئ یو څه د جنت اوبه پر موږ باندي یعني موږ ډېر تږي یو، او یا بعض له هغه نعمتو څخه چي خدای ﷻ تاسي ته په رزق درکړي دي مثلاً انگور، انار، اینځر الی غیر یعني د جنت ونعمتو ته ډېر وږي یو، ولي چي کافرانو ته په دوږخ کي نهایته تودې اوبه چي حمیم یې بولي د څښاک لپاره ورکول کېږي، او د زقوم د درختي مېوه د خوراک لپاره ورکول کېږي کما ورد في القرآن "ان شجرة الزقوم طعام الاثیم. ولهم شراب من حمیم.

قَالُوٓاْ إِنَّ ٱللَّهَ حَرَّمَهُمَا عَلَى ٱلۡكَٰفِرِينَ ۝

جنتیان به ورته ووایي چي دا د جنت اوبه او طعام خدای ﷻ حرام گرځولی دی پر کافرانو باندي، په تفسیر مدارک حنفي کي وایي چي دا تحریم د منع دی یعني منع بهما من الکافرین یعني لا التحریم الشرعي کما في قوله تعالی في قصة موسی علیه السلام "وحرمنا علیه المراضع" والوجه الظاهر علی العاقل.

ٱلَّذِينَ ٱتَّخَذُواْ دِينَهُمۡ لَهۡوٗا وَلَعِبٗا

ای الدین الذي امر بالتدین به وهو الاسلام قاله البرسوي وفسر المظهري بهذا العبارة بتحریم البحیرة واخواتها، او شپېلکی حول البیت والطواف عریاناً واکل المیتة آه.

**درویش وایي:** چي د علامه برسوي رحمه الله تفسیر ډېر ښایسته دی. ولي چي دوی پسخند او لهو لعب به یې په اسلام باندي کاوه. و اما ذکره المظهري رحمه الله فهو معتقدیهم وان کان باطلاً ولا یفعلون تلک الامور بصورة اللهو واللعب.

**درویش وایي:** چي قاضي بیضاوي رحمه الله د لهو تفسیر داسي کړی دی صرف الهم بما لایحسن ان یصرف الیه واللعب طلب الفرح بما لایحسن ان یطلب به. وعلی هذا التقدیر یصح تفسیر المظهري ایضاً کما لایخفی فافهم.

وَّغَرَّتْهُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا ۚ فَالْيَوْمَ نَنْسٰهُمْ كَمَا نَسُوْا لِقَآءَ يَوْمِهِمْ هٰذَا ۙ وَمَا كَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يَجْحَدُوْنَ ۝

دوی خطا یستلي وه ژوند د دنیا یعني اخیرت یې هېر کړی و، او ددوی دا عقید، وه چې له دې ژوند ماسوا بل ژوند نسته او خیر وشر په دې دنیا کې دی وبس، نو ننن ورځ یعني د قیامت په ورځ موږ دوی پرېږدو په جهنم کې کما نسوا الکه دوی چې هېر کړی و ملاقات د ورځې ددوی چې دغه ده، یعني ایمان پر دې ورځې د قیامت او د جنت او دوږخ نه درلودلو والا لآمنوا وعملوا عملاً یکون سبباً لنجاتهم من عذاب هذا الیوم "وما کانوا آه" ای کانوا بآیاتنا المنزلة ینکرون یعني انکار یې کاوه.

**فائده:** درویش وایي چې ما تفسیر د ننساهم په نترکهم چې معنا یې دا وه چې موږ دوی پرېږدو له دې سببه چې حقیقت نسیان خو پر خدای ﷻ محال ده.

وَلَقَدْ جِئْنٰهُمْ بِكِتٰبٍ فَصَّلْنٰهُ عَلٰى عِلْمٍ

لام موطئه د قسم محذوف دی اې والله په تحقیق موږ دراستولی ؤ و تاسي ته یو کتاب چې قرآن عزیز ؤ چې په هغه کې مو تفصیل د حلال او حرام کړی ؤ او مواعظ او قصص پکښې وه او عقائد حقه مو له باطله څخه پکښې جلا کړي وه پر علم زموږ ای عالمین بمصالحهم فهو حال من فاعل فصلنا او مشتملاً علی علم فهو حال من مفعول فصلناه.

هُدًى وَّرَحْمَةً لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ۝

چې عین هدایت ؤ دا کتاب او عین رحمت ؤ فالحمل مبالغة کزید عدل او یا په حذف د مضاف ای ذو هدایة وذو رحمة د هغه قوم لپاره چې دوی ایمان راوړی وي.

**پوښتنه:** قرآن مجید خو هدایت او رحمت د ټولو دنیا والو دی، نو تخصیص د قوم مخصوص یې ولې وکړی؟

**ځواب:** له دې سببه چې مشتغون په هدایت د قرآن او د رحمت د قرآن دغه قوم دی چې یؤمنون به دي، مثلاً باران چې وه اوري له اسمان څخه نو نفع هغه کسان پر اخلي چې مځکه یې خوږه پاکه مځکه وي، او که یې مځکه تروه یا ترخه وي په هغه مځکه کې نفع آور شیان نه پیدا کېږي بلکې ځوزان وغیره شنه کېږي.

## هَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا تَأْوِيلَهُ

**پوه سه:** چې "هل" استفهامیه انکاري دی بقرینة الاستثنا او "ینظرون" په معنا د ینتظرون دی او د "تاویل" معنا ما یؤل الیه ده، نو حاصل دادی چې انتظار نه کوي کفار د ایمان راوړلو پر قرآن مګر مایؤل الیه امر القرآن یعني صدق یې ښکاره کېږي او دا معلومېږي چې وعد او وعید د قرآن رښتیا دی او که نه.

## يَوْمَ يَأْتِي تَأْوِيلُهُ

هغه ورځ چې راسي مآل د قرآن، وذالک یوم موتهم او یوم القیامة، ولې چې صدق د قرآن په دغو دوو ورځو کې کفارو ته ښکاره کېږي، او هغه وخت د قرآن د صدق ظهور دوی ته فائده نه کوي اذ قد مضٰی دار التکلیف الایمان، ولې د دنیا په ژوند کې چې دوی ایمان نه راوړی، نو اوس که یې راوړي هم فائده نه لري.

## يَقُولُ الَّذِينَ نَسُوهُ مِن قَبْلُ قَدْ جَاءَتْ رُسُلُ رَبِّنَا بِالْحَقِّ

وایي به هغه کسان چې دوی هېر کړي یعني پرې ایښې یې و هغه کتاب ولم یؤمنون به، په تحقیق راتګ کړی و رسولانو د خدای ﷻ پر موږ په حق دین سره چې اسلام و یعني دغه ورځ به دوی ته دا معلومه سي رسولانو خو راتګ په حق دین سره کړی و، او اقرار یې په حقیت د دین د رسولانو وکړی لکن اقرار په دې ورځ ودوی ته فائده نه کوي، ولې دار الابتلا تېر سو.

## فَهَل لَّنَا مِن شُفَعَاءَ فَيَشْفَعُوا لَنَا أَوْ نُرَدُّ فَنَعْمَلَ غَيْرَ الَّذِي كُنَّا نَعْمَلُ

ـو آیا ښسته موږ لره شفاعت کونکي چې زموږ شفاعت وخدای ﷻ ته وکړي او یا موږ رد کړل سوو و دنیا ته، نو موږ به عمل وکړو غیر له هغه عمل څخه چې موږ په دنیا کې کاوه چې هغه شرک او عصیان دی. یعني ایمان به مو راوړی وای او عمل صالح به مو کړی وای، ملکې به د خدای ﷻ له طرفه ورته ووایي چې نه شفاعت کونکي لرئ او نه مو وه دنیا ته رد کېدای سي، فیئسوا من کل ما استفهموه وتمنوه.

**پوه سه:** چې او "نرد آه" عطف دی پر ماقبل جملې باندې او د هغې جملې سره

په استفهام کي داخله ده، نو ګویا دوی داسي وویل فهل لنا من شفعائنا او نړد ا ه.

قَدْ خَسِرُوٓا اَنْفُسَهُمْ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ

په تحقیق دوی په تاوان کي واقع کړه خپل ځانونه چي ټول عمر د دنیا یې په کفر او شرک کي تېر کړی ؤ، او نیستي سوه له دوی څخه هغه چي دوی په دنیا کي کاذبانه دعوې کولې چي دوی به ویل چي خدای ﷻ موږ په شرک سره امر کړي یو، یا به یې ویل په باره کي د بتانو "هؤلاء شفعائنا عند الله"

**درویش وایي:** چي امام همام غزالي رحمه الله په احیاء العلوم کي وایي که څوک کښت وکړی او بنه یې و روزی او بیا چي پوخ سو وه یې رېبلی او درمند یې ځني جوړ کړی، نو یې داسي وویل چي رجاء او امید دی چي دا درمند به سل کاسیې غنم مثلاً وکړي، نو دې ته رجاء وایي، او یو بل سړی چي د کښت په وخت کي یې هیڅ کښت نه ؤ کړی او د کښت وخت یې په غفلت او عیشو کارو کي صرف کړی، نو وخت د درمندانو د ذراعینو راغلی، نو ده به ویل چي ماته به هم خدای ﷻ سل کاسې غنم راکړي، نو دا رجاء نه ده بلکې ودې ته امنیه وایي بلا اصل، نو دغه دی حال د مؤمنانو او کافرانو چي مؤمنان وایي چي انبیاء علیهم السلام به زموږ شفاعت وکړي او کافران وایي چي بتان به زموږ شفاعت وکړي، او داغه رنګه دی حال د هغه مؤمن چي په عبادت کي د خدای ﷻ یې کوشش کړی وي او له منهیاتو څخه یې ځان ساتلی وي، او بیا دا وایي چي زما رجاء او امید دی چي خدای ﷻ به زما دا لږ عمل قبول کړي، او که څه تقصیر ؤ هغه به خدای ﷻ را وبخښي او لوی ثواب به راکړي فهذا منه رجاء، او یو بل سړی دی چي په رضاء او سخط کي د خدای ﷻ فکر نه کوي او نه په وعد او وعید کي د خدای ﷻ ری وهي او سره ددې وایي ارجوا من الله ان یدخلني الجنة ویجیرني من النار فهذا منه امنیة بلا اصل.

إِنَّ رَبَّكُمُ اللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ فِيْ سِتَّةِ اَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ

په تحقیق سره ستاسي رب یعني چي تاسي ته تربیه درکوي یعني چي په

رحم کي د مور واست بیا تر آخره پوري د عمر یو الله دی هغه الله چي پیدا کړي یې دي اوه اسمانونه او مځکه په شپږ ورځي کي یعني په مقدار د شپږو ورځو کي چي په علم کي د خدای وې، وانما قلنا ذالک لانه لم یکن في ذالک الوقت شمس ولا قمر یدل علی اللیل والنهار مشهوره دا ده چي په شپږ ورځي کي او بعض مفسران وایي چي په شپږو ورځو کي ده ورځو ده آخرت چي هره ورځ یې زر کاله ده.

**پوه سه**: چي سعید بن جبیر ﷺ وایي چي خدای قادر وو چي په شپږ لمحه او لحظه کي پیدا کړي وای.

لکن مع هذا په شپږ ورځو کي ده آخرت یې پیدا کړه، او یا پیدا یې کړه په شپږو ورځو کي د دنیا لپاره د تعلیم د خلګو چي هر کار چي کوي یې په مهلت او تفکر او تاني سره یې کوي وقد جا التاني من الرحمٰن والعجلة من الشیطان ولي که شیطان یو ګړی فکر کړی وای په وخت د امر آلهي په امر کي د سجدې وآدم او عجولا یې انا خیر منه خلقتني من نار وخلقته من طین یې نه وای ویلی رجیم ابدي به نه وای ګرځیدلی، وفي المثنوي.

مکر شیطانست تعجیل شتاب — خوی رحمانست صبر واحتساب
با تاني گشت موجود از خدا — تا بشش روز این زمین وچرخها
ورنه قادر بود کزکن فیکون — صدر زمین و چرخ آوردي برون
این تاني از پی تعلیم تست — صبر در کار دیرآئی و درست

علماً ﷺ وایي چي تعجیل او تلوار په څو ځایه کي ښه کار دی.

(۱) فی التوبة بعد الذنب.

(۲) پور ورکول چي ستا په زمه کي وروسته تر دې چي وخت یې پوره سي" لانه قد جا مطل الغنی ظلم" حدیث نبوي.

(۳) او میلمه ته ډوډۍ ژر ورکول که څه هم ستا وخت معتاد تاخیر وي ولي چي شاید میلمه به ډېر وږی وي.

(۴) د لور تاخیر چي بلوغ ته ورسېږي ژر په نکاح ورکول.

(۵) دفن د میت مه ځنډه وه.
(٦) غسل جنابت بېله عذره مه ځنډه وه.

**پوه سه**: چي "عرش" هغه چوکۍ ته وايي چي بادشاهان پر کښيني او بله معنی د عرش دا ده چي پر سرې لوړ وي او پر سر يې سايه کړې وي او دا دواړې معنی وي په خدای کي محالې دي ولې چي د دې دوو معناوو څخه جسميت د خدای او مکان لازمېږي وهو تعالی منزه عن الجسمية والمکان نو بنا على هذا صاحب ده روح البيان وايي چي استوا على العرش کناية ده دنفس عزت او سلطنت على طريق ذکر اللازم وارادة الملزوم" فالمعنى ان الله تعالی بعد ان خلق السموات والارض في ستة ايام کما اراد سلطنت خپل جاري کړی فسير الکواکب او ورځي او شپې يې پيدا کړې او تدبير د کار د مصنوعاتو خپل يې جاري کړی حسب ما يقتضيه الحکمة. قاضي بيضاوي وايي استوی على العرش ای استقر امر ربوبيته وجرى امره وتدبيره ونفذ قدرته في مصنوعاته کلها.

**پوښتنه**: تخصيص ده عرش يې ولي وکړی جواب وجه د تخصيص دا ده چي عرش اعظم ده مخلوقاتو دی لانه محيط بجميع عالم الاجسام فالاستوا عليه استوا على ما عداه ايضا من الجنة والنار والسموات والعناصر والمرکبات منها په تفسير حسيني کي وايي ثم اتسوی پس قصد کرد على العرش بآفرينش عرش.

**پوه سه**: چي حدادي ﷺ وايي چي ثم دلته په معنی ده واو دی لمطلق الجمع لا للتراخي لان خلق العرش کان قبل السموات والارض کما ورد فی الخبر ان اول شئ خلق الله القلم ثم اللوح فامر الله القلم ان يکتب ما هو کائن الى يوم القيامة ثم خلق العرش ثم خلق حملة العرش ثم خلق السموات والارض

معتزله تأويل د استوا په استيلاً او غلبه سره کوي" او اهل سنت والجماعة وايي چي استوا على العرش صفت دی د خدای پاک بلا کيف يجب على المؤمن الايمان به ويکل العلم به الى الله تعالى يعني استوا على العرش ده قسمه د متشابهاتو دی. فيجري به على سنن سائر المتشابهات يعني الايمان بها وتفويض العلم بها الى الله عز وجل.

د امام مالک بن انس رحمه الله څخه چا د دې آيت پوښتنه وکړه الرحمٰن علی العرش استوی" کیف استوی امام مالک رحمه الله سر ډیره زمانه کښته څرولی وو. ثم قال الاستوا غیر مجهول یعني ایمان پر واجب دی والکیف غیر معقول یعني کیفیت ته د استوا عقل لار نه لري" والایمان به واجب والسوال عنه بدعة" باره یې هغه سړی دباندې وشاړه.

**پوه سه:** چې د سفیان ثوري رحمه الله او د اوزاعي رحمه الله او د لیث بن سعد رحمه الله او د سفیان بن عیینة رحمه الله او د عبد الله رحمه الله او د نورو علماو څخه د اهل سنت رحمه الله په دې آیتو کې چې صفاتو متشابهه وکې راغلي چې به چا پوښتنه وکړه، هغو به جواب داسې ورکاوه امروها کما جائت بلا کیفٍ یعني ایمان بما اراد الله تعالی بها پر لري بېله بیانه د کیفیت.

**درویش وایي:** چې یوه ډله چې د مجسمه وو په نامه یادیږي یعني چې خدای جسم بولي مخ لاسونه او پښې او نور اعضا ورلره وایي دا تولو آیتونه یا احادیث پر خپل ظاهر جاري بولي، دا وو تحقیق ده ثم استوی علی العرش، په کم علم د درویش والعم عند الله العزیز العلام.

## يُغْشِي الَّيْلَ النَّهَارَ يَطْلُبُهُ حَثِيثًا

خدای ﷻ پټوي په شپه ورځ یعني شپه چې خدای را ولي په غروب د شمس ورځ پټه کړي، طلب کوي شپه د ورځې وبالعکس چابک بدون مهلة.

**سوال:** عکس یې ولي نه کړی ذکر یعني یغشی النهار اللیل.

**ځواب:** په عکس یې سړی پوهیږي یعني عکس ده اصل څخه فهمیږي او بل جواب دا دی چې مذکور عبارت د قرآن ده دواړو احتمال لري یعني باعتبار جعل اللیل مفعول اول والنهار مفعول ثاني او بالکعس فافهم، فانه دقیق، او بغوي رحمه الله وایي چې عبارت یغشي النهار اللیل محذوف دی لدلالة المذکور علیه وفیه نظر فتامل اشارة الی ان یصح بدون کمامر فلاحاجة الی الحذف منه.

**پوه سه:** چې "حثیثا" مفعول مطلق دی د یطلبه یعني طلباً حثیثا ای سریعا.



Scanned by CamScanner

وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ وَالنُّجُومَ مُسَخَّرَاتٍ بِأَمْرِهِ

**پوه سه:** چي مشهور قرائت په نصب سره دی د شمس او قمر او نجوم چي عطف دی پر سموات باندي دی والتقدير ان ربکم الله خلق الشمس آه او لفظ د مسخرات چي معنی يې مذللات حال دی د ثلاثه وو څخه او بامره چي معنا يې بقضائه ده متعلق په مسخرات پوري دی، او ابن عامر رحمه الله لفظ د شمس او قمر او نجوم او مسخرات په رفع سره چي مبتدأ او خبر ې بولي.

أَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَالْأَمْرُ

آگاه اوسه چي خدای لره دی خاصة خلق او امر لاشريک له فيهما" ولا اعتراض عليه تعالی فيها" يفعل ما يشأ ويحکم ما يريد" بغوي وايې چي سفيان بن عيينة رحمه الله وايې فرق بين الخلق والامر فمن جمع فيهما يعني چي خلق او امر يو دی فقد کفر آه.

**پوه سه:** چي فخر الدين الرازي رحمه الله په تفسير کبير کي وايې چي عالم ماسوی ته د خدای وايې حصر دی په دوو نوعو کي عالم الخلق وعالم الامر، عالم الخلق الاجسام والجسمانيات ته وايې او عالم الامر وه ارواح او مجرداتو ته وايې او دا قول د خدای جل جلاله الا له الخلق والامر اشاره ده وغو دوو عالموته.

او وجه د تعبير د اول څخه په عالم خلق سره يې دا بيان کړې ده خلق عبارة د تقدير څخه دی وکل ماکان جسماً او جسمانياً يکون مخصوصاً بمقدار معين فعبر عنه بعالم الخلق او هر شی چي مجرد وي ده حجم او مقدار څخه کان من عالم الارواح وعالم الامر لانه مکون بمجرد امر کن فسمی کل واحد باسم مناسب له انتهی قول الامام رحمه الله .

**درويش وايې:** چي مناسب ده رايې سره د امام صوفيه کرامو هم مختاره کړي ده باسما مصطلحة لهم.

تَبَارَكَ اللَّهُ رَبُّ الْعَالَمِينَ ﴿٥٤﴾

ای تعالی الله تعالی بالواحدنية فی الالوهية وتعظم بالتفرد فی الربوبية، شوک وايې چي تبارک مشتق دی د برکة څخه په معنا د نما او زيادة ومن لوازمه العظمة"

او بعض مفسرين وايي چي بركت او خير كسب كبري په ذكر سره ده خداى جل ذكره، د ابن عباس ﷺ روايت دى چي معنا يې دا ده جاً الله تعالى بكل بركة.

**درويش وايي**: چي نوري معناوي د دې آيت د علماؤ څخه منقول دى چي مآل د تولو سره نژدې دى.

ادْعُوا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً

تاسي بولي يعني ذكر كوئ د خداى" په عجز او په اظهار د مسكنت او په پته خوله "بايزيد بسطامي رحمه الله وايي" چار چيز آورده شاها كه در گنج تو نيست،

عاجزي ومسكيني فقر گناه اورده ام ايوبي وايي په گناه درته اقرار يم

ستا د رحم انتظار يم.

**پوه سه**: چي تضرعا او خفية حال دي د فاعل څخه د ادعوا اى زوي تضرع وخفية.

**درويش وايي**: چي د قديم زماني څخه په دې كي اختلاف دى چي ذكر په پته اولى دى لكه مذهب د ساداتو نقشبنديه وو چي دى او دا آيت هم د دوى دليل او يا ذكر بالجهر اولى لكه عادت د ساداتو د قادريه او چشتيه چي دى.

**درويش وايي**: چي دليل د فضيلت ده اخفاً دا دى چي ابعد ده رياً څخه دى او پر اخلاص او حضور مشتمل دى په دې كي شك نسته چي ذكر خو عبادت دى كه جهرا وي چي ريا نه وي پكښې او كه سرا وي او دا حديث چي روايت يې بخاري او مسلم دواړو كړي ده ابي هريرة ﷺ څخه قال قال رسول الله ﷺ چي خداى پاك وايي چي زه په نيز د ظن د بنده يم په ماسره اوزه د بنده سره ور سره يم كه چيري بنده زما ذكر په زړه كي وكړي ذكرته في نفسي او كه زما ذكر په يو جماعت كي وكړي يعني په جهر سره زه بې هم ذكر وكړم په داسي جماعت كي چي خير به وي تر جماعت د ده يعني جماعت الملائكة انتهى بالترجمة، دا حديث فائده كوي فضيلت ده ذكر د اخفاً والجهر كليهما كما لايخفى.

**فائده**: حسين كاشفي رحمه الله په رساله عَلَيه كي وايي "اى درويش قومي كه كمين گاه نفس را ديده اند ودانستند ذكر بجهر مناسب نه ديده اند" كه به رياً انجامد ومخفي به ذكر شغول شده اند وقول حق تعالى را كه واذكر في نفسك

تضرعا وخفية كار بستند وجمعي كه بمرتبه اخلاص رسيدند وخود را وباطن خود را از ريا پاک يافتند ذكر را بجهر گفتند وهر يكي را ازين دو طائفه وعمل خود دلائل است انتهى.

**پوښتنه**: چي په آيت شريف كي راغلي ﴿فاذكروا الله كذكركم آباكم او اشد ذكرا﴾ دا آيت خو دلالت پر فضيلت د جهر بالذكر كوي. ولي چي اهل جاهليت خو په ايام كي د منئ ذكر د خپلو نيكه گانو په جهر سره كاوه جواب تشبيه په جهر كي نه ده بلكه په ډير والي كي د ذكر ده يعني ذكر د خداى ډير كوئ لكه ذكر د نيكه گانو چي مو ډير كاوه.

**درويش وايي**: چي مظهري دعوه د اجماع د علماؤ كړې ده پر دې باندي چي ذكر خفية هو الافضل والجهر بالذكر بدعة الا في مواضع مخصوصة چي ضرورت و جهر ته وي لكه آذان اقامة تكبيرونه ده تشريق او تكبيرونه د انتقالاتو د لمانځه والتسبيح للمقتدي اذا ناب نائبة والتلبيته في الحج والعمرة.

**پوه سه**: چي حسن بصري رحمه الله وايي چي ذكر السر مجمع عليه ده صحابه وو رضي الله عنهم او د تابعينو رحمهم الله دى او (۷۰) واره ذكر السر تر ذكر الجهر بالادى او خداى جل جلاله علاوه پر دې چي دلته يه ويلي دي ادعو ربكم تضرعاً وخفية په قرآن مبارک کي ده خپل يو صالح بنده په فضيلت كي ويلي دي" اذ نادى ربه نداً خفياً او بل پر فضل ده ذكر خفي هغه حديث چي احمد يې روايت كړى د سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه دلالت كوي چي عليه السلام ووېل خير الذكر الخفي وخير الرزق مايكفي" او په حديث شريف كي راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام او صحابه كرام رضي الله عنهم د خيبر غزاته روان وه خلكو ته يوه شيله په مخه ورغله نو دوى الله اكبر په زوره شروع يعني په جهر سره فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وويل چي نرمي وكړئ پر خپلو ځانو يعني په زوره تكبير مه وايا ست انكم لا تدعون اصم ولا غائبا انكم تدعون سميعاً قريباً رواه البغوي لكن درويس وايي چي دا حديث كه څه هم دلالت كوي پر افضليت د ذكر خفي لكن دا قول د عليه الصلوة والسلام اربعو على انفسكم چي نهي د جهر او امر بالاخفى دى په سبب د شفقت دى لا عدم جواز الجهر بالذكر اصلاً" علما وايي چي ذكر درې قسمه دى (۱) يو دادى چي جهر تر داسي

اندازې وي چي نعرې ورسره وهي داخو مکروه بالاتفاق مگر هغه وخت مکروه نه دی چي په ناړو کي حکمت وي او ضرورت ورته وي او اذن شرعي په کښي بیا نو داسي ذکر تر اخفاً افضل دی لکه اذان او تلبیه وغیرهما.

**پوښتنه**: صوفیان د طریقه چشتیې خو ورته ذکر کوي، یعني ناړې پکښي وهي؟

**ځواب**: (۱) د ساداتو د دغو صوفیانو ورته ذکر چي کوي په مبتدیانو د دوی کوي، او د دوی په ورته ذکر کي حکمت دا دی چي طرد د شیطان وکړي او دفع د غفلت او نسیان وکړي او بلول د اور د محبة آلهي د دوی په زړو کي پیدا کړي یعني د مریدانو ومع ذالک یشترط الاحتراز عن الریاً والسمعة.

(۲) او بل دا دی چي ذکر خو په ژبه وي لکن سراً" وهو المراد بقوله علیه الصلوة والسلام لایزال لسانک رطباً من ذکر الله رواه الترمذي وابن ماجة وروی احمد والترمذي قیل ای لرسول الله ای الاعمال افضل قال ان تفارق الدنیا ولسانک رطب من ذکر الله تعالی.

(۳) او بل ذکر دی په قلب او روح وغیرهما من اللطائف المروجة لسادات الطریقة النقشبندیة چي په ذکر کي ژبه مداخله نه لري دا هغه ذکر دی چي کرام کاتبین حفظة هم نه دي په خبر چنانچه شاه نقشبند قدس سره وایې.

لب به بند وچشم بند گوش بند　　　　گر ندیدی سر حق برما بخند

مظهري وایې چي ابو یعلی له عائشې ﷺ نقل کړی دی قالت قال رسول الله ﷺ چي فضیلت د ذکر خفي چي حفظة یې هم نه اوري او یا صعف دی د نورو اذکارو حتی ورځ چي د قیامت سي او خلگ لپاره د حساب جمع کړه سي او حفظة راتگ وکړي بما حفظوا او کتبوا خدای پاک ووایې انظروا هل بقی له من شئ نو ملکي حفظة ورته ووایې چي موږ نه دي پرې ایښی یو شئ مما علمناه وحفظناه مگر هغه موږ لیکلي دي نو خدای ﷻ ورته ووایې چي ده لره یوه حسنه سته چي تاسي نه یاست په خبر زه یوازې په خبر یم وهو الذکر الخفي المذکور.

**فائده**: دا ذکر ته حضور قلبي وایې وقد عبر سادات النقشبندیة عن هذا الذکر به خلوت در انجمن" وسفر در وطن ونظر بر قدم.

**فائده**: د عمر ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله صلی الله عليه وسلم چي به لاسونه پورته کړه په دعا کي تر هغو يې لاسونه نه رده ول څو چي مخ په مسح کړي تبرکاً تاچي هغه برکت چي پر لاسو نازل سوی دی مخ ته يې هم برکت ورسېږي.

**فائده**: که داعي د خدای څخه يو مطلب غوښتی د مطالبو څخه د دنيا يا آخرت لاسونه دي خلاص ونه سي د اسمان وخواته سره د ادنی فرجي او که يو چا نجات غوښتی د عذاب د دنيا يا د آخرت نو لاسونه دي پورته کړي او د مخ پرده دې وګرځوي، او که يو چا مستحق ته د ښرا يعني ظالم ته يا عاق ته ښرا کوله د لاسو شا دي د آسمان وخواته کي او مخان دي د مځکي خواته.

**فائده**: لوی شرط د دعا د قبلېدو نفقه حلاله ده او بل شرط تيقن بالاجابة دی لان الله حييئ کريم يستحي ان يرد الايدي المرفوعة اليه صفرا کما ورد في الحديث النبوي ﷺ.

**فائده**: د انسانانو دا عادت دی غالباً چي څوک شی غنندي غواړي د هغه چاسه يې بد راځي او د کريم خدای ﷻ دا عادت چي څوک محتاجه وي که څه هم ډير لږ او حقير شي او د خدای ﷻ څخه يې نه غواړي خدای غنندي ناراض کېږي حتی شعص النعل کما ورد في الحديث.

**فائده**: په يوه لاس ببله عذره دعا بدعت ده بلکه دواړه لاسونه دي پورته کوي.

إِنَّهُۥ لَا يُحِبُّ ٱلْمُعْتَدِينَ ۝٥٥

په تحقيق د خدای ﷻ نه دی خوښ تجاوز کونکی په دعا کي يعني تر حد شرعي لکه يو څوک چي سوال وکړي د خدای ﷻ څخه چي ما منازلو ته انبيا ورسوي يا مي اسمان ته وخېژوي يا مي جنت ته داخل کړی جنت ته دمخه تر مرګ" يا ټوله حيوانات زما مسخر کړي يعني عقلاً يا عادةً محال وي او يا فائده چنداني نه وي پکښې لکه يو سړی چي غبر باز وي خدای ته خواست وکړي چي ماته دونه قوت په پهلواني کي را کړې چي څوک مي نسي غوځارولای او بعض علماً وايي چي اعتدا په دعا کي چغي نارې وهل دي او څوک وايي چي ډيره وړده دعا کوي" ولي چي په حديث مبارک کي راغلي دي سيکون قوم يعتدون

فی الدعاً وحسب المرء ان يقول اللهم اني اسئلک الجنة وما قرب اليها من قول وعمل واعوذ بک من النار وما قرب اليها من قول او عمل" حاصل دا چي سړی د امور مهمة خواست کوي وهو الفوز بالجنة والنجاة من النار.

**درويش وايي:** چي د اعتداً فی الدعاً کي داهم ده لکه په يو حديث کي چي روايت يې بغوي کړی دی چي عبد الله بن مغفل ده خپله زوی په څخه داسي واوريده اللهم اني اسئلک القصر الابيض عن يمين الجنة اذا دخلتها عبد الله بن مغفل ورته وويل يا نبي سل الله الجنة وتعوذ به من النار ولي چي ما د عليه الصلوة والسلام څخه اوريدلي دي چي په دې امت کي به داسي کسان پيدا سي چي تجاوز تر حد کوي په دعاً او طهارت کي يعني په اوداسه او غسل کي به اسراف په ابو کي کوي.

او عطيةرحمه الله وايي چي معتدين فی الدعاً هغه کسان دي چي مسلمانانو ته هغه ښراوي کوي چي روا وي لکه چي ووايي اللهم العن فلانا وفلانا من المسلمين لکه روافض چي پر صحابوو رضي الله عنهم او پر بعض اهل البيت باندي لعنت وايي.

## وَلَا تُفْسِدُوْا فِی الْاَرْضِ بَعْدَ اِصْلَاحِهَا

او تاسي فساد مه کوئ په مځکه کي وروسته تر اصلاح ده مځکي يعني بالکفر والمعاصي، يعني چي خدای پاک اصلاح د مځکي وکړه په بعث د رسولانو او په بيان د شريعت والدعاً الی طاعة الله عز وجل وبالنهي عن الاعتداً فی الدعاً.

**پوه سه:** چي معاصي چي ډېر سي خدای پاک باران پر مځکه قطع کوي ويهلک الحرث والنسل.

## وَادْعُوْهُ خَوْفًا وَّطَمَعًا

او خدای ته خواست کوئ په داسي حال کي چي تاسي به خائفين ياست د خدای څخه چي دعاً او خواست به نه کي قبول په وجه دقصور د اعمالو حسنه وو او د ډير والي د گناه نو خوفاً مصدر دی په معنی دخائفين دی "طمعاً" او طمع کونکي به ياست په اجابت کي د دعاً په سبب د مزيد رحمت د رب العالمين.

**فائده:** طمعاً پر قياس دخوفاً دی.

إِنَّ رَحْمَتَ اللَّهِ قَرِيبٌ مِّنَ الْمُحْسِنِينَ ﴿۵۶﴾

په تحقيق رحمت دخداى ﷻ نژدې دى واحسان كونكو خلكو ته.

**پوه سه**: چې په دې آيت كې اشارة ودې ته ده چې رد دعاْ د جواد كريم بادار له خوا په سبب د اعمالو ستاسي، او په سبب د دې ده چې تاسي عمل پر طريقه د احسان نه كوئ كما ورد في حديث البخاري الاحسان ان تعبد الله كانك تراه فان لم تكن تراه فانه يراک.

**سوال**: قريب مسند دى و رحمة ته او هغه مونث دى او قريب مذكر دى.

**ځواب**: مشهور جواب خو يې دا دى چې رحمة په تاويل د حدث دى لكن احسن جواب يې دا دى چې رحمة په تاويل د رحم دى لان الرحم بضم الراْ بمعنى الرحمة كما في قوله تعالى واقرب رحما" او په دې آيت كې اشارة ودې ته ده چې رحمة د خداى په قبول د دعاْ كې نژدې دى كما في قوله تعالى وما يدريک لعل الساعة تكون قريباً" لكن چې سوال او دعاْ په لسان ذاكر شاكر سره وي او په قلب حاظر طاهر سره وي او د طمع خوا يې راجح وي، وورد في الحديث الصحيح ادعوا الله وانتم موقنون بالاجابة لان قدرة الله تامة ورحمته تعالى عامة وعلمه بحال الداعي كامل فانتفى فيه تعالى موانع الاجابة.

بيت

| | |
|---|---|
| اى كريمي كه از خزانه غيب | گبر وترسا وظيفه خور دارى |
| دوستان را كجا كني محروم | تو كه با دشمنان نظر دارى |

په يو حكايت كې راغلي چې يو كم عقله سړى "چې په عربي يې ابله بولي او په فارسي يې ديوانه مانند بولي او په پښتو يې ليونى وزمه بولي يا باوله" د حج په طواف وداع كې وو يو سړي د مسخرو ورته وويل چې فلانيه تاته كاغذ د برات من النار حاصل سو ده ورته وويل يا. نورو خلكو ته وركړه سو هغه ورته وويل هو ابله وحطيم ته داخل سو او د رحمة تر ناوه لاندې ودريدى او د كعبې مباركې په پوښ د كعبې لاسونه ټينګ كړه او خداى جلت رحمته وقدرته ته په زاريو او ژړا سو چې ماته كاغذ د برات من النار راكړه لكه نورو ته چې دې

وکړي دی، یو او بل ورته وویل چي هغه ستا سره مسخرې کولې هیڅ چاته کاغذ دبرأت من النار نه دی ورکړه سوی خود ده ابله وزړه ته د خلګو خبري نه لویدې او په ژړا او عجز یې کاغذ د برأت من النار غوښتی ناګهانه ده میزاب الرحمة د خوا کاغذ راشوه سو چي په کښي نوشته وه هذا برأت من النار الی فلان ابله کاغذ واخستی" او علامه د دې چي کاغذ من عند الله دی دا وه چي دا کاغذ چي پر هر طرف به ونیول سو توري به یې راسته او د شا د خوا هم داغه توري پر نوشته وه.

**مسئله**: علماً په اتفاق وایې چي یو سړی چي په تکلیف مبتلا وي او خواست د کشف الضر المذکور وه خدای ته نه کوي دا کار مذموم دی عند اهل الطریقة ولي چي دا یو ډول مقاومت دی د غذابو سره د خدای او دعوی د تحمل د تکالیفو ده خدای وهو مذموم قال المحقق ابن الفارض قدس سره.

ویحسن اظهار التجلد مع العدي ویقبح غیر العجز عند الاحبة

حافظ شیرازي رحمه الله وایې

فقیر وخسته بدرگاهت آمدم رحمي... که جز دعایې تو ام نیست دست او ریز

ونسب هذا البیت الی بایزید البسطامي قدس سره السامي.

**پوښتنه**: علماً وایې او ویلي دی چي څوک دي داسي نه وایي چي زما خواست او دعاً حتماً خدای ﷻ قبلوي او په حدیث شریف کي راغلي دي فاسئلوه وانتم موقنون بالاجابة آیا د علماً خبري او د حدیث شریف تر مابین به منافات نه وي؟

**ځواب**: معنی ده وانتم موقنون بالاجابة نظر ودې ته رب جل سلطانه کریم دی رحمان دی رحیم دی لیس في جنابه تعالی البخل والعجز" وعدم الیقین بالاجابة ورد الدعاً نظر وشوم ته د معاصي د داعي دی فلامنافات او مسلم او ترمذي د ابي هریرة رضی الله عنه څخه روایت کړی دی همیشه د بنده خواست قبلیږي چي دعاً د حرام او د ګناه ونه کړي مثلاً دعاً وکړي چي ماته قدرت د فلانی ښځي پر زنا را کړې او یا په قطع دصله رحمی لکه چي خدایه زما ورور یا زوی په ستر ګو روند کې" او یا تلوار ونه کړي قالوا وما الاستعجال علیه الصلوة والسلام وویل چي

استعجال دا دی چي یو سړی ډیر وارونه یو شی د خدای ﷻ څخه وغواړي او هغه خواست یې قبول نه سي نو ستړی سي باره دعا پریږدي او کما قال رسول الله ﷺ.

**فائده:** اجابة د دعا غالبا مربوط په نفقه حلاله پوري دی ولي مسلم او ترمذي روایت کړی دی د ابو هریرة ؓ څخه چي علیه السلام وویل الرجل یطیل السفر اشعث اغبر یمد بیدیه الی السما یا رب یارب ومطعمه حرام ومشربه حرام وملبسه حرام وغذی بالحرام فاني یستجاب لذالک.

## وَهُوَ الَّذِي يُرْسِلُ الرِّيَاحَ بُشْرًا بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهِ

**پوه سه:** چي بعض قاریان دا کلمة بُشرا په ضمه د با او په سکون د شین وایې او اصل یې بُشُرا په ضمه د شین بیا یې ضمه د شین تخفیفا حذف کړه نو جمع د بسیر ده والمعنی خدای ﷻ هغه ذات دی چي را استوي بادونه زیري کونکي په باران سره کما قال الله تعالی الریاح مبشرات او بعض قرا چي حمزه او کسائي دي په نون مفتوحه اوپه اسکان د شین وایې چي مصدر دی په معنی د ناشرات او حال دی د ریاح څخه او نافع دا کلمه نُشرا په ضمه د نون او شین وایې چي جمع د نشور ده په معنی د ناشر قال الله تعالی والناشرات نشرا او معنی د بین یدی رحمته د مخه تر رحمت چي باران دی او لفظ بین مقحم دی.

**پوه سه:** چي باد صبا چي شرقي باد دی وریځ توټې را پورته کوي او باد شمال یې سره جمع کوي. او جنوبي باد باران شروع کوي او د بور باد چي غربي باد دی وریځ سره پاشي او متفرق کوي یې" په حدیث شریف کي د ابو هریرة ؓ چي بخاري یې روایت کړی په ادب کي او ابو داوًد یې هم روایت کړی قال سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم چي ریح یو مخلوق د دخدای دی گاهي راتگ په رحمت یعني باران سره کوي او گاهي په عذاب سره نو تاسي چي باد ووینی نو بنکنځل مه ورته کوئ او سوال د خدای څخه د خیر د هغه باد او پناه غواړئ د خدای ﷻ څخه د شر د هغه باد او کما قال رسول الله صلی الله علیه وسلم.

## حَتّٰۤى اِذَاۤ اَقَلَّتْ سَحَابًا ثِقَالًا

حتی چي را پورته کړي دغه بادونه وریځ چي درنه وي په سبب ده ابو.

**سوال:** سحاباً خو مفرد دی او ثقالاً جمع د ثقیل ده نو یې څرنګه صفت واقع سو؟

**ځواب:** سحاب دلته په معنی د سحائب دی.

**قانون:** هر ځای چي په قرآن کي ریاح په صیغه د جمعې راسي هغه د رحمت بادونه دي او چي په صیغه د مفرد راسي هغه لپاره د عذاب دي.

## سُقْنٰهُ لِبَلَدٍ مَّيِّتٍ

موږ وشړو یعني واستوو هغه وریځ وه هغه ښارته چي مړ وي یعني نباتات نه وي سپیره مځکه وي.

**پوه سه:** چي د ښار څخه دلته مراد ښار متعارف نه دی بلکه نفس مځکه ده.

**سوال:** د سقناه ضمیر یې مفرد را وړی او سره د دې چي دمخه موږ وویل چي سحاب په معنی د سحائب دی.

**ځواب:** افراد د ضمیر نظر ولفظ ته د سحاب دی چي مفرد دی که څه هم مراد ځندي جمع ده.

## فَاَنْزَلْنَا بِهِ الْمَآءَ

نو موږ نازل به ای بالبلد.

**پوه سه:** چي پر دې تقدیر کلمه د باٗ لپاره د الصاق ده ای التصق انزال الماٗ بالبلد هذا ما قال روح البیان وما قال المظهري الباٗ للسببیة فمعناه ان احیاٗ البلد سبب لانزال الماٗ.

## فَاَخْرَجْنَا بِهِ مِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ

نو موږ را وایستی د ټولو میوو څخه.

**پوه سه:** که ضمیر د به راجع سي وه بلدته نو کلمه د باٗ لپاره د ظرفیة ده او که راجع سي وسحاب ته یا سوق ته یا ریح ته فکلمته للسببیته او د کل الثمرات څخه مراد استغراق حقیقي نه دی ولې چي ټولي میوې په سبب د باران خو په هر بلد کي نه پیدا کېږي کما هو الظاهر نو مارد استغراق عرفي دی فافهم.

كَذٰلِكَ نُخْرِجُ الْمَوْتٰى لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ

لکه اخراج د میوو چي خدای کوي او یا احیأ البلد المیت چي خدای کوي، موږ را باسو مړي د قبرو څخه یعني په ورځ د قیامت لپاره د دې چي تاسي به فکر وکړئ او قیاس د قدرت د خدای پر احیأ الموتی باندي وکړئ پر احیأ البلد باندي.

**بوه سه:** چي اصل د تذکرون تتذکرون وو یوه تأ یې حذف کړه بغوي وایې او روح البیان هم وایې چي ابو هریرة رضی الله عنه او ابن عباس رضی الله عنهما وایې چي څه وخت مړه سي په نفخه اولی سره تو له خلګ نو خدای جل جلاله پر مځکه باران شروع کي لکه مني ده نرو من مأ تحت العرش چي مأ الحیوان یې بولي نو دا مړي ژوندي سي په قبرو کي لکه نبات الزرع حتی چي بدنونه یې کامل سي یلقی فیهم الروح ای نفخ وروسته خوب ورسي بیده سي په قبرو کي بیا وروسته حشر سي په نفخه ثانیه سره وهم یجدون طعم النوم في رؤسهم فعند ذالک یقولون یاویلنا من بعثنا من مرقدنا.

**درویش وایي:** چي دا حدیث غیر د بغوي او روح البیان څخه بل چا نه دی روایت کړی.

وَالْبَلَدُ الطَّيِّبُ يَخْرُجُ نَبَاتُهٗ بِاِذْنِ رَبِّهٖ ۚ وَالَّذِيْ خَبُثَ لَا يَخْرُجُ اِلَّا نَكِدًا ؕ

هغه مځکه چي خوږه وي یعني تروه او بنره نه وي، را وزي نبات د هغه بلد یعني هغه تخمونه چي په دې کي وي تو له په کمال حسن سره را شنه کېږي په اراده د رب البلد، ای متلبساً باذن ربه فهو في موضع الحال "الذین خبث" او هغه بلد چي مځکه یې خبیثه وي یعني یا بنره وي یا شګلنه مځکه وي "لایخرج" یعني نبات یې نه را وزي "الا نکداً" یعني لږ او بې فائدې نبات لکه خوزان زمی، او نور ورته بې فائدې شیان.

كَذٰلِكَ نُصَرِّفُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّشْكُرُوْنَ

دغه ډول لکه چي په اایت مذکوره کي تیر سوه موږ په بار بار بیانه وو دلائل د قدرت آلهي لپاره د هغه قوم چي د خدای شکر وایي د نعمت د خدای جل جلاله وهم المؤمنون.

**درویش وایي:** چي دا مثال د تفاوت د استعداداتو د انسانانو دی. نو قرآن

مبارک ویلي دی یعني هغه کسان یې قبلوي او ایمان هغه کسان راوړي چې کامل استعداد لري لکه خوړه مځکه او د چا استعداد چې خبیث وي لکه کفارو د مکې په هغو کې تخم د قرآن تاثیر نه کوئ بلکه په ځای کې د ایمان ځوزان د کفر او انکار او استهزا پیدا کوي لکه بنره مځکه ولنعم ما قیل.

نقصان زقابلست وگر نه علی الدوام... فیض سعادتش بهمه کس برابر است

دا باران چې پر همه ؤ مځکو اوري... مشرف یې کړی ذات د کیمیا ولي

وفی التفسیر الحسیني: هر گاه که باران مواعظ از سحاب کلام رب الارباب بردل مؤمن ببارد انوار طاعات وعبادات بر جوارح او ظاهر گردد وچون کافر استماع سخن کند زمین دلش تخم نصیحت قبول نکند ازو هیچ صفت که بکار آید در ظهور نیاید آه: قال السعدي الشیرازي رحمه الله زمین شوره سنبل بر نیارد" درو تخم عمل ضائع مگردان.

## لَقَدْ اَرْسَلْنَا نُوْحًا اِلٰى قَوْمِهٖ

**پوه سه**: چې لام جواب د قسم محذوف دی ای والله لقد ارسلنا نوحاً او دا لام غالباً د قد سره مستعملیږي، "نوحاً" وهو نوح بن لامک وقیل لمک بن متشولخ وامه عونه وقیل قینوس" بنت بر الیک وقیل متوشخ ابن اختوخ" وهو ادریس النبي بن یرد بن مهلا بیل بن قینان بن انوش بن آدم علیه السلام وقیل بدل انوش شیث بن آدم علیه السلام په مستدرک کې راغلي دي روایة عن ابن عباس رضی الله عنه بین آدم ونوح عشرة قرون کما رواه الطبراني عن ابي ذر رضی الله عنه مرفوعاً.

**پوه سه**: چې بعض مؤرخین وایې چې نوح نجار وو خدای وخپل قوم ته واستاوه پر ځلویښت کاله وکان مجموع عمره" یو زر او دوه سوه ځلویښت کاله (۱۲۴۰) او نوح تر ادریس وروسته وو هغه تر شیث بن آدم په تفسیر حسیني کې وایې چې قوم د ده اکثر اولاد د قابیل بن آدم وه او بت فرستي یې کول ولې قابیل چې خپل ورور هابیل مړ کړی آدم علیه السلام دی وشاړه نو دی سره د اولاد او اتباعو د ده یمن ته ولاړه او قابیل اول سړی دی چې بت فرستي یې شروع کړه.

**فائده**: د نوح علیه السلام اصلي نوم بغوي وایې چې سکن وو لان الناس سکنو

الیه بعد آدم علیه السلام او بعض مؤرخین وایي چي نوم یې شاکر وو او امام سیوطي رحمه الله په اتقان کي په نقل د مستدرک څخه د حاکم وایي چي نوم یې عبد الغفار وو او دا مذهب صحیح دی.

**پوښتنه**: په نوح سره د څه وجهي مسمیٰ سو؟

**ځواب**: په سبب د ډیر نوح او ژړا پر ځان او پر قوم باندي او بعضي اهل تاریخ وایي چي ژړا یې په سبب د بېري د ورځي د قیامت وه، او بغوي وایي چي ده یو ګرګ سپی ولیدی نو ده وویل اخسأ یاقبیح خوار سې ای قبیح الصورة سپیه فاوحی الله الیه ایا تا زما عیب ووایه که د سپي یعني دا قبیح صورت خو ما سپي ته ورکړی نو تا د سپي عیب ولي ووایه نو نوح علیه السلام بېهوشه سو چي په هوش کي راغلی نو یې پر خپل ځان ډیر ژړل.

**درویش وایي**: وقیل وقیل غیر هذا الوجوه والله اعلم.

**فائده**: اکثر صحابه رضي الله عنهم پر دې رایه دي چي نوح تر ادریس علیه السلام د مخه وو او بعض اهل تاریخ وایي چي وروسته وو والعلم عند الله.

فَقَالَ يَٰقَوۡمِ ٱعۡبُدُواْ ٱللَّهَ مَا لَكُم مِّنۡ إِلَٰهٍ غَيۡرُهُۥٓ

نو نوح وویل ای قومه زما کسره د میم عوض د مضاف الیه ده تاسي عبادت د خدای یعني توحید د خدای مختاره کړی لان قومه کانو مشرکین" نسته تاسي لره معبود بالحق غیر د خدای جل جلاله څخه.

**فائده**: بعض قاریان "غیره" په رفع سره وایي کما في المصاحف المروجة وجه یې دا وایي چي من زائد دی نو اله مرفوع المحل دی کانه قیل مالکم اله غیره او بعض قاریان یې په جر سره وایي وجه یې دا وایي چي لفظ د "اله" مجرور دی په من جاره نو صفت یې هم مجررو دی، وکلا الوجهین صحیح کما لا یخفی.

إِنِّيٓ أَخَافُ عَلَيۡكُمۡ عَذَابَ يَوۡمٍ عَظِيمٖ ﴿٥٩﴾

زه بیریږم پر تاسي باندي د عذاب څخه د لوی ورځي چي ورځ د قیامت ده او بعض وایي چي یوم الطوفان ده کما سیأتي ومر ایضاً.

قَالَ الْمَلَأُ مِنْ قَوْمِهِ إِنَّا لَنَرَاكَ فِي ضَلَالٍ مُبِينٍ ۝

وویل رئیسانو او مشرانو د قوم د نوح موږ هر آئینه تا بولو په ښکاره گمراهي کي چي زموږ د خدایانو څخه انکار کوي او خدای یو بي شریکه بولې "دا یې ولي ورته ویل ځکه چي شیطان د دوی په فاسدو دماغو کي بت پرستي حق ورکړې وه.

قَالَ يَٰقَوْمِ لَيْسَ بِي ضَلَٰلَةٌ وَلَٰكِنِّي رَسُولٌ مِّن رَّبِّ الْعَٰلَمِينَ ۝

نوح عليه السلام ورته وویل چي ای قومه زما نسته په ماکي هیڅ گمراهي ولکن زه رسول د رب د عالمیانو د خوا څخه.

**پوښتنه**: هغوی خو نوح عليه السلام ته وویل في ضلالٍ" نوح یې ولي په جواب کي ضلالة ووایه؟

**ځواب**: لپاره د مبالغې په نفي کي د ضلال د ځان څخه ولي کلمه د تا په ضلالت کي لپاره د وحدت ده یعني هیڅ گمراهي لکه درویش چي په ترجمه کي وویل، او بل یې تعریض پر دوی وکړی چي تاسي په ضلال کي یاست.

**فائده**: د تعریض معنی میل الکلام الی العرض یعني ظاهر یې یو وي او باطن یې بل وي مثلاً یو سړی چي په مجلس کي پک ناست وي لاس پر سر تیر کي او ووایې چي شکر دی چي پک کړی دي نه یم ظاهر نفي د پک د ځان څخه دي لکن ناست پک په خار ورکړي.

**درویش وایي**: چي للتعریض امثله کثیرة في الکتب.

**بوه سه**: چي دا قول د نوح ولکني آه تاکید دی دنفي د ځان څخه لان کونه رسولاً مستلزم لکونه في اقصی الغایات من الهدی فکیف ینسب الی الضلال.

أُبَلِّغُكُمْ رِسَٰلَٰتِ رَبِّي

زه تاسي ته رسوم رسالات د خدای.

**بوه سه**: چي بعض قرآ "ابلغکم" په تشدید د لام وایي چي د تبلیغ څخه مشتق باب د تفعیل سي او بعض قاریان په تخفیف وایي چي مضارع د باب د افعال سي.

**سوال**: نوح عليه السلام خو يو رسول وو نو رسالات يې جمع ولي راوړه.

**ځواب**: جمعيت يا په اعتبار ددې چې په رسالت کې عقائد هم بيانيږي اعمال هم بيانيږي او مواعظ هم او احکام شرعيه هم او بعض مفسرين چې وايي چې جمعيت په اعتبار د اوقاتو دی يعني ليلاً ونهاراً فليس ببعيد.

**فائده**: ابلغکم جمله مستأنفه ده لبيان رسولا.

وَأَنصَحُ لَكُمْ وَأَعْلَمُ مِنَ اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿٦٢﴾

او تاسي ته نصيحت کوم، او زه خبر يم دخدای په باب کي په هغو شيانو چي تاسي نه ياست پـه خبر من التوحيد والقدرة التامة والصفات العالمية والقدرة على الاحيا والاماتة والاعادة في القيامة والمشرکون ای قوم نوح ينکرون اکثر من تلک الصفات کما لا يخفى.

**پوه سه**: چي نصح يا نصيحت داسي قول يا عمل ته وايې چي په هغه کي نفع او صلاح د صاحب د ده وي او بغوي وايې چي نصح اراده د خير وبل ته لکه وه ځان" په پښتو کي وايي بنده راسه د خدای خپل سه لکه پر ځان داسي پر بل سه.

**فائده**: نصح متعدي بنفسه او متعدي باللام دواړه راغلی دی.

أَوَعَجِبْتُمْ

آيا تاسي تعجب کوئ قانون عربي في القرآن الکريم" هر ځای چي وروسته تر همزه د استفهام واو يا فا يا ثم عاطفه راسي پر ماقبل د همزه خو نه سي عطف کيدای لفوات صدارة الاستفهام نو هر ځای به مناسب له مقام سره معطوف عليه به وروسته تر همزه محذوف وي مثلاً په موجوده عبارت کي به داسي تقدير وي اکذبتموني وعجبتم آه.

**درويش وايي**: چي دا قانون مه هيره وئ چي په ډيرو ځايو کي د قرآن عظيم الشان به ستاسي په نبه درسي.

أَن جَاءَكُمْ ذِكْرٌ مِّن رَّبِّكُمْ عَلَىٰ رَجُلٍ مِّنكُمْ

په تقدير د من جاره ای من" آيا تاسي تعجب کوئ د دې څخه چي راغلی

تاسي ته ذکر يعني موعظة يا رسالت د جانبه ځخه د خداى ستاسي "على رجل منكم" اى منزلاً پر يو سړي چي ستاسي د جنس ځخه دى يعني بشر دى.

**درویش وايي:** چي د مشركينو د هر عصر يو د تعجب وړ فاسد عقلونه وه هغه دا چي الوهية او معبوديت چي لوړ مقام دى وه جماداتو يعني بتانو ته يې ثابته وى او رسالت چي تر الوهيت ډير كښته مقام دى وبشر ته چي تر بتانو لوړ مقام دى جايز نه باله او دوى لكه مشركين د مكې ويل به ( لو شا الله لانزل ملائكة ما سمعنا بهذا في آبائنا الاولين).

لِيُنذِرَكُمْ وَلِتَتَّقُوا وَلَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ۝

چي تاسي وبېره وي د عذابو ځخه د كفر او د عصيان، چي تاسي ځانونه وساتئ د عذاب موعود ځخه پر شرک او عصيان يعني د جانبه ځخه د خداى، شايد پر تاسي باندي په سبب د تقوى د خداى ﷻ رحم وسي.

**پوښتنه:** ځوک چي د شرک او معاصي وو ځخه ځان وساتي نو رحم د خداى په دخول د جنت به لازم نه وي نو لفظ د لعل چي د ترجي لپاره دى معنى يې ځه ده؟

**ځواب:** لفظ د ترجي پر بنا يې را وړى چي تقوى موجب د ترحم نه ده بلكه ترحم من الله تفضل واحسان من الله عز وجل.

**فائده:** نو متقي بايد پر خپل تقوى اعتماد كلي ونه كړي" او د عذاب ځخه د خداى بېغمه نه سي ولي چي يو خاتمه مستوره ده، او بل دا چي ترحم او دخول د جنت د خداى په مشيت كي دي ان شا عذب المتقي وان شا رحمه ودخله الجنة لا اعتراض عليه، ولا ظلم لانه تصرف في ملك الغير والله تعالى مالك كل شئ.

فَكَذَّبُوهُ فَأَنجَيْنَاهُ وَالَّذِينَ مَعَهُ فِي الْفُلْكِ وَأَغْرَقْنَا الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا إِنَّهُمْ كَانُوا قَوْمًا عَمِينَ ۝

نو قوم تكذيب د نوح ؑ وكړى يعني ايمان يې نه را وړى او د خداى ﷻ د خوا ځخه نوح ته وويل سول "لن يؤمن قومک الا من قد امن" نو وروسته نوح ؑ داسي شرا ورته وكړه (رب لا تذر على الارض من الكافرين ديارا) نو

طوفان نازل سو نو موږ نجات ورکړی و نوح او هغه چا ته چي د نوح ؑ همراه وه په کښتۍ کي.

**فائده:** په من معه کي اختلاف دی بعض وائي چي (۴۰) څلويښت نر او (۴۰) ښځي وې "بعض وايي اته کسه وه بعض وايي لس کسه وه بعض وايي (۷۲) دو اويا کسه نر او ښځي مجموع بعض وايي ۳ درې زامن وه د نوح ؑ سام او حام او يافث او درې د دوی ماينې" او بعض وايي چي شپږ کسه غير د اولاد څخه د ده او دهغو د زوجاتو څخه بېگانه مؤمنان وه.

**درويش وايي:** چي اول روايت چي (۴۰) نر وه او (۴۰) ښځي وې مشهوره او مقبول ده" او خدای پاک وايي چي موږ غرق کړه د طوفان په نازلېدو سره هغه کسان چي تکذيب يې کاوه په اياتو سره چي نوح ؑ دوی ته راوړي وه په تحقيق دغه مکذبين وه يو داسي قوم وو چي ړانده وه لا بالبصر بل بالبصيرة يعني زړونه د معرفت د دين حق غافله او منکر وه او حق يې په حقيقت او باطل يې په باطل والي نه پيژندی.

**فائده:** علماً وايي چي نوح ؑ آدم ثاني دی ولي تو له نړی دده آل ده من يوم نوح الى هذا اليوم من اولاده عليه الصلوة والسلام.

## وَإِلَىٰ عَادٍ أَخَاهُمْ هُودًا

او موږ وعاديانو ته واستاوه ورور ددوی هود.

**پوه سه:** چي عاديان د يوې قبيلې نوم چي منسوب ده عاد بن عوص بن ارم بن سام بن نوح ؑ ته وه "اخاهم" د دوی ورور يعني په نسب کي نه په دين کي ولي چي عاديان خو کافران مشرکان وه.

**پوه سه:** چي "والى عاد" عطف دی پر "نوحاً الى قومه" نو تر ارسلنا لاندي داخل دی "هوداً" عطف بيان د اخاهم دی ونسبه هکذا هود بن عبد الله بن رياح بن الخلود بن عاد بن عوص المذکور او ابن جني وايي چي هود د شالخ زوی وو او هغه ده از فحشذ زوی وو هغه د سام او سام د نوح ؑ او د هود د مور نوم مکعبة وه بنت عويلم بن سام بن نوح ؑ راويان وايي چي نور د

نبینا علیه الصلوة والسلام حلیدي په تندي کي د هود نو خلګو به ویل چي هود یو داسي شخصیت دی چي عبادت د خدای علی التوحید به کوي وتکسر الاصنام وکان هود علی شریعة نوح علیه السلام او عمر یې څلور سوه کاله ته ورسیدی او بعض اهل تاریخ وایي چي (۴۶۰) کاله ته ورسیدی او په تاریخ شامي کي وایي چي عمر یې (۱۴۳) کاله وو او مور یې مرجانه نومیده او د پاکو ښځو څخه وه او قبر ده هود بعض وایي چي په حضر موت کي او بعض وایي چي په مکه کي دی.

**فائده**: عبد الرحمن بن سابط وایي چي په مابین کي د رکن یمانی او د مقام ابراهیم او د زمزم قبرونه د (۹۹) نبیانو دي او قبر د هود او د صالح او د شعیب هم په دغه (۹۹) کي داخل دی.

**درویش وایي**: چي نن صبا دا (۹۹) انبیاً په خپلو قبرو کي د انسانانو تر پښو لاندي راغلي.

**فائده**: سبب د رسالت د هود علیه السلام څه وو؟

**ځواب**: په دغه زمانه کي مختلف اقوام وه او ملوک چي بعض د بتانو عبادت کاوه او بعض د لمر عبدات کاوه او بعض د اور نو خدای جل جلاله هود علیه السلام ورته را واستاوه په تفسیر حسیني کي وایي عاد مردم تن اور بودند وبلند بالا بودند" ومال فروان داشتند" وعمر شان در بت پرستي میګذرانیدند حق تعالی هود را بایشان فرستاد پس هود بمیان قبیله آمد وایشانرا بحق دعوت کردند وګفت.

قَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ ۚ اَفَلَا تَتَّقُوْنَ ۝

ای قومه زما عبادت کوئ د خدای والمراد التوحید نسته تاسي لره اله یعني معبود بالحق غیر د خدای څخه ایاتاسي د خدای څخه نه بیریږئ یعني د عذاب د خدای فی الدنیا ویوم القیامة.

**پوښتنه**: د نوح علیه السلام په قصه کي خدای جل جلاله فقال ووایه" او په قصه د هود علیه السلام یې قال وویل سبب یې څه دی؟

**ځواب**: دا دبلاغاتو څخه د قرآن کریم دی چي ګاهي پر دول د ځواب او عطف عبارت را وړی کما في قصة نوح او ګاهي پر وجه د استیناف په قصه کي د هودیر

وجه د استيناف بياني چي جواب د سوال مقدر دی يعني فما قال هود حين ارسل اليهم فاجيب قال آه.

قَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ قَوْمِهِ

وويل هغه کسانو چي اشراف او خانان هغه چي کافران وه د قومه څخه د هود عليه السلام.

**يوه سه:** چي اشراف يې مقيد کړه بقوله الذين کفروا د دې سببه چي بعض اشراف د قوم هود پر ده ايمان را وړی ووبيا مرتد سوه او په اشراف کي د قوم نوح هيڅ چا ايمان نه دی راوړی.

إِنَّا لَنَرَاكَ فِي سَفَاهَةٍ وَإِنَّا لَنَظُنُّكَ مِنَ الْكَاذِبِينَ ﴿۶۶﴾

موږ تا وينو يعني تا بولو په خفت عقل کي ولي چي تا دين د قوم پريښو او د يوه محال شي دعوه کوې چي هغه رسالة من الله دی، او زموږ پر تا ظن غالب دی چي ته ده د رواغ وينکو د ډلي څخه يې يعني په دعوی کي د رسالت.

قَالَ يَا قَوْمِ لَيْسَ بِي سَفَاهَةٌ وَلَٰكِنِّي رَسُولٌ مِنْ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿۶۷﴾

هود عليه السلام ورته وويل ای قومه زما نسته په ما کي خفت العقل بلکه عقل مي سالم دی لکن زه رسول يم د جانبه د رب العالمين نو نبي د خدای کله خفيف العقل کيدای سي.

أُبَلِّغُكُمْ رِسَالَاتِ رَبِّي وَأَنَا لَكُمْ نَاصِحٌ أَمِينٌ ﴿۶۸﴾

زه تاسي رسوم رسالات د خدای يعني هغه شيان چي زه خدای په استولی يم من الاسمان بالله وحده والايمان بالبعث بعد الموت وغير ذالک او زه تاسي ته نصيحت کونکی يم يعني خير خواه ستاسي يم او امين يم په دعوی کي د رسالت او نبوت خيانت نه کوم.

**فائده:** هود عليه السلام ناصح پر صيغه د اسم فاعل را وړی ليقابل قولهم انا لنظنک من الکاذبين تا چي مقابله ده جمله اسميه په جمله اسميه وکړه سي.

**پوښتنه:** کافرانو د هود عليه السلام ډير په غلظت خبري کولې مثلاً انک في

سفاهة" وانا نظنک من الکاذبین" هود علیه السلام ودوی ته جواب په ډیره نرمي ورکاوه مثلاً د انک في سفاهة په جواب کي هود علیه السلام داسي نه ورته وویل بل انتم في ضلالة" او د انا نظنک آه داسي يې نه ورته وویل بل انتم من الکافرین؟

**ځواب:** ټوله انبیاء علیهم الصلوة والسلام په مخاطبه کي د کفارو یي د تشدد او غلظت څخه کار نه دی اخستی بلکه د عجز او نرمي څخه يې کار اخستی، او د خدای پاک هم داغسي خوښه ده کما یدل علیه هغه آیت چي موسی او هارون چي خدای جل جلاله فرعون ته ور استول داسي ورته وویل فقولا له قولا لینا. او دغه رنګه مخاطبات د آنحضرت صلی الله علیه وسلم د مشرکینو سره د مکې د لیونت سره دي کما یدل علیه مطالعة کتب الآحادیث الشریفة نو د دې سببه علماً پر متفق دي چي ناصح د مسلمانانو دي د غلظت او تشدد څخه کار نه اخلي.

**درویش وایي:** چي دا خوی د نصیحت په اوسنی زمانه کي په جماعت تبلیغي کي پیدا کېږي او په دې قسم نصیحت کي هضم النفس هم سته او شفقة او جذب القلوب الی الهدایة وحسن المجادلة.

اَوَعَجِبْتُمْ اَنْ جَآءَكُمْ ذِكْرٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ عَلٰى رَجُلٍ مِّنْكُمْ لِيُنْذِرَكُمْ

**پوه سه:** چي معطوف علیه ده واو کما مر من القانون الکلي القرآني محذوف دی والتقدیر " اکذبتموني وعجبتم آه.

**ترجمه:** آیا تاسي زما تکذیب کوئ او تعجب کوئ د دې څخه په حذف د من چي تاسي ته راغلی پند او نصیحت د جانبه څخه د خدای ستاسي پر یو سړي چي مراد ځني هود دی چي هغه ستاسي د قوم څخه دی چي تاسي وېېره وي.

وَاذْكُرُوْٓا اِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَآءَ مِنْۢ بَعْدِ قَوْمِ نُوْحٍ وَّزَادَكُمْ فِى الْخَلْقِ بَصْۜطَةً

او در پیاد کئ دا نعمت آلهي چي تاسي وګرځولاست یعني خدای جل جلاله خلیفګان د ځمکي وروسته تر قوم نوح یعني وروسته تر اهلاک د هغو په طوفان سره، او تاسي ته زیاد درکړي په خلق یعني په بدن کي فراخي یعني طول او قوة چنانچه کلبي او سدي وایي چي قامت د جګ سړي د عادیانو سل ګزه وو او د قصیر دا یې اویا(۷۰) ګزه وو، او ابن عباس وایي اتیا(۸۰) ګزه.



Scanned by CamScanner

فَاذْكُرُوٓا اٰلَآءَ اللّٰهِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿۶۹﴾

نو تاسي په ياد کړئ مذکوره نعمتونه د خداى ﷻ بالشکر والايمان ده پاره د دې چي د عذاب څخه د خداى په نجات پيدا کړئ يعني په قيامت کي.

قَالُوٓا اَجِئْتَنَا لِنَعْبُدَ اللّٰهَ وَحْدَهٗ وَنَذَرَ مَا كَانَ يَعْبُدُ اٰبَآؤُنَا ۚ

آيا تا راتګ کړی موږ ته په داسي دين سره چي موږ به عبادت کوو د يوه خداى او موږ به پرېږدو هغه يعني بتان چي عبادت د هغو زموږ آباوو کاوه والهمزة في صدر الکلام للانکار على التوحيد وترک دين الآباء يعني دا خبره هر ګز موږ نه منو.

فَأْتِنَا بِمَا تَعِدُنَآ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ﴿۷۰﴾

نو ته راتګ او نازل کړه پر موږ هغه عذاب چي ته يې زموږ سره سره وعده کوي چي موږ ستا دين کړو مختاره که ته له صادقينو څخه يې.

قَالَ قَدْ وَقَعَ عَلَيْكُمْ مِّنْ رَّبِّكُمْ رِجْسٌ وَّغَضَبٌ ۭ

هود علیه السلام ورته وويل چي په تحقيق واقع پر تاسي باندي د جانبه څخه د خداى ستاسي رجس يعني عذاب.

**يوه سه:** چي عذاب ته رجس وايې د دې سببه چيي سړی په ارتجاس کي اچوي يعني اضطراب کي لانه مشتق من الارتجاس وهو الاضطراب او غضب واقع سو اى ارادة الانتقام.

**سوال:** عذاب خو تر دغه وخته پوري نه وو راغلى نو په ماضي سره يعني وقد وقع سره څرنګه تعبير څندي وکړی.

**خواب:** هغه شی که څه هم وروسته وي لکن چي يقيني وقوع وي هغه لګه واقع داسي، کما في مثل.

قد قامت القيامة وقد قامت الصلوة

وامثال ذالک کثيرة شهيرة.

اَتُجَادِلُوْنَنِیْ فِیْۤ اَسْمَآءٍ سَمَّیْتُمُوْهَاۤ اَنْتُمْ وَ اٰبَآؤُكُمْ مَّا نَزَّلَ اللّٰهُ بِهَا مِنْ سُلْطٰنٍ

آیا تاسي بحث کوئ زما سره په اسماؤ چي نومان د مسمیاتو چي تاسي دا نومان پر ایښي دي یعني الاصنام او بتان تاسي او ستاسي پلرو.

**یوه سه**: چي انتم لپاره د تاکید دی او آبائکم بدل دی د ضمیر مرفوع څخه په سمیتموها کي، یعني دا ستاسي تسمیه ده حقیقت هیڅ نه لري نه دي خدای ﷻ نازل کړي د دوی په شرکت او معبودیت سره یو حجت او دلیل تدل علی انها آلهة ومستحقه للعبادة.

**بیوه سه**: چي مبنی د قول د دوی دا ده چي انهم یعتقدون بوجود الله سبحانه وکونه خالقا للسموات والارض وکانوا یزعمون، ان الاصنام شرکا الله تعالی في استحقاق العبادة لکونها شفعا عند الله ولهذا قال رسول الله صلی الله علیه وسلم هذا الذي تزعمون امر لا دلیل علیه بل هو مخترعاتکم او مخترعات آبائکم الجهال، وهذا کما تقول الفلاسفة بالعقول العشرة التي هي وسائط في خلق الله للعالم عندهم.

فَانْتَظِرُوْۤا اِنِّیْ مَعَكُمْ مِّنَ الْمُنْتَظِرِیْنَ ﴿۷۱﴾

نو تاسي منتظر اوسئ وه نزول ته د عذاب الٰهي زه ستاسي سره د منتظرینو څخه یم.

فَاَنْجَیْنٰهُ وَ الَّذِیْنَ مَعَهٗ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا وَ قَطَعْنَا دَابِرَ الَّذِیْنَ كَذَّبُوْا بِاٰیٰتِنَا وَ مَا كَانُوْا مُؤْمِنِیْنَ ﴿۷۲﴾

نو موږ نجات ورکړی وهود ته او هغه کسانو ته چي د ده سره ملګري وه یعني په دین کي په رحمت سره زموږ دخوا یعني من غیر وجوب النجاة علینا او موږ قطع کړی آخر د هغو کسانو چي دوی تکذیب په ایاتو سره زموږ کاوه دا بریه د دې جهته ووایه چي هیڅ څوک د دوی څخه پاته نه سو تر خانه او رئیس څخه او تر خوار تر فقیر پوري او دوی نه وه مؤمنین نو ځکه عذاب د استیصال پر مسلط سو کما هو عادته تعالی من الامهال دون الاهمال.

**درویش وایي**: چي امام مظهري رحمه الله قصه ده عادیانو او د دوی د هلاک

قصه په نقل د محمد اسحاق صاحب المغازي دونه اوږده او مغلق را وړي ده چي د
علماء د عصر حاضر دي څوک په حاصل د دي قصي پوه سي نو درویش نه
غواړي چي متعلمین د خپل تفسیر د شکوک او د شبهاتو او جهلاتو په دریاب
غرق کړي، نو مختصره قصه لکه بروسوي رحمه الله او قرطبي وغیرها من التفاسیر
راوړي په پښتو ژباړه و اوراقو ته د خپل تفسیر سپارم" چي هغه داده چي عاد د
یو قبیلې نوم دی چي صاحب قدرت وه او لوړ قامت وه کما مر ذکره او دوی په
یمن کي او احقاف کي اوسیدل چي ریګستاني ځمکه چي د رمل عالج او دهمان
او مرین په نومانو یادیدل او د عمان تر حضر موت پوري دا ریګستان واقع وو
او دوی په ځمکه کي بغی او فساد کاوه او دوی پر هرڅا په سبب د ه قوة خدا داده
غالب وه او دوی د درو بتانو عبادت کاوه صمود" صلا" او هبا" نو خدای جلت
قدرته وحکمته و دوی ته هود علیه السلام به نبوت ور واستاوه چي په نسب کي
د دوی اوسط وو او په مرتبه کي د دوی افضل شخصیت وو.

نو هود دوی امر کړه په توحید د خدای وان لا یعبدو غیره تعالی او په دې
سره چي پر خلګو دي ظلم نه کوي، نو قوم د هود ابا او انکار د ده د نبوت څخه
وکړی او د ده تکذیب یې وکړی نو هود عليه السلام چي به دوی ته د عذاب دنیاوي
ذکر وکړی دوی به ورته ویل انکارا من عذاب الله من اشد منا قوة او لا یه ظلم او
جبر پسي زیات کړی نو خدای جل جلاله درې کاله باران پر دوی بند کړی لعلهم
یرجعون" حتی چي دوی په غایت لوږې مبتلا سوه، او په هغه زمانه کي عادت
دا وو چي خلګ به په یو عذاب او بلا مبتلا سوه نو یو هیئت چي وفد یې بولي
په عربي ژبه بیت حرام مکه ته واستاوه که مسلمانان وه او که کافران دا یه
عادت وو چي هوري د خدای جل جلاله څخه په حرمت ده البیت الحرام د دفع د آفت
نازله او بلا شدید درخواست وکړي او اهل مکه په هغه زمانه کي د عمالیقو په
لاس کي وه چي اولاد عملیق بن لاوز بن سام بن نوح عليه السلام وه او رئیس د
عمالیقو په هغه زمانه کي په مکه کي یو سړی وو چي نوم یې معاویه وو او د
بکر زوی وو او ده د غه معاویه مور د عاد د قبیله وه نو ګویا عادیان د معاویه

ماماګان غوندي وه، نو چي څه وخت دباران کاختي سوه پر عاديانو، دوی يو د بل سره وويل چي يو وفد يعني هئيت زمونږ دي مکې ته ولاړ سي او هورې دي دبارانو خواست وکړي، نو قيل بن غتر" او مرثد بن سعد سره ده اويا (۷۰) کسانو مکې ته واستول نو دوی چي مکې ته ورغله پر معاويه بن بکر چي د عماليقو رئيس واړول چي د هغه کور د مکې د ښار خارج وو او معاويه ډير اکرام او غزاز او مهمان نوازي د دوی وکړه ولي چي عاديان د يو جهته د عماليقو ماماګان غوندي وه او بل د معاويه لونې په عاديانو کي واده وې چي دا قوم عاد د ده ګويا زومان کېدل، نو دا هيئت د معاويه په کور کي يوه مياشت تيره کړه او شراب بې چېښل او جرادتان چي دوې منځياني وې د معاويه چي دواړي غزلياني او رقص کونکي وې چي د يوې نوم ورده وه او دبلي نوم جرادة نو تغليبا دواړي په جرادتان بولي آخر معاوية چي وليده چي دا وفد د څه شي دپاره راغلي وو يعني دپاره د دفع د قحط عن بلادهم او دوی په څه عيش او عشرة مبتلا دي دا پر معاويه ګرانه اودرنه پريوته او د ځان سره يې فکر وکړی چي زما ماماخيل او زومان د لوږي مري او دا يې هم غيرت نه قبلوله چي په خوله جواب ورکړي ولي د دوی به ګمان سي چي زمونږ مهماني او دوی پر وغمبدله، نو د جرادتين سره يې په دې باره مشوره وکړه هغو ورته وويل چي ته يو شعر جوړ کړه خپل نوم مه په کښي اخله موږ به يې مانبام په بدلو او رقص کي د ميلمنو د مخه ووايو شايد دوی به فکر وکړي، نو معاويه دا غزل جوړ کړه" الا ياقيل ويحک قم فهيئتم" لعل الله يسقينا غماما" فيسقي ارض عاد ان عادا" قد امسوا ما يبيتون الکلاما" من العطش الشديد فليس ترجو" به الشيخ الکبير ولا الغلاما" وقد کانت نسائهم بخير" فقد امست نسائهم ايامي" الي آخر القصيدة نو مانبام چي جرادتانو دا قصيده په بدلو او رقص کي وويل نو هيئت او وفد يو د بل سره وويل چي موږ ډير ځنډ وکړی په مکه کي په دعا کي د قوم دباران لپاره در ولاړ سو، نو مرثد چي په پټه مسلمان ؤ او پر هود يې ايمان وو داسي وويل والله لا تسقون بدعائکم قسم په خدای دی

ستاسي به دعا سره خدای ﷻ باران نه اوروي يعني مع شرككم بالله لكن كه تاسي اطاعت د نبي خپل وكړئ يعني هود ﷺ او تاسي توبه وكاږئ وخداى ته ده شرک څخه نو ستاسي درخواست ده باران په باره كي به خداى قبول كي نو مرشد چي اسلام يې پټ ساتلى وو ظاهر كړى نو نور وفد والا معاويه ته وويل احبس عنا مرشدا زموږ سره به مكې ته نه راځي فانه قد اتبع دين هود وترك ديننا ثم دخلوا الى الكفار المنكرين لنبوة هود مكة نو ده قيل په نامه كافر ودريدى او په حرم كي يې خواست د باران وكړى د قوم دپاره او داسي وويل چي موږ نه يو راغلي د يو مريض په باره كي خدايه چي ته يې جوړ كړې او نه د يو بندي په باره كي چي خدايه تې خلاص كړې بلكه موږ راغلي يو چي پر موږ باران ووره وه فانا قد هلكنا اللهم اسق عادا واعط قيلا ماسئلو، نو خداى جل شانه په خپل قدرت عظيمه سره درې وريځي پيدا كړي يوه سره يوه سپينه او يوه توره وريځ او بيا د اسمان د خوا نعره وسوه چي كومه وريځ دي خوښه ده يا قيل د قوم لپاره نو قيل وويل چي توره وريځ مي خوښه ده ولي چي عادة توره وريځ باراني وي نو د لوړي خوا نعره وسوه چي قيله تا مختاره كړى د ځان لپاره او د قوم لپاره هلاک لا يبقى من آل عاد ولدا ولا شابا ولا شيوخا ولا رجالا ونسأ حتى چي دا وريځ را ووتل د يوې شيلي څخه د دوى چي مغيث يې باله نو عاديانو چي دا توره وريځ وليدل خوشحاله سوه وقالوا هذا عارض اى سحاب ممطرنا چي پر موږ به باران ووره وي، او خداى پاک وايې بل هو ما استعجلتم به ريح فيها عذاب اليم تدمر كل شيئ بامر ربها كما في موضع آخر من القرآن بلكه دا وريځ هغه شئ دى چي تاسي د هود څخه ژر غوښتي يعني دوى به هود ته ويله چي ژر دي عذاب موعود پر موږ ستا په خوله نازل سي استهزأ وانكارا" دا باد دى چي په هغه كي عذاب اليم چي هلاكه وي هر شى يعني دا باد پر تير سي نو د دې وريځي څخه وچ باد او ډير تود شروع سو او دا باد خداى مسخر كړى وو پر دوى اوه (٧) شپې اواته ورځي كما في موضع آخر من القرآن پرله پسې يعني د شپې او د ورځي نو دې باد به دا غټ غټ عاديان نر

او ښځي پورته کړه مابين ته داسمان او د مځکي او په ډېرو ويشتل کېدل پر سرو بې راشوه کوله نو مړه پر مځکه پراته وه په بل ځای کي د قرآن مبارک راغلي دي کانهم اعجاز نخل خاوية عاديانو دا حيله د نجات لپاره شروع کړه چي د ښځو لپاره يې تر زنګنو پوري غارونه وکښل د خاورو بې ډک کړه نو باد په مځکه پسي ورننوتی د ښځو د خوا بې دوه کسه په هوا کړه او هوري بې سره وجنګول بيا بې په شيله کي راوغورځول نورو عاديانو به ورته کتل حتی رفعتهم كلهم ثم رمت الريح التراب والرمل عليهم فكان تسمع انينهم من تحت التراب وكان هود ومن معه په يوه خطيرة کي يعني ګاش وزمه ځای چي خلګ پسونه په کښي دروي نو دغه باد چي د دوی پر خطيره به تيريدی ډير نرم او لذيذ به تيريدی سدي ﷺ وايې چي دا باد چي شروع سو عاديانو به ورته کتل چي اوښان بې په هوا کړه به مابين کي د اسمان او مځکي او راشوه بې کړه عاديانو چي دا وليده په خونه ننوتل اوباد به پسي ورغلی دخوني څخه بې را وايستل او په هوا بې کړه مړه بې کړه.

**پوښتنه**: کافران خو يعني عاديان ګناه کاره وه نو غوايي" خره" اوښان" وغيره ولي ورسره هلاک سوه؟

**ځواب**: چونکه دا حيوانان مملوک د اهل غضب وه او په مځکه کي د اهل غضب وه نو دوی ورسره مړه سوه ولي بلا او غضب الٰهي چي پر يوه مځکه نازل سي عام وي، والله تعالى حكم ومصالح جليلة فيما يحكم به ويريد.

**فائده**: هود او من المومنين چي نجات د غضب وريه نصيب سو نو د اهل غضب د مځکي څخه ووتل او مکي مکرمې ته ولاړه نو د خدای ﷻ عبادت يې هوري کاوه الى ان ماتوا بآجالهم.

**فائده**: هر نبي چي قوم يي په عذاب الٰهي هلاک سوی وي نو هغه نبي سره د مؤمنانو خپل ومکي ته هجرت کړی او هوري يې ژوند او عبادت کاوه الى ان ماتوا قال بعضهم بين الركن ومقام ابراهيم وزمزم قبور (۹۹) نبيا والله اعلم بحقيقة الحال.

وَإِلَىٰ ثَمُودَ أَخَاهُمْ صَٰلِحًا

او مورد واستاوه "تر ارسلنا لاندي دی یعني عطف دی پر الی نوح باندي" د ثمود قبيلي ته د دوی د قبلې سرى يعني صالح ﷺ، نو اخوة يې په اعتبار د نسب دی نه په اعتبار د دين چي صالح يې نوم وو.

**پوه سه:** چي ثمود قبیله ده له عربو څخه غير له قريش څخه چي اولاد دثمود بن عاثر بن ارم بن سام بن نوح ﷺ دي.

**فائده:** صالح" عطف بیان د "اخاهم" وهو صالح بن عبید بن اسف بن ماسح بن حادز بن ثمود.

قَالَ يَٰقَوْمِ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُۥ ۖ قَدْ جَآءَتْكُم بَيِّنَةٌ مِّن رَّبِّكُمْ ۖ

صالح ﷺ ورته وويل ای زما قومه عبادة کوئ د خدای يعني واحد لاشريک يې بولئ. نسته تاسي لره من اله کلمه د "من" دپاره د استغراق د نفي ده يو اله يعني معبود غير له خدای ﷻ څخه. په تحقيق وتاسي ته راغلی دی حجت او معجزه ظاهره د جانبه څخه د رب ستاسي.

هَٰذِهِۦ نَاقَةُ ٱللَّهِ لَكُمْ ءَايَةً

دا اوښه د خدای ده تاسي لره دليل پر واحدنيت د خدای او پر نبوة زما.

**پوه سه:** چي هذه الخ جمله مستانفه ده په استيناف بياني يعني جواب د سوال مقدر كانه قيل ماتلك البينة فقال هذه آه او اضافت ده اوښي چي خدای ته وکړی لپاره د تعظيم د دي ووجه التعظيم ان هذه الناقة جائت الى عالم الوجود بدون الوسائط اى الاسباب المعهودة من الولادة عن ناقة اخرى وغيرها ولذلک تکون آية.

**فائده:** آية منصوب دی على الحالية من ناقة الله او لكم متعلق په آية پوري دی او عامل د حال معنى د اشير چي اسم اشاره هذه څخه وفهميدی چي ودي ته په نحو کي عامل معنوي د حال وايې ومثلو له بقوله المرئة هذا بعلي شيخاً.

فَذَرُوهَا تَأْكُلْ فِىٓ أَرْضِ ٱللَّهِ ۖ وَلَا تَمَسُّوهَا بِسُوٓءٍ فَيَأْخُذَكُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٧٣﴾

تاسي پريږدئ دغه اوښه چي خوراک کوي په مځکه کي د خدای ﷻ.

**پوه سه**: چي نهي له مس څخه مبالغة په نهي کي د اصابتها بالسوء ولي چي مس مقدمة ده اصابت بالسوء الجامع لانواع العذاب الاذی نو که تاسي داسي وکړه نو تاسي ته به عذاب دردناکه ورسېږي.

وَاذْكُرُوٓا۟ إِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَآءَ مِنۢ بَعْدِ عَادٍ وَبَوَّأَكُمْ فِى ٱلْأَرْضِ

او تاسي په یاد کړئ هغه وخت چي تاسي وګرځولاست خدای خلیفه ګان یعني په مځکه کي وروسته تر عادیانو یعني وروسته تر هلاک د هغو او تاسي ته ي سکنی په مځکه کي یعني د حجر درکړه.

**پوه سه**: چي مقصود د دې په یادېدو څخه عبرت اخستل دي د هلاک څخه د عادیانو چي هغو په قول د خپل نبي نه کول او ایمان یې نه راوړی او خدای په غضب اخته هلاک سوه کما قال الشاعر الفارسي.

پند گیر از مصائب دیگران — انگیرند دیگران زتو پند
نه رود مرغ سوی دانه فراز — چودیگر مرغ بیند اندربند

او بل دا دی چي تاسي شکر ووایاست د سکونت د کولو تاسي ته په مځکه کي یعني په ایمان راوړو سره.

تَتَّخِذُونَ مِن سُهُولِهَا قُصُورًا وَتَنْحِتُونَ ٱلْجِبَالَ بُيُوتًا ۖ

او تاسي بناوي په پسته مځکه کي کوټې د اومو خښتو او د پخو خښتو او تاسي غاروئ غرونه او تراشئ یاستې خوني.

**پوه سه**: چي دا دوه قسمه بناوي دوی د دې لپاره کولې چي په دوبي به دوی په خونو او قصور کي د سهل مځکي او په ژمي کي به په کورو کي د غرو اوسېدل.

**فائده**: قصورا او بیوتا منصوب مفعول ده تتخذون او د تنحتون دي. ولي دا دواړه فعل متضمن معنی لره د جعل دي او یا منصوب علی الحالیة المقدرة. ولي چي سهل مځکه قصر نه ده په حال کي د جوړېدو او نه غر بیت کیدای سي په حال کي نحت کما لایخفی او د حال مقدره معنی حال مفروضه دی په وخت کي د فعل فافهم.

فَٱذْكُرُوٓا۟ ءَالَآءَ ٱللَّهِ وَلَا تَعْثَوْا۟ فِى ٱلْأَرْضِ مُفْسِدِينَ ۝

نو په یاد کړئ نعمتونه د خدای یعني په شکر ویلو او په ایمان راوړو سره او

تاسي عثی مه کوئ.

**پوه سه:** چي عثی اشد فساد ته وايي نو مفسدين يې حال مؤکده دی.

قَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا مِنْ قَوْمِهِ لِلَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا لِمَنْ آمَنَ مِنْهُمْ أَتَعْلَمُونَ أَنَّ صَالِحًا مُرْسَلٌ مِنْ رَبِّهِ

وويل اشرافو او رئيسانو چي دوی کبر کاوه د ايمان څخه پر صالح عليه السلام باندي، او هغو کسانو ته چي هغه ضعيف وه يعني تابعان د رئيسانو وه، کسانو ته چي ايمان راوړي له دوی څخه آيا ستاسي يقين دی پر دې چي صالح استول کړه سوی دی له جانبه د خدای جل جلاله.

قَالُوا إِنَّا بِمَا أُرْسِلَ بِهِ مُؤْمِنُونَ ﴿۷۵﴾

ضعيفانو مسلمانانو وويل چي په تحقيق موږ په ما ارسل به صالح مؤنون يو.

**پوه سه:** چي "لمن آمن آه" بدل بعض دی د للذين آه څخه.

**سوال:** په جواب کي د رئسانو خو نعم کافي وو نو دوی ولي خبره دونه اږده کړه انا بما ارسل آه؟

**خواب:** لپاره ده اشعار پر دې باندي چي د صالح په نبوت کي هيڅ شک نسته نو بايد هر عاقل پر ده ايمان راوړي.

قَالَ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا إِنَّا بِالَّذِي آمَنْتُمْ بِهِ كَافِرُونَ ﴿۷۶﴾

وويل متکبرينو د قوم صالح ومؤمنانو ته چي په تحقيق موږ خو په هغه شي چي تاسي ايمان پر راوړی دی يعني چي نبوت دی د صالح کافران يو يعني منکر يو.

فَعَقَرُوا النَّاقَةَ

خو متکبرانو ووژل وبنه چي د صالح معجزه وه او هغه معجزه ده د اوښي هم د دوی په غوښتنه سره وه.

**پوه سه:** چي د عقر معنی بعض وايي نحر دی او بعض اهل لغة وايي چي عقر د شا ده پلې پريکول دي.

**فائده:** نسبت د عقر يې وتولو متکبرينو ته وکي کما يدل عليه صيغة الجمع

ای عقروا" او سره د دې چي عقر یوازي فعل د قذار بن سالف وو.

**ځواب**: که څه هم قاتل قذار وو لکن نور قوم په راضي وه نحو بنوا فلان قتلوا مع ان القاتل یکون واحد منهم، دغه قذار په رنګ سور او قامت لنډ وو او سترګي یې شنې وې لکه فرعون "قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لعلي ﷺ اسقی الاولین عاقر ناقة صالح علیه السلام واشقی الآخرین قاتلک" یعني عبد الرحمٰن بن ملجم کما سیأتي في موضعه.

وَعَتَوْا عَنْ اَمْرِ رَبِّهِمْ

او دوی سر کښي وکړه ده امر څخه د خدای د عتو معنی تیریدل دي تر حد په باطل کي.

**پوهه**: چي ده امر څخه د رب مراد هغه خبره ده صالح د فذروها آه.

وَقَالُوْا يٰصٰلِحُ ائْتِنَا بِمَا تَعِدُنَآ اِنْ كُنْتَ مِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۷۷﴾

او کافرانو وویل چي ای صالح راتګ وکړه په هغه عذاب سره ستا د خدای د خوا څخه چي ته یې زموږ سره کوې که ته د رسولانو څخه د خدای یې.

فَاَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ فَاَصْبَحُوْا فِيْ دَارِهِمْ جٰثِمِيْنَ ﴿۷۸﴾

نو ونیوله دوی رجفة یعني حرکت د ځمکي چي زلزله یې بولي، لکن سره د صبحي ده جبرئیل کما في موضع آخر من القرآن نو دوی وګرځیده په ځمکه کي د د دوی هلاک په داسي ډول چي ناست وه اولاسونه یې پر ځمکه تکیه لاجل حرکة الارض بهم او بعض کسان وایي چي د جاثمین معنی داده چي پر مخ ولویده او هلاک سوه.

فَتَوَلّٰى عَنْهُمْ وَقَالَ يٰقَوْمِ لَقَدْ اَبْلَغْتُكُمْ رِسَالَةَ رَبِّيْ وَنَصَحْتُ لَكُمْ وَلٰكِنْ لَّا تُحِبُّوْنَ النّٰصِحِيْنَ ﴿۷۹﴾

نو صالح علیه السلام د دوی اعراض وکړی او داسي ورته وویل ای قومه زما ما تبلیغ د امر الٰهي وتاسي ته یعني ورسوي رسالة د رب زما ای ما ارسلني به ربي چي توحید او منع عن الشرک وه او تاسي ته مي نصیحت وکړی ولکن

ستاسي نه دی خوښې نصیحت کوونکی.

**پوښتنه:** څرنګه صالح علیه السلام دوی ته خطابونه وکړه وروسته تر هلاک د دوی او مړي خو په خبرو نه پوهیږي بعد الموت؟

**ځواب:** بعض مفسران وایې چې دا خطاب د صالح د مړو سره داسي دی لکه خطاب د علیه الصلوة والسلام د وژل سوو کفارو سره په بدر کي وروسته تر دې چې قلیب یو نړیدلي څا ته یې واچول.

چې علیه الصلوة والسلام وروسته تر درو ورځو راغلی او د څا پر غاړه ورته ودریدی او داسي وویل یا آبا جهل بن هشام یا عتبه بن ربیعة ویا شیبة ربیعة اوس تاسي خوشحاله یاست په دې سره چې تاسي په ژوند ایمان را وړی پر خدای او پر رسول د خدای الی آخر الحدیث الذي رواه البخاري ومسلم نو علیه الصلوة والسلام خو هم لفظ د ندا او خطاب ده مړو د قلیب سره وکړی، نو شاریحینو د حدیث هر څه توجیه چې ده خطاب د علیه الصلوة والسلام ده خطاب کړی د هغه توجیه د خطاب د صالح علیه السلام والتفصیل في شروح البخاري ومسلم.

او بعض مفسران وایي چې دا خطاب د صالح علیه السلام د مړو سره د پاره د عبرت د نورو خلګو ؤ چې ورته کارونه دي نه کوي، وقیل غیر ذالک بما لا یسمعه الاذان الکریمة ولا یقبله العقول السلیمة.

**درویش وایي:** وتمام قصة ثمود دا ده چې څه وخت چې خدای جل جلاله هلاک کړه عادیان کما مر بیانه د هغو په وطنوا او ښارو کي ثمودیان آباد سوه او خلیفه ګان د عادیانو وګرځیدل، او ثمودیانو ته ښه د فراخي رزق خدای جل جلاله ورکړی ؤ حتی چې نسل پر نسل د دوی نفوس ډیر سو او په ښه فراخه رزق کي ژوند کاوه آخرا دوی دوی نافرماني ده خدای شروع کړه او په بت پرستي شیطان آخته کړه، نو خدای و دوی ته صالح علیه السلام په نبوت را واستاوه چې دا قوم ثمود اصلاً عرب وو او صالح اوسط د دوی از روی نسب او افضل د دوی وو از روی رتبه نو صالح د ځواني څخه په تبلیغ د دوی لاس پوري کړی یعني د بت پرستي څخه یې منع کوله او توحید ته یې رابلله حتی چې په دې تبلیغ ګڅ وپیښتی سو، لکن په دې دونه وخت کي

ثمود یانو ده متابعت نه وکړی مګر لږ کسانو چي هغه غریبان وه نو صالح عليه السلام
وخپل دعوت ته د دوی وتوحید او ترک الشرک کما کان دوام ورکړی نو رئیسانو
د قوم وصالح ته وویل چي موږ ته یوه معجزه راښکاره کړه چي موږ پر تا ایمان
راوړو صالح عليه السلام ورته وویل چي څه معجزه درښکاره کړم دوی ورته وویل چي
ته به زموږ سره وزې د اختر په ورځ چي په کال کي دوی قدیمه رسمي ورځ د اختر
درلوده نو موږ به خپل خدایان راوباسو نو موږ به د خپلو خدایانو یو څه غوښتني
وکړو او ته به د خپل خدای څخه غوښتنه وکړې که ستا خواستونه قبول سوه موږ
ستا متابعت کوو او ستا پر نبوت ایمان راوړو او که زموږ د خدایانو غوښتني
منظور سوې ته به زموږ د دین متابعت کوې صالح عليه السلام ورته وویل نعم یعني
ښه دی. او پر دې خبره یې ډیر محکم قرار داد سره وکړی، نو صالح عليه السلام د دوی
سره د اختر په ورځ صحرا ته ووتی او دوی خپل خدایان ډیر ښائسته کړي وه، نو
دوی خپل خدایانو ته وویل چي دا صالح ستاسي له خدایي څخه منکر دی پر ده
یوه بلا نازله کړې نو چونکه هغه بتان جمادات وه د دوی خواست یې نه اورېدی او
نه یې څه قدرت درلودی نو دوی یعني کفار ډیر خجالت او رسوا سوه د خدایانو په
باره کي وروسته د کفارو مشر چي نوم یې جندع بن عمر وو، صالح عليه السلام ته
وویل چي اوس نو ستا د خدای وار دی صالح عليه السلام ورته وویل نعم نو جندع یوه
ډبره چي دغه ډبره له غره څخه جلا وه اشاره وکړه چي کاثبة یې بلل خلګو ته به
ستا خدای ته ووایه چي د دغه ډبري څخه به اوښه مخدجة یعني لکه مایه اوښ
راباسي پر خلقت د جمل به وي په بدن کي او په لوی والي کي د اندامو او د ادکو او
لوی اوږدې پښې یې وي او لوی نس بې وي یعني برالبه وي شبیهة بالبختی او
دمایه اوښ سره مشابه وي او وبرا به وي یعني ډیري وړه بې وي او د لسو میاشتو
میندواره به وي لکه د اوښې چي عادت دی چي پر لس میاشتي لنګیږي او هغه
اوښه به لنګیږي او بچی بې دونه وي لکه مور او مور بې دونه وي لکه دغه غرګی
نو که تا داسي وکړه نو موږ ستا ونبوة ته لبیک وایو او پر تا ایمان راوړو نو
صالح عليه السلام د دوی څخه سختي او محکمي وعدې واخستې چي که داسي وسول

تاسي به ایمان راوړئ دوی ورته وویل نعم نو صالح عليه السلام دوه رکعته نفل او خدای ته يې د دې معجزې په باره کې دعا وکړه، نو د دې غرګې څخه داسي اواز راپورته سو لکه اوښ چي لنګېږي نو غرګی سره وچاودی او د غونه اوښه لکه غرګی څندي را ووتل. يو ګړی شاه وخوا وګرځېدل بيا دې ته دلنګول هيئت پيدا سو چي مخاض يې بولي اوښه لنګه سوه دغونه لکه مور چونګی څندي پيدا سو، چي د اوښي د مابين د يوه بغل او بل بغل په فراخی خدای ﷻ خبر دی، دوی يعني كافرانو دا ټوله حالات په سترګو وليدل نو جندع سره د خپلو تابعانو ايمان راوړی او نور كافران سره د دې ټولو حالاتو ليدلو څخه وروسته هم پر كفر باقي پاته سول، چي مشران يې ذواب بن عمرو وو او خباب چي مواثيق په ده پوري اړه درلوده اوصاحب داوثانو هم دی وو اوبل مشر رباب يې نوم وو چي د دوی كاهن وو يعني غيب ګوی.

قال السعدي رحمه الله

يكي بنور عنايت ره هدايت يافت...... يكي بوادي خذلان بماند سرگردان.
يكي بوسوسه ديو رفت سوی سقر...... يكي زپيروي حق گرفت ملك جنان

**درويش وايي:** چي په دې ناقه كي دلائل كثيرة وه پر صحت د نبوة د صالح عليه السلام لو كانوا يتفكرون.

(۱) په اجتماع د نر او ښځي نه وه كما هو المعتاد.

(۲) ولم تكن في صلب جمل.

(۳) نه وه دا اوښه په رحم كي د مور.

(۴) ولم يكن للمخلوق سعى في تحصيلها.

(۵) كون الناقة مثل الضحرة.

(٦) كون ولدها مثلها في البدن.

(۷) دا معجزه په غوښتنه د دوی او موافق د غوښتني سره د دوی وه.

**فائده:** تر دې وخته پوري فرقه مؤمنه بصالح څلور زره ته ورسيده، وتمام قصة العقر. په رواتو صحيحه وو كي بلكه په قرآن كريم كي راغلي دي چي يوه

ورځ به چارپايان د اهل قرية وبښو او ابو ته ور تله او يوه ورځ به اوښه ورتله قال الله تعالى لها شرب يوم ولكم شرب يوم معلوم نو چي د اوښي واری به سو دې به سر په ځاکي کښېښو او ټولي اوبه د ځايې وڅښلې، ماښام چې به راغله د کلي په مابين کي پښې به يې فراخه ونيولې او خلګ به راتله شيدې بې څندې لوشلې ماشاؤ نو هم بې څښلې او هم بې زخيره کولې او ښه به تر هغو ولاړه وه چې خلګ د لوشلو څخه فارغ سوه بيا به اوښه پريوته يعني چوکه به سوه ده ابو موسى الاشعري ﷺ څخه روايت دی چې زه د ثمود يانو وطن ته ورغلم د اوښي د چوکيدو ځای مي اندازه کی شپيته ګزه په شپيته ګزه کي وو.

او بعض روات وايې چې ميل په ميل کي وو او چې واری د خلګو به سو نو اوبو ته بې خپل مواشي ورو ستل اوبه بې کړه او دونه ذخيره د اوبو بې ورسره يووړه چې د دويمي ورځي هم کفايت وکړي. نو داسي حالات پر ثمود يانو ډير ګران تماميدی نو قصد د عقر د اوښي بې وکړی، او اصل باعث پر عقر د اوښي دوې ښځي وې چې هرې يوې ډير مواشي درلوده، عنيزه بنت غنم، وصدقه بن المختار او حدادي ﷺ وايې چې په ثمود يانو کي يوه ښځه چې صدوق يا صدقه يې نوم وو ډيره ښائسته وه او اوښان او غواوي او پسونه يې درلوده او دا ښځه اشد عداوة لصالح ﷺ والناقة وه، نو دې خپل د اکا زوی چې مصدع يې نوم وو او دې ورته وويل چې زه تا مېړه کوم که دي ناقه ووژل نو هغه ورته وويل چې ډير اعلى زه دا کار کوم، بيا غنيزة قذار بن سالف را وغوښتی چې سور يې رنګ وو او په قد او قامت لنډی وو او سترګي شنې وې خلګو به ويل چې ولد الزنی دی لکن چونکه په کور کي د سالف زو کړی وو نو قذار بن سالف يې بالله نو غنيزې ده ته وويل چې يوه زما د لوڼو څخه چې ستا خوښه سي زه يې تا ته په نکاح درکوم په شرط د دې چې ته عقر د ناقې پر غاړه واخلې.

هغه هم قبوله کړه او قذار بن سالف ډير اعتبار په قوم کي د ثمود درلودی او اتباع يې هم ډيره درلوده ، نو مصدع او قذار پر کفارو د ثمود وګرځيدی او نهه قبيلې د دوی سره موافق سوې پر عقر د ناقې او خدای ﷻ وصالح ﷺ ته وحې

را واستولې چې قوم دي قصد کړی پر عقر د ناقې صالح علیه السلام دوی ته وویل چې رښتیا تاسي داسي قصد کړی هغه ورته پښیمانه سوه او وي ویل ماکنا لنفعل ذالک. نو دوی دا حیله سره وسنجول چې موږ به ووایو خلگو ته چې پر یو خوا په سفر ځو نو په غار کې د غره به ورځ تیره کړو چې ماښام تاریکه سي او خلگ بیده سي حتی چې صالح علیه السلام ولمانځه ته د تهجد را ووتی مسجد ته مړ بې کړو بېرته به غار ته ولاړ سو او کې ورته په موږ یا مسلمانانو په موږ دعوه وکړه موږ به ورته ووایو ماشهدنا مهلک اهل ای نفسه وانا لصادقون او خلگ به هم زموږ دا خبره ومني ولي چې موږ دوی ته ویلي وه چې موږ په سفر ځو او د صالح دا عادت وو چې په قریه کې نه بېدیدی او د عبادت لپاره یې مسجد خارج القریة جوړ کړی وو یقال له مسجد صالح شپه دورې په مسجد کې تیره وله او د ورځې بې قوم ته تبلیغ کاوه، نو کوم نفر چې د صالح د قتل لپاره په غار کې پټ وه د شپې غار پر را ونړیدی ټول یې مړه کړه. نو سحار چې خلگ خبر سوه په وطن کې نارې جوړې کړې چې صالح زموږ خلگ را مړه کړه نو بیا ټول اهل قریه پر عقر د ناقې متفق سول نو قذار او مصدع سره د نورو کسانو د اوښې په لار کې چې دا د خپلو وښو او اوبو د خوا راتله ورته پټ سوه حتی چې اوښه پر مصدع راغله هغه د غشي وار پر وکړی او د پښو پر پلو یې وویشتله بیا قذار راغلی په توره یې ووهله اوښه غورځاره سوه او قذار په ګروي ووهله او حلاله یې کړه او ښار وال ټوله سره را ووتل او غوښې سره وویشلې ده اوښې جونګې چې د مور حال ولیدی تر سترګو یې اوښکې تویدلې او د غره پر خوا یې میدان کړه او درې نارې یې وکړې او هغې ډیرې ته ورغلی چې د ده مور تر را وتلې وه او په هغه ډبره ننوتی ده درو نارو مطلب دا دی چې درې ورځې وروسته به پر تاسي عذاب د استیصال نازلیږي وکان کذالک.

## وَلُوطًا إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ أَتَأْتُونَ الْفَاحِشَةَ

ای وارسلنا لوطا باعتبار العطف علی نوحاً. وهو لوط بن هاران بن تارخ ابن اخي ابراهیم علیه السلام "اذ قال لقومه" هغه وخت چې وویل وخپل قوم ته چې هغه

لو یه قریه یا ښار چي مقدوم نو مېدی، آیا تاسي ورځئ یعني تاسي کوئ خصلة فاحشة یعني د یر بد خصلته یعني وطي کول د نرو سره په دبره کي.

**پوه سه:** چي دا استفهام لپاره د انکار او توبیخ یعني سر زنش دی.

مَا سَبَقَكُم بِهَا مِنْ أَحَدٍ مِّنَ الْعَٰلَمِينَ ۝

چي وړاندي والی نه دی کړی په دغه خصلت فاحشه سره هیڅ چا له عالمیانو څخه.

**پوه سه:** چي کلمه د با په بها کي لپاره د تعدیة ده ولي چي سبق لازمي دی او کلمه د من په من احد کي زائده لپاره د استغراق ده نفي او کلمه د من په من العالمین کي لپاره د تبعیض ده او جمله د ماسبقکم جمله مستانفه ده لپاره د تاکید د انکار. نو لوط عليه السلام و دوی ته توبیخ ورکړی اولا پر فعل د فاحشي وروسته پر اختراع د دې فاحشې یعني د لواطة اول مخترعین تاسي یاست نو تاسي تر قیامته پوري چي لواطة څوک کوي تاسي کي ورسره شریکان یاست لقوله علیه الصلوة والسلام من سن في الاسلام سنة حسنة فله اجرها واجر من عمل بها الی یوم القیامة ومن سن سنة سیئة فله وزها ووز من عمل بها الی یوم القیامة حتی هر څونه قتلونه چي په ناحقه کېږي تر ورځې پوري د قیامت قابیل بن آدم ورسره شریک دی لانه اول من قتل اخیه هابیل، بغیر حق وقصته مذکورة مشهورة وفي هذا التفسیر مذکورة عمربن دینار رحمه الله وایې چي نه دی لیدل سوی نر پر نر سپور یعني په لواطت کي په تېوله نړۍ کي حتی چي قوم لوط راغلی او دا کار یې شروع کړی.

إِنَّكُمْ لَتَأْتُونَ الرِّجَالَ شَهْوَةً مِّن دُونِ النِّسَاءِ ۚ

آیا تاسي ورځي نرو ته یعني جماع ورسره کوئ په دبره کي از روی شهوت ونصبه علی العلتیة ای لاجل الشهوة ای لاحامل لکم غیر قضا الشهوة نور هیڅ حکمت نسته پکښي ما سوی د ښځو څخه یعني چي ستاسي ماینې دې ولي چي په هغه قضا شهوة کي حکمت ستة یعني توالد ولا ذنب اعظم من اللواطة مع الرجال.

**مسئله**: د دې آیت څخه په دلالة النص سره دا ثابته سوه چې د خپلې ماینې سره لواطت ناروا دی لانه مثل لواطة الرجال خبیث هیڅ فائده نسته پکښې کې.

بَلْ أَنْتُمْ قَوْمٌ مُسْرِفُونَ ﴿٨١﴾

**بوه سه**: چې بل اضراب دی د انکار څخه واخبار ته د حال د دوی څخه.

**بوه سه**: چې اسراف تجاوز دی تر حدود معقوله او مشروعه په شي کې او دلته قوم لوط هم تجاوز وکړی د نکاح مشروع معتاد څخه وداسي فعل ته چې په هغه کې هیڅ خیر نسته چې لواطت د نر دی.

وَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهِ إِلَّا أَنْ قَالُوا أَخْرِجُوهُمْ مِنْ قَرْيَتِكُمْ إِنَّهُمْ أُنَاسٌ يَتَطَهَّرُونَ ﴿٨٢﴾

جواب د قوم یې مګر داسې نا معقول جواب چې دوی وویل چې وباسئ دوی یعنې لوط او چې د ده ملګرې وې په ایمان را وړو کې ولې چې دوی داسې خلګ دي چې خانونه پاک ساتي دا یې استهزاً وویله.

فَأَنْجَيْنَاهُ وَأَهْلَهُ إِلَّا امْرَأَتَهُ كَانَتْ مِنَ الْغَابِرِينَ ﴿٨٣﴾

نو موږ نجات ورکړی لوط ته او اهل ته د ده یعنې اتباع د ده چې مسلمانان وه مګر نه ماینه د ده استثناً ده د اهل څخه د ولې چې د ده ماینه کافره وه منافقه چې ایمان یې پټ ساتی، نو سوه ماینه د ده په باقینو کې چې کافران وه او د هغو سره هلاکه سوه.

وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهِمْ مَطَرًا فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُجْرِمِينَ ﴿٨٤﴾

او موږ باران وکړی پر قوم لوط باندې یو ناولده باران یعنې چې ډبرې وې من سجیل، ته وګوره چې څرنګه سو آخر کار د مجرمین ای الکافرین من قوم لوط وهو امطار الحجارة علیهم واستیصالهم بالکلیة په حدیث یعنې په تاریخ د قوم لوط کې راغلي چې لوط ﷺ بالاردن فارسله الله الی سدوم تا چې دعوة ورکړي و دوی ته اونهی یې کړي د فاحشه څخه د لواطة نو دوی نه نهي کېدله فامطر الله علیهم من الحجارة فهلکو محمد بن اسحاق وایې چې اهل سدوم

میوې د یېرې درلودې او ډیرې قریې یې وې چې په مثل د دې قریو میوه داره مخکې نه وې نو خلګو د اطرافو څخه ددوی قریو ته مخ کړې نو دوی څندې په عذاب سوه نو ابلیس په صورت کې د انسان ورته راغلی او ورته وې ویل که تاسې د واردینو څخه په عذاب یاست نو لواطت ورسره کوئ باره خلګ تاسې ته راځي. نو اول وار دوی پر هلکانو د واردینو دا کار شروع کړې وروسته کرار کرار د رجالو سره یې هم شروع کړی او خپل په مابین کې هم.

وَإِلَىٰ مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا

عطف دی پر نوحاً باندې وارسلنا الی مدین ای اولاد مدین بن ابراهیم خلیل الرحمٰن علیه الصلوٰة والسلام. شریک نسبي د دوی چې نوم یې شعیب وو عطاً وایې چې شعیب ابن توبه بن ابراهیم خلیل الرحمٰن وو. او ابن اسحاق وایې چې شعیب زوی د میکیل وو او هغه د یشجر زوی وو او هغه د مدین زوی و او هغه د ابراهیم خلیل الرحمٰن زوی وو.

**فائده**: شعیب عليه السلام په سترګو روند وو. او په سبب د حسن خطاب او د دلائلو د قوم سره په خطیب الانبیاً سره مشهور وو. او د ده قوم علحدة پر کفر عادت یې دا وو چې په پیمانه او ترازو کې د خلګو سره چم کاوه یعني په لویه پیمانه بې د خلګو څخه شیئ را نیوی او په کشني پیمانه بې پر خلګو خرڅوی.

قَالَ يَٰقَوْمِ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُۥ ۖ قَدْ جَآءَتْكُم بَيِّنَةٌ مِّن رَّبِّكُمْ

شعیب وویل ای قومه زما عبادة د خدای کوئ یعني توحید د خدای لان قولهم کانوا مشرکین په تحقیق سره وتاسې ته راغلی معجزه د خدای د خوا څخه یعني پر صحت دبلوة زما.

**فائده**: په قرآن کې نه ده راغلې چې معجزه د شعیب عليه السلام څه شي وه او بعض وایې چې معجزه د شعیب حسن خطاب و او موعظة حسنة نو ولهذا اشتهر بخطیب الانبیاً وفیه ما فیه فافهم اشارة چې حسن خطاب خو د معجزاتو متعارفه وو څخه نه و لان المعجزة ما لایمکن لاحد الاتیان بمثلها وحسن الخطاب لیس کذالک کما لایخفی.

فَأَوْفُوا الْكَيْلَ وَالْمِيزَانَ

او تاسي پوره ورکوئ خلګو ته کیل او میزان.

**پوه سه:** چي کیل مصدر دی او میزان دلته هم مصدر دی په معنی د وزن دی لکه میعاد په معنی د وعد دی او بعض وايې چي د میزان سره محذوف سته ای وزن المیزان نو میزان پر خپله معنی دی او یا مراد د کیل څخه الة الکیل دی.

وَلَا تَبْخَسُوا النَّاسَ أَشْيَاءَهُمْ

او تاسي کم مه ورکوئ شیان ددوی یعني مکیل او موزون.

**پوه سه:** چي اشیاء خدای ﷻ په لفظ عام ووایه چي جمع د شيء ده د دې لپاره چي دوی په لوی شي کي او په حقیر شي او په قلیل او په کثیر کي بخس کاوه وذالک لخسة طبائعهم وغاية حب الدنيا في قلوبهم.

وَلَا تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ بَعْدَ إِصْلَاحِهَا ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ ۝

او تاسي فساد په مځکه کي مه کوئ په کفر او ظلم سره وروسته تر اصلاح ده مځکي یعني چي نبي یې راواستاوه چي امر بالمعروف کوي او نهي عن المنکر کوي، دغه چي ما درته ذکر کړه او تاسي مي په امر کړاست فائده ده تاسي لره تر هغه کارو چي تاسي یې کوئ من البخس ولي چي ستاسي په دغو کارو کي که منفعة د دنیا سته لکن تاسي ته ضرر عظیم او عذاب الیم په دنیا او اخرة کي او په ما امرتکم به کي نفع د دنیا او آخرة سته که تاسي ایمان پر ما لرئ والجزاء محذوف ای فافعلوا ما امرتکم به وکانوا یعلمون ان شعیبا لم یکذب قط قبل هذا نو دوی په لارو کي خلګ کېښنولي وه نو څوک چي به شعیب ته ورتله دوی به منع کاوه او ورته ویل بې چي شعیب یو کذاب سړی دی مه ورځئ چي په فتنه کي مو واچوي او د خپل ابایې دین څخه مو نه واړوي او دغه رنګه به دوی ومؤمنانو ته چي پر شعیب بې ایمان راوړی دقتل پیش رو واهه" کما قال الله جل ذکره.

وَلَا تَقْعُدُوْا بِكُلِّ صِرَاطٍ تُوْعِدُوْنَ وَتَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ مَنْ اٰمَنَ بِهٖ وَتَبْغُوْنَهَا عِوَجًا

او تاسي مه کښېنئ په هره لار کي چي تاسي پېش رو ورکوئ او منع کوئ خلګ دلاري څخه د خدای هغه څوک چي ایمان یې راوړی وي پر خدای پا اراده دایمان لري او تاسي طلبه یاست یعني خلګو ته وایاست چي لار د خدای یعني توحید چي شعیب یې بیان کوي کږه لار ده.

وَاذْكُرُوْٓا اِذْ كُنْتُمْ قَلِيْلًا فَكَثَّرَكُمْ وَانْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِيْنَ ﴿۸۶﴾

او ییاد کړئ تاسي دا نعمت دخدای ﷻ چي تاسي لږ واست په عدد کي او رزق مو هم کم وو، او خدای تاسي ډېر کړاست چي برکت یې په نسل او مال کي درکړی او فکر وکړئ چي څرنګه سوی دی حال دمفسدانو یعني د کافرانو دتیرسو امتو لکه قوم لوط وغیرهم نو د هغو څخه عبرت واخلئ.

وَاِنْ كَانَ طَآئِفَةٌ مِّنْكُمْ اٰمَنُوْا بِالَّذِيْٓ اُرْسِلْتُ بِهٖ وَطَآئِفَةٌ لَّمْ يُؤْمِنُوْا فَاصْبِرُوْا حَتّٰى يَحْكُمَ اللّٰهُ بَيْنَنَا ۚ وَهُوَ خَيْرُ الْحٰكِمِيْنَ ﴿۸۷﴾

کلمه د "ان" شرطیه ده والمعنی که وي یوه ډله له تاسي څخه ایمان راوړي په هغه دین سره چي زه راستول سوی یم یعني له جانبه څخه د خدای ﷻ په دین سره چي توحید دی وغیره، او یوه ډله ستاسي څخه ایمان یې نه دی راوړی په ما ارسلت به سره، نو تاسي صبر وکړئ صبر دلته په معنی د انتظار دی یعني تاسي انتظار وکړئ تر هغو چي خدای ﷻ حکم کوي په مابین کي زموږ یعني زموږ او ستاسي چي پر مبطل او کافر عذاب نازل کړي او محقق ته نجات ورکړي په دنیا او آخرت کي او خدای ﷻ خیر د حاکمانو دی بسبب عمله الکامل بالخیر والشر لعباده.

**فوائد شتی:** چي تعلق لري په دغه آیتو پوري (۱) في هلاک قوم صالح علیه السلام په قرآن مجید کي خو صرف په اهلاک کي د قوم د صالح علیه السلام دا راغلي دي فاخذتهم الرجفة الآیة لکن تفصیل ده قصې چي په معتبرو تفسیرو

کي راغلي دي چي څه وخت چي قوم اوښه ذبح کړه د اوښي جونګکي میدان کړه د غره پر خوا صالح علیه السلام چي د اوښي په عقر خبر سو خلګو ته یې وویل چي جونګی یې را ګرځوئ شاید دهغه په سبب به د نزول دعذاب څخه خلاص سئ خلګ چي ورتله جونګی هغې ډبري ته ودریدی چي د ده مور ځندي راوتلې وه او دري ناري یې وکړې ډبره ورته وچاودل جونګکی په ننوتی. نو صالح وقوم ته وویل چي مده د عذاب راتلو پر تاسي دري ورځي پاته دي. کما قال الله تعالی تمتعوا ثلثة ایام ذالک وعد غیر مکذوب.

**پوه سه**: چي قوم د صالح عقر د ناقة د چار شنبې په ورځ کړی وو نو صالح علیه السلام ورته وویل زیری مي دربانديي د نزول د عذاب قوم ورته وویل علامه بې څه وي صالح ورته وویل چي تاسي چي د پنجشنبې په ورځ راکښېنی مخاز به مو تک ژړ وي او د جمعې په ورځ چي راکښېنی مخان به مو تک سره وي او د شنبې په ورځ چي راکښېنی مخان به مو تک تور وي په اولي کي د ورځي د یکشنبې به عذاب نازل سي. یعني ما جا في قوله تعالی فاخذتهم الرجفة الآیة، نو امر د کافرانو د قوم د صالح د غسي هم سو چي د شنبې په ورځ مخان ددوی تک ژړلکه زعفران چي پر پاشلي وي نر او ښځي صغیرهم وکبیرهم نو د دوی یقین سو چي عذاب لکه صالح چي ویل راتلونکی دی نو دوی په خپلو کي سره وویل چي درځي چي صالح مړ کړو زموږ تر مرګ د مخه. نو صالح وتښتېدی یو ځای پټ سو هر څو چي دوی یې تلاش وکړی نه یې کړی پیدا، نو مسلمانان یعني اتباع د صالح به دوی وهل تکول ولي چي ژر سئ صالح را وښیاست هغو خوارانو به ورته وویل چي موږ ته یې ځای نه دی معلوم خیر چي د جمعې ورځ سوه مخان یې داسي تک سره سوه لکه وینې چي یې پر پاشلي وي نو تولو بغاري چغاري ځګیروی ژړا شروع کړه او دوی پوه سوه چي عذاب نژدې سو، چي د شنبې ورځ سوه مخان یې تک تور وه لکه ډامبر چي یې پوري مښولی وي یا تور تیل نو یو دبله بې نعرې سره وهلې الا قد نزل العذاب یعني بېخي نژدې سو عذاب چي د یکشنبې شپه سوه صالح علیه السلام سره د تولو

مؤمنانو ځان وايستى د شام پر خوا نو په رملة كي د فلسطين يې واړول نو چي ورځ د يكشنبې سوه په ځرمنو او كالو كې يې ځانونه وپيچل اوپر مځكه كښينستل ګاهي به يې د اسمان وخواته كتل چي اسماني عذاب به راسي او ګاهي بې د مځكي وخوا ته كتل چي زميني عذاب به راسي نو دواړه عذابه پر نازل سوه د اسمان د خوا صيحة چي د هري تكي اواز په كښي وو او د مځكي د خوا زلزله نو زړونه يې وچاودل په سينو كي فلم يبق منهم صغير ولا كبير ولا ذكر ولا انثى الا قد هلك.

**سوال**: د داسي علاماتو په ليدو سره عاقل بيا هم پر كفر تينګېداى سي؟

**جواب**: تينګيداى خو نه سي لكن د حد د تكليف خارج سوه" سعدي رحمه الله وايي تو پيش از عقوبت در عفو كوب" كه سودي ندارد فناه زير چوب.

**درويش وايي**: چي دا علامات كيدل خو داسي دي لكه چي د قيامت ورځ خلګ وويني نو په هغه ورځ خو ايمان نه قبلېږي ولي چي دار تكليف ختم سو.

**فائده**: في لواطة قوم لوط عليه السلام ابن سيرين رحمه الله وايي چي ونرو ته په دبر كي ورتګ چي هيڅ حيوان د دبري كار نه كوي مګر يو سر كوزى دا كار كوي" بل دوه مست خره چي خره نه ورته پيدا كېږي د دبري كار كوي نو حاصل دا دى چي لواطت لويه ګناه پايد مسلمان ځان ځندي وساتي او د اسباب ځخه د لواطت لكه مسه كول د هلك يا مچه ځندي اخستل هم ځان وساتي ولي چي دا اسباب مفضي ولواطت ته ګرځي قال الشيخ السعدي رحمه الله.

خرابت كند شاهد خانه كن	برو خانه آباد ګردان ز زن
نشايد هوس باختن باګلي	كه هر با مرادش بود بلبلي
مكن بد بفرزند مردم نګاه	كه فرزند خويشت بر آيد تباه

لان اثار الآباً تظهر فى الابنا وفي كتاب ملتقط ناصري. هلك چي مرانه يې ووهي يعني بالغ سي كه بدرنګه وو نو حكم يې حكم د نر دى او كه ښائسته وي حكم يې حكم د ښځي دى لايحل النظر اليه بالشهوة او سلام ور اچول او نظر بېله شهوته ورته كول فلا باس به ځكه ما مور په حجاب سره نه دى لكه ښځه.

**فائده:** محمد بن الحسن الشيباني چي د امام اعظم رحمه الله شاګرد وو ډير ښائسته وو نو امام اعظم رحمه الله به دی په درس کي تر شا کښيناوه حتی لا يقع عليه نظره مخافة زنی العين مع عظيم تقوی الاعظم رحمه الله تر څو چي ږيره يې پر مخ راغله نو يې مخامخ کښيناوه.

**مسئله:** علماءُ وايي چي مکروه دی مجالست د ښائسته ځوانانو سره چي ږيره يې نه وي که څه هم د سړي په زړه کي شهوت نه وي، او داغه رنګه د بې عقلانو سره لانه يذهب بالمهابة ويورث التهمة، شيخ سعدي مرحوم وايي

| | |
|---|---|
| چو خواهی که قدرت بماند بلند | دل ايخواجه درساده رويان مبند |
| وگر خود نباشد غرض درميان | حذر کن که دارد بحرمت زيان |

**مسئله:** که د سړي ښائسته بې ږيري مريی ؤ پر داسي چا به يې نه خرڅوي چي د دده په خيال د لواطت لپاره يې رانيسي لانه اعانة علی المعصية.

**سوال:** موږ منو چي هلک محل د کښت او تولد نه دی، لکن چي د سړي مملوک وي، نو مالک ته خو په خپل مملوک کي هر ډول تصرف روا دی، نو بايد چي قضاءُ شهوت په مملوک کي روا وي؟

**ځواب:** شرع شريفي اجازه نه ده ورکړې د تصرف په دبره کي د مملوک لغاية قباحة ونهاية خباثته والمملوکية لايقتضی التصرف من کل وجه في المملوک الاترى ان ملک مجوسية او وثنية لايجوز له التصرف بالوطي في فرجها مالم تسلما، او ددې سبب که د ښځي مريی ؤ، نو دې ته نه دی روا چي مچه ځني واخلي، او يا پر ځان خيژوي يعني وطي ورسره کوي.

**پوښته:** چي د نر سره د دبر له خوا کار کول لواطت کبرٰی دی، او د خپلي ماينې سره په دبره کي کار کول لواطت صغرٰی دی، وفي الحديث ملعون من اتی امرئته في دبرها.

**پوښتنه:** په جنت کي د ولدانو سره چي نران دي او ډېر ښائسته دي قال الله تعالی کانهم لؤلؤ لواطت روا دی که څرنګه؟

**ځواب:** مولی زرک زاده رحمه الله په حواشي کي د اشباه او نظائر وايي چي

لواطت ورسره روا دی او جنتیان یې ورسره کوي او دا آیت ده رواړی دی "ویطوف علیهم ولدان مخلدون اذ رئیتهم حسبتهم لؤلؤ منشوراً" والصحیح المفتی به انه لایجوز لان الله تعالی استبعدها واستقبحها وسماها ای اللواطة الخبیثة، والجنة منزه عن الخبائث، او صحیح داده چي لواطت په زړو کي د جنتیانو نه ورکړځي للحکمة وهي الحرمة اللواطة في جمیع الادیان بخلاف الخمر فانها حلالاً في بعض الادیان بل في دیننا في الابتدأ ولهذا صارت الخمر من نعیم الجنان.

**درویش وایي**: چي په حکم کي د لواطت کبرٰی د دین امامانو اختلاف دی لکن دا اختلافات به د فقه کتابو ته وسپارو، بیت

تاطبع نازکت نه پذیرد ملالتی		آن به که نامه رابدعا مختصر کنم

درویش میگوید که به توفیق خدای متعال جزٔ (۸) قرآن عظیم الشان به تفسیر حقیر هیچ مدان بپایان رسید لله الحمد والمنة والصلوٰة والسلام علی سید البریة محمد المصطفٰی وعلی آله وصحبه الکملة روز دوشنبه تخمیناً ۱۲ شهر جمادی الثانی من شهور سنه ۱۴۲۸ هـ ق.

وارجوا من الله تعالی ان یوفقني لتفسیر جمیع اجزأ الکلام الشریف بالخیر والعافیة ویجعله خیراً باقیاً لهذا العبد الفقیر الی یوم القیامة انه تعالی علی کل شئ قدیر وبالاجابة جدیر، واتمام هذا التفسیر غایة متمنٰی هذا الفقیر، واتمني من عظیم رحمته تعالی وقدرته ان لایجعل هذا التفسیر یتیماً من العبد الذلیل ابی الفضل محمد عبیدالله الایوبي السني الحنفي القندهاري وارجوا من اخوان الصفأ من العلمأ والطلبأ ان یطالعوا هذا التفسیر بعین المحبة والانصاف. لابعین الحسد والاعتساف فان الحسد حسک من تعلق به هلک.

چهار چیز آورده ام شاها که در گنج تو نیست
عاجزی و مسکینی فقر و گناه آورده ام

بقلم محمد عبیدالله ایوبي غفرله الباري

حق طباعت مخصوص بجناب قاري فضل الحق صائب میباشد

# د تفسیر ایوبي حنفي د مضامینو فهرست

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله زمونږ اداري ته دا ویاړ ور په برخه دی چي د دین د شعبې د هر فن کتاب یې وپښتو ژبې ته ژباړلی دی. لکه څرنګه چي زمونږ اداري څو کاله دمخه یو کتاب په نامه د "تعليم العقائد" له اردو ژبې څخه وپښتو ته وژباړی چي الحمد لله ډېر مقبول وګرځېدی. لکن چونکه هغه کتاب د ابتدائي طالبانو لپاره ؤ، نو اوس زمونږ اداري د عقائدو په اړه یو بل کتاب د جناب قاري محمد فضل الحق حقاني په خوږه پښتو سره ژباړلی دی ان شآ الله ډېر ژر به منظر عام ته راسي.

# عقائد الاسلام

چي د جناب مولانا محمد ادریس کاندهلوي صاحب تصنيف دی چي دا کتاب د اهل السنة والجماعة د عقائدو وينديه دی چي د باطلو فرقو نشاندهي هم پکښې ده.

## يو بل شاهكار

د معارف القرآن د مصنف يوه ډېره په زړه پوري رساله چي په هغه كي د سنت او د بدعت ډېر ښه او مفصل بيان ستل، دا رساله زموږ اداري له اردو ژبې څخه وپښتو ته رااړولې ده چي د چاپ تر مراحلو را رسېدلې ده، ډېر ژر به د علوم نبويه د تشنه ګانو تنده په ماته سي، ان شا الله تعالى.

# سنت و بدعت

تاءليف

**حضرت مولانا مفتي محمد شفيع** رحمة الله عليه

**مكتبة القراءة و التجويد**

كاسي وات (روډ) كوټه بلوچستان

بسم الله الرحمن الرحيم

د علم تجويد په اړه زموږ اداري نه ستري کېدونکې خدمتونه کړي دي، چې د هغه شانداره ماضي ستاسي وړاندې پر ته ده، ځيني ملګرو له ډېره وخته دا تمنا درلوده چې د علم تجويد يو ډېر پخواني او مستند کتاب موږ په کمپيوټر وليکو او بيا يې چاپ ته وسپارو، ولې چې دا کتاب که له يوې خوا ناياب ؤ خو له بلې خوا ډېر مخدوش او خسته حال ؤ، نو زموږ اداري تکل وکړی او هغه کتاب يې په ډېره ښه خوشخطۍ سره په کمپيوټر کمپوز کړی، او چاپ ته رسېدلی دی.

# نهاية القول المفيد

# في

# علم التجويد

تاليف

المقري الشيخ / محمد مكي نصر الجريسي رحمه الله

مصحح

المقري محمد فضل الحق حقاني

مكتبة القراءة والتجويد

تفسير ايوبي حنفي۷ ټوک

د نصيراحمد احمدي لخوا

سکين او pdf سـو.

تاريخ. ۱۶-۱۲-۱۳۹۸

واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

د دعـا محـتـاج احـمـدي!